# د هبواد لرغوني ښارونه
# او
# د تاريخ پاڼې

لومړی ټوک



ليکوال
پوهاند رازقي نږ

۱۳۸۵

# د هیواد لرغوني ښارونه
# او
# د تاریخ پاڼې

لومړی ټوک

## لیکوال

## پوهاند رازقي نړیوال

خپرونکی

دسرحدونو، قومونو او قبایلو چارو وزارت
د خپرونو او فرهنګي چارو ریاست
د خپرونو لوی مدیریت

۱۳۸۵



## د کتاب پیژندنه:

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | دهېواد لرغوني ښارونه او د تاریخ پاڼې |
| لیکوال: | پوهاند رازقي نړیوال |
| مهتمم: | الحاج محمد انور شمسه خیلي |
| د چاپ نېټه: | ۱۳۸۵ |
| دچاپ شمیر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| کمپوز او ډیزاین: | اکمل "عازم" |


چاپ: بنگاه انتشارات و مطبعه میوند، جوار ریاست فارمسی، مقابل لیسه عالی افغان ترک، کابل - افغانستان

تیلفون و فکس: ۲۱۰۳۵۶۹(۲۰)۰۰۹۳، ۰۲۰-۲۲۰۰۴۵۵

تیلفون های همراه: ۰۷۰۲۹۵۲۱۴، ۰۷۰۲۸۴۹۵۴، ۰۷۹۹۳۲۰۳۶۶، ۰۷۹۹۸۶۰۲۲۱

پست الکترونی: maiwand@asia.com

# یادونه

د سرحدونو، قومونو او قبیلو چارو وزارت د خپرونو او فرهنګي چارو ریاست د خپرونو لوی مدیریت ویاړي چې د پښتو د ویاړلي او څواکمن ادب په ګلبڼ کې نور ګلان را ټوکیږي، او د هغې ښایست لا زیات او ارزښت یې لا پیاوړی کوي.

دا دی بیا هم د پښتو ژبې مینه والو او دوستانو ته د ښاغلي پوهاند رازقي نړیوال اثر (د هېواد لرغوني ښارونه او د تاریخ پاڼې) تر سرلیک لاندې لومړی ټوک د کتاب په شکل ډالۍ کوو، پدې کتاب کې د هېواد د دیرلسو لرغونو ښارونو او د سیمو جغرافیوي موقیعتونو او تاریخي ارزښت، دفاعي خصوصیات، نظامي ارزښت او داسې نورې خانګړتیاوې څېړل شوي دي. موږ د هېواد د پښتنې لیک مینانو، لیکوالو، شاعرانو په تیره بیا تاریخ لیکونکو ته د یوه تاریخي هنري جامع او ښکلي انځور په توګه په زړه پورې ارزښت لري. ښاغلي نړیوال د ۱۳۲۹ کال راهیسې په څو ادبي او فرهنګي چارو کې برلاسی لري او څوک نه کیږي چې د هېواد لرغوني ښارونه او د تاریخ پاڼې تر عنوان لاندې اثر د ډیرو ستونزو په ګاللو او ژورې څېړنې سره د پښتو په خوږه ژبه ټول او چمتو کړی دی. د نړیوال صاحب دا اثر نه یوازې په تاریخي لحاظ نه بلکې په ژبني لحاظ هم ډیر ارزښت لري. موږ ښاغلي نړیوال صاحب ته په ژوره مینه د دغه کتاب د خپریدو مبارکي وایو. او د خپرونو په برخه کې یې د ښاغلي نور محمد "حیدري" نه ستړې کیدونکي هڅې ستایو. او د هېواد پیاوړو او درنو لیکوالو، ادیبانو، پوهانو، شاعرانو ته ډاډ ورکوو چې د سرحدونو، قومونو او قبیلو چارو وزارت د خپرونو او فرهنګي چارو ریاست د بیلابیلو ارزښتناکو اثارو د چاپ او خپرونو په برخه کې له محترمو پوهانو سره له هیڅ راز مرستې څخه ډډه نه کوي.

په ډیر درنښت

الحاج محمد انور "شمسه خیل"

د خپرونو لوی مدیر

## د موضوعګانو فهرست

| موضوعګانې | مخ |
|---|---|


لومړی

# تقريظ

## د هېواد لرغوني ښارونه او د تاريخ پاڼې

محترم پوهاند رازقي نړيوال د پورته سرليك لاندې اثر مې ولوست په دې كتاب كې د هېواد د ۱۳ لرغونو ښارونو او سيمو جغرافيوي موقعيتونه. تاريخي ارزښت. نظامي ارزښت. د تاسيس بنه. دفاعي خصوصيت او داسې نورې ځانګړتياوې څېړل شوې دي. تر دې وخته په دې موضوع كې يو ځانګړي. مفصل او جامع اثر په تېره بيا په پښتو موجود نه و. په دې اساس د استاد نړيوال په همت دې بركت وي چې د هېواد د لرغونو ښارونو په هكله يې څېړنه. ګروېږنه وكړه او خپل اثر يې په روانه پښتو ژبه ترتيب او چاپ ته چمتو كړ.

لكه چې پورته ياده شوه. په دې اثر كې ۱۳ ښارونه شرحه شوي او داسې معلومېږي چې د كتاب دويم ټوك به هم د استاد په همت په ورته بڼه چاپ ته آماده شي. په دې لومړي ټوك كې استاد نږدې له ۸۰ ماخذونو څخه استفاده كړې چې دا پخپله د اثر د غنا له پاره بنسټ برابر كړي دي.

مؤلف خپله څېړنه د اشرف البلاد كندهار څخه پيل كړې او بيا يې د كابل. بلخ. هرات. غزني. ننګرهار (د باغونو او ګلونو ښار) زرنج. كاپيسا-بګرام.

ګرديز. لوګر. کونړ. نورستان او غور ښارونه او تاريخي سيمې په سيستماتيك ډول څېړلي دي

د اثر ليکوال. استاد نړيوال نه يوازې په تاريخي لحاظ د دې اثر په بشپړتيا کې زيار ايستلی. بلکې په ژبني لحاظ. يې هم هڅه کړې چې د اثر په کښلو کې له معياري او عام فهمې ژبې څخه کار واخلي. تر څو په لوستلو کې يې هرچاته آسانتياوې برابرې شي. له بلې خوا څرنګه چې استاد نړيوال د هېواد يو خوږ ژبي شاعر او اديب دی. نو په کتاب کې يې د انشاء او ادبي خواوو څخه هم څه کمي نشته او ښکلې کلمې او جملې يې کارولي دي

ليکوال د دې اثر په ترتيب کې زښتيا زيات زيار ايستلی او د لومړي ځل له پاره يې د هېواد د فرهنګي بډايې په منظور دا اثر چاپ ته چمتو کړئ. له دې اثر څخه د عامو لوستونکو تر څنګ محصلان. په تېره بيا د لرغون پوهنې د څانګې زده کوونکي پوره ګټه اخستلی شي زه د دې اثر چاپ يو ګټور اقدام بولم او ليکوال ته له الله پاك څخه د دغسې نورو آثارو د تاليف توفيق غواړم.

سرمحقق نصرالله سوبمن منګل
د افغانستان د علومو اکاډمۍ د بشري علومو مرستيال
۱۳۸۴/۱۰/۲۸

# تقريظ

## د محترم پوهاند رازقي نړيوال پر اثر د هېواد لرغوني ښارونه او د تاريخ پاڼې

د سرحدونو او قبايلو د چارو وزارت د ۶۴/ ۱۳۸۴/۹/۱۶ ګڼې مکتوب، او د افغانستان د اسلامي جمهوريت د علومو د اکاډمۍ د بشري علومو د معاونيت د ۸۱۲/ ۱۳۸۴/۱۰/۸ ګڼې مکتوب په ځواب کې بايد ووايم، چې د ټولو مصروفيتونو سره سره، د پورتني اثر د لوستلو او مطالعې مسؤوليت مې په غاړه واخيست.

محترم څېړونکي د موضوع د ماهيت او د ټولنيزو پديدو د مبرميت د پېژندلو په ترڅ کې دا تشخيص کړې دي چې څه؟ څه دي؟ نو ځکه دی دې ته وهڅېد ترڅو د هېواد بډای لرغوني تاريخ د هېرېدنې نه وساتي او د انسانانو په مفکورو او تصوراتو کې ورځای کړي.

څېړونکی چې اوږده د ليک، لوست او څېړنې بډايه تجربه لري او د ځو تکاملي پړاوونو وهونکی دی. په خپله څېړنه کې يې محطاط او دقيق دريځ غوره کړی دی. د ده د څېړنې نه داسې ښکاري چې دی د لرغونپوهانو سره مينه او د لرغونپوهنې سره نږدې اړيکې او ښه زده کړه لري. ده په خپله څېړنه کې دا ثابته کړې ده چې. هيڅ ډول تعصب د ده په ليکنو کې نه ليدل

کيږي. که څه هم چې د دغه اثر ليکنه ډېره تحليلي بڼه لري، خو بيا هم د ده ليکنې په ډېر ښه ادبياتو او مناسبو جملو سمبال شوي دي. د ده په ليکنه کې، لوستونکي ته دا امکان لاس ته ورځي تر څو د ليکنې په ميتود آگاه او د هغه نه ښه انتباه واخلي. د ده ليکنه نه يوازې دا چې د هېواد ښارونه توضيح کوي، بلکه د نوي مفکورې وړاندي کوونکې دی.

ده دا ثابته کړې ده چې انساني ماهيت د ده په څېره کې نه، بلکه د ده په مفکوره کې پروت دی. ښې جامې، ښکلي الفاظ د ښه مفکورې تضمين کوونکې نه دی. علت هر ځانته معلول لري، هيڅکله د يوې پديدې معلول د پردی (بلي) پديدې د علت محصول نه شي کېداې. نو ځکه د محترم څېړونکي ليکنه مونږ د ده زحمت بولو.

محترم پوهاند رازقي نړيوال د دغه اثر په ليکنه کې ښه زيار ايستلی دی. د ده په اثر کې د عناوينو فهرست، سريزه، د ديارلسو ښارونو تشريح، پايلي او وړانديځونه، اخځليکونه او د څېړونکي پيژندنه ځاى لري.

محترم ليکوال په سريزه کې د هېواد لرغوني انځور وړاندې کړی دی، او دا يې جوته کړې ده چې افغانستان کوم مصنوعي او ناڅاپه پديده نه، بلکه يوه اوږده طبيعي پروسه ده چې د دې هېواد لرغونتوب ثابتوي.

ده په دغه ټوک (لومړي ټوك) کې يوازې ديارلس ښارونه په تاريخي لحاظ تشريح کړي دي، چې ښه په زړه پوري معلومات په دې هکله وړاندې شوي دي. د هر ښار د تسميې وجه، تاريخي شاليد او لرغوني ځايونه شتون ښودل شوی دی.

د ده پايلي په اثر کې د ده د مفکوري څرګندوي دي، چې دی دا هیله او هوډ لري تر څو خپل دغه پیل شوي دنده «د هېواد د لرغونو ښارونو پيژندنه» هېوادوالوته بشپړه او وړاندې کړي

دا اثر چې په ټولټزه توګه ۱۷۰ مخونه لري. په ليکنه کې له ۸۰ ماخذونو څخه کار اخيستل شوی دی. زه د ده کار او زيار په دغه هکله ستايم، او د دغه اثر د چاپ وړانديز کوم او ګران ليکوال ته پوره روغتيا او د لا ښه څيړنې هيله کوم

په درناوی

د افغانستان د علومو د اکاډمۍ علمي غړی

سرمحقق ډاکتر الف محمد شرر

۱۳۸۴/۱۰/۲۱



# تقریظ

## پیرامون اثر محترم پوهاند رازقي نړیوال

به تاسی از مکتوب شماره ۸۴۴ / ۷۶۹ مؤرخ ۲۷ / ۱۰ /۱۳۸۴ که از جانب مقام محترم معاونیت علوم بشری اکادمی علوم افغانستان برای بنده جهت ابراز نظر اثر تحت عنوان "د هېواد ښارونه او د تاریخ پاڼې" لومړی ټوك" می باشد، گسیل گردیده که اینك در زمینه چنین ابراز نظر صورت می گیرد.

محترم پوهاند رازقي نریوال در زمینه نبشت اثري اقدام ورزیده که هم اکنون نسل های بالنده کشور و به ویژه محصلین، دانشمندان و عام بدان ضرورت مبرم آگاهی و استفاده را داشته و می تواند در معرفی و شناخت آثار مادی، عناصر کهن و تمدنی کشورش آگاهی لازمی را به دست بیاورند.

نویسنده محترم که در نگارش و آفرینش آثار متعدد ید طولا دارد، اثر متذکره که فصل اول از معرفی ساحات باستانی و شهرهای عمده کهن کشور نماینده گی می نماید، برخورد و ژرفنگری خوبی داشته، معلومات لازم و در خور توجه را مربوط به شهرهاي چون کندهار، کابل، بلخ باستان، هرات، غزني، ننگرهار، زرنج، کاپیسا، گردیز، لوگر و امثالهم ارائه داشته و در هر مقطع از معرفت شهرها، وجه تسمیه، محتویات متنوع از نظر تاریخ، باستان شناسی و جغرافیا را مد نظر گرفته به صورت تسلسل و منطقی با کاربرد

کلمات و واژه هاي مطبوع و قابل پذيرشي را در تدوين اثر، جملات و بخش هاي مربوط مراعات نموده است.

علاوتاً نويسندة محترم در بسياري از موارد، محتويات و ارزش هاي ويژه شهرها و شهرك ها، نقش زعامت ها در ايجاد چنين شهرها با ابعاد گونه هاي تمدني و فرهنگي را با تحقيق و اسناد، مستدل نموده و بر غنامندی هرچه بيشتر اثر افزوده است.

اثر مذکور عاری از استعارات و پراگنده گی بوده ابعاد متعادل متن نمايشگر طرز تفکر عالی و طرز تفکر دانشمندانه بوده، سعی ورزيده شود تا حدود امکان معلومات و اطلاعات دقيق ويرا بيشتر ضم اوراق زيرين تاريخ کشور در برهه از زمان موجود نمايد.

من به نوبه خويش اثر دانشمند محترم پوهاند رازقی صاحب مثبت و در خور توجه ارزيابی نموده. اميدوارم اين اثر اقبال چاپ يابد.

*با احترام*

*معاون سرمحقق نظر محمد عزيزی*

*رييس مرکز بين المللی تحقيقات کوشانی*

# بسم الله الرحمن الرحیم

## د لوی او بخښونکی خدای په نامه

**سریزه**

زموږ د ګران افغانستان د لرغوني تاریخ پاڼې له تلپاتې ویاړلیو یادګارونو، علمي، فرهنګي، مدني او مذهبي بډایو میراثونو، بې سارو اتلولیو، حماسو او د سرسارو شهکاریو څخه ډکې دي او په هر سیمه کې یې د ستراتیژیکو سنګرونو، د پریمانو نجیبه او قیمتي ډبرو د [redacted] طبیعي عجایبو، او بې شمېرو معدنونو زیرمې خوندي دي، د آسمان توږونکو غرونو، څپاندو سیندونو، هسکو درو او سردرو، ګڼو ځنګلونو، غونډۍ غونډۍ ریګونو، پراخو کروندو او داسې نورو جغرافیوي مظاهرو ورته لا غنا ورکړې ده.

دا د پریمانو حاصلاتو، ډول ډول خوږو میوو او ګلونو وطن د دې کوچنۍ محدودې سره سره په نړۍ کې هیڅ ساری نه لري.

دا چې افغانستان د نړۍ خوځنده زړه، پامیر یې د نړۍ هسک پام او دا هېواد د نړۍ څلور لارې (اورتسپانا) بلل شوی دی کومه سرسري او بې بنسټه خبره نه ده.

افغانستان که څه هم د فاتحانو او جهان کشایانو د زور ازمايي او د هغو د ددمنشیو ډګر ګرزیدلي دی د دې تر څنګ د بې شمېرو مدنیتونو او فرهنګونو د یو ځای کېدو کانون هم پاتې شوی دی.

په دې لرغوني هېواد کې نه یوازې د ورېښمو لارې ختیز او لویدیز سره نښلولي دي بلکې همدا کابل په لرغونو اناتو کې دروم، یونان، ماورالنهر هند او چین تر منځه د سوداګرۍ د مالونو د راکړې ورکړې او د واټونو کنترولي نقطه هم ګرزیدلې ده.

زموږ لرغوني اریانا هېواد نه یوازې د زر تشترا د واحد خدای پرستۍ او بشر دوستانه آیین مرکز ؤ بلکې د علم او فرهنګ د بیلابیلو متبحرینو، فیلسوفانو، نوښغو، نوښتګرانو، طبیبانو، صنعتګرانو او د داسې نورو څانګو د ماهرانو روزنځای ؤ. هغه چې د پوهې او خلاقیتونو او مفکورو پلوشې یې تر شرق او غرب پورې خپرې وې هوکې د البیروني، ابن سینا، فارابي، سید جمال الدین افغان او داسې نورو سترو شخصیتونو ویاړلی تاټوبی هم دی.

د هېواد لرغوني ښارونه او د دتاریخ پاڼې په دې اثر کې به په مستنده توګه وکتل شي چې د نامتو مورخانو جغرافیا پوهانو او د تذکره لیکونکو په بیلابیلو اثارو کې د دې ښارونو د جغرافیوي، تاریخي، رزمي او اقتصادي، علمي و افرهنګي بډاینو، شایستګیو او بې ساری توب ته څومره زیات د

ستاينې ور لقبونه ورکړ شوی دی هغه چې د نړۍ د هيڅ هېواد ښارونه په دې ممتاز توب نه دي ياد شوي.
هوکې د اووګونو عجايبو خاوره. د تلپاتې سترو شخصيتونو سيمه د اشرف البلاد. ام البلاد يعنې د لوړو او ښکلو بيرغونو د ښار. د ملغلرو د ښار او د عروس البلاد د ښار لرونکی هېواد. د افغانستان زړه. د نړۍ څلور لارې همدلته پروت دی. اورتاکانا. د باغونو او ګلونو ښار مدينته العذرا. باګرام. د افغانستان کشمير. د هندوکش د لارو ور. د ښکلو ښارونو او مستحکمو کلاګانو مجتمع د همدې خاورې نامتو سيمې دي. دا د ريګونو او حماسو وطن د لعلونو او د نجيبه ډبرو د کانونو او د طبيعي عجايبو لرونکی د خوږو او رنګارنګ ميوو. خربوزو انګورو او پستو او نارنجانو خاوره.
دا زموږ د نوميااليو نيکه ګانو. د هسکو هسکو برجورو کلاګانو استحکامي د ژونو. حصارونو او بالاحصارونو. ښکلو او لوړو قصرونو. پر تمنيو کوشکونو او ارګونو او د تاريخي پلازمينو هېواد، هغه چې د هرې تېرې او کنډوالې لاندې يې د تاريخي شخصيتونو د توری او قلم خاطرې پرتې دي. هغه چې هر يوه يې جلا جلا خو وياړلې ځانګړتياوې لري
لنډه دا چې زموږ لرغوني او وياړلي افغانستان دغه هر اړخيز لوړ مقام زه دې راوبللم چې د ښارونو او د هغو د پراخو مدنيتونو پيژندنې ته لاس واچوم. هغه لرغوني ښارونه او تاريخي آثار يې چې يا د طبيعي افتونو په وجه له منځه تللي دي او يا انساني وحشتونو او يرغلونو پوپنا کړي دي. حتی د ځينو يې هيڅ ننښه نښانه نه ده پاتې شوې او د ځينو کنډوالې او پاتې شونې د هغه د لرغوني برم او د بدبې نماينده ګي کوي. د ځينو نومونه يې تعويض شوي او ځينې يې زموږ د معاصر تاريخ له حافظې څخه هېر شوی دي. او لا د دې امکان موجود دی چې نه يوازې د هېواد نوی نسل به يې د زوړ برم او عظمت سره بې تفاوته او بيګانه شي بلکې دا انديښنه هم شته دی چې راتلونکي نسلونو ته به يې هيڅ نوم او نښان هم پاتې نه شي او دا به په حقيقت کې زموږ له لرغوني پرتمين فرهنګ او له تاريخي وديعو سره د بشپړې بې خبرې لامل وګرزي.
نو د دې لپاره چې موږ د خپل هېواد د تېرې د بدبې. شان او شوکت او له تاريخي بډاينو سره د پژندګلوی لړۍ شليدلی نه وي، نو د جګړو په سختو شرايطو کې يعنې د اور. لمبو. لوګيو. د راکټونو. ګوليو. مرګ. ژوبلې. تا امنيو په ډېرو ځورونکو شپو او ورځو کې چې مور او زوی سره يو له بله بيليدل، ما د خپل ژوندانه د وروستنيو قيمتدارو طلايي شيبو څخه په ګټه اخستنې سره. د هغو کتابونو په پاڼو کې چې په عامې کتابخانې او زما په محدوده کتابخانه کې موجود وو خپل دې علمي تحقيقي فعاليت ته دوام ورکړ.
"د هېواد ښارونه او د تاريخ پاڼې" دا اثر لکه چې له نامه څخه يې جوته ده. د هېواد د ښارونو باب د هغو معلوماتو مجموعه ده چې حتی الوسع مې پکې موندلي دي. نو په پوره صراحت سره وا حې د

دغو تيتو پرکو معلوماتو را اخيستل او بيا سره پيوندول او مطلوب بحث ترې جوړول هغه هم په هر اړخيزو نامساعدو شرايطو کې څه آسانه خبره نه ده نو خامخا به بې نيمگړتيا نه وي.

د دې اثر د محتوياتو په بداينو کې چې لا اغيزمني لري هغه دا دي هر ښار د دې تر څنگه چې يې د تسميې د وجهې او د مورخانو او جغرافيا پوهانو په آثارو کې تر څېړنې لاندې نيول شوي دي د هغوئ په څېنو ځانگړتياوو هم يو څه رڼا اچول شوې ده، د بيلگې په توگه لکه د کاپيسا ، بگرام، د ښار د معرفي کولو په بحث کې گورو چې دا ښار نه يوازې د ستر کنيشکا د امپراتورۍ د دوبني مهم شاهي ښار او پلازمينې په توگه بلکې د کوشانی ځلاندې دورې د بودايي آئين او د کوشاني مدنيت د عروج د مرحلې خورا ويانده ممثل بلل کېدای شي.

کله چې زموږ د لرغونی زماني د بخدي کورنۍ د يما د پاچهۍ د ښکلو او لوړو بيرغونو د ښار تاريخي مقام او په دې عصر کې د هغه ام البلاد ښار د معمارۍ عالي سبك او د لوړ مدنيت بيلگی د لوستونکي په وړاندې تجسم پيدا کوي.

د افغانستان زړه يعنې دا په زياتو نومونو ياد شوی کابل د يوې څلور لارې په توگه د تمدنونو او د علم او فرهنگ د متلاقي کېدو د نقطې په توگه د ځانگړې اهميت وړ بلل کېدای شي او لا چې د هغه د بالاحصار د ښار بې ساری عظمت او د بد به او د هغه د غر گوټو پر سرونو باندې د ديوالونو روايتونه ولوستل شي زموږ لرغونی ښارونه هر يو په خپل ذات کې وياړلی تاريخ لري داريه د اورتاکانا کلا هم د خپل پوخوالي له مخې او د معمارۍ د ځانگړي سبك له مخې خورا بې ساری گڼل کيږي.

د دې ښار په ډله کې د آی خانم ښار د خپلو يو لړ مشخصاتو تر څنگه د هغې د کتبې متن هغه د يو لارښوونکی سند په توگه د يو تلپاتې اثر حيثيت لري، د غزني پخه کلا او بالاحصار او د هغه منارونه هغه يادگارونه دي چې د دې عروس البلاد ښار د علم او فرهنگ شهکارونه له هيريدنو څخه ژغوري.

نگاراها را د نارنجانو د ميوو د ښار تر څنگه د طراوت او هميشه بهار ښار او د يو مذهبي ستر مرکز په توگه د گلونو ښار پاتې شوی دی.

که غور او زرنج له تاريخی سيمو څخه يادونه کيږي د دغو ريگو او حماسو په پراخه خاوره کې، د لرغونو عظمتونو، ښکلو ښارونو، مستحکمو کلاگانو، لوړو او پرتمينو کوشکونو او د معمارۍ شهکارونه د تاريخ له حافظې څخه هيريدای نه شي.

د لوگر او گرديز د ښارونو سره په تاريخي او فرهنگي محلاتو کې لکه د ميرزکې د مذهبي او مستظرفه صنايعو د تاريخي آثارو سره آشنا پيدا کيدای شي.

کونړ او د نورستان د طبيعي ښکلو مناظرو او د رودونو په شتون سره، د افغانستان د کشمير مقام جوتوي او د ده په خوا کې د نړۍ د بام په دا بله لمنه کې تخارستانونه او د هغو مربوط ښارونه هر يو د

طبيعي شتمنيو د نجيبه ډبرو او د لعلونو د معدنونو په خوا کې د دې هېواد د بډايه فرهنګونو بيلګې او د کوشاني مدنيت د معرفي کولو د زياتو مثالونو معرف ګڼل کيږي.

اشرف البلاد نه يوازې د کوشاني د ځلاندې دورې د اشوکا د زمانې د مدنيت د کتيبو درلودونکي دی بلکې د پانی پت د ميدان د قهرمان ستر احمد شاه او د ملي جرګو د موسس ميرويس خان هوتک د شهکاريو کيسې هم بيانوي.

که موضوع را لنډه کړم زموږ د هېود دا ټول لرغوني ښارونه او سيمې زموږ د لرغوني تاريخ هغه تلپاتې وديعې دي چې تر آبده به د لوی افغانستان د آريانا او خراسان لرغوني نوم او نشان ژوندي وساتي.

د دې کتاب لومړی ټوک له فهرست، تقريظونو او سريزې پيل کيږي د ښارونو تر پيژندنې وروسته په پايلې او اخيستليکونو پای ته رسيږي.

او دوهم ټوک چې يې هم چاپ ته چمتو دي انشاءالله تعالی وروسته به چاپ شي.

زه له موقع نه په ګټه اخستنې سره د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت د سرحدونو د قومونو او قبايلو چارو د جلالتمآب وزير محترم تورنجنرال عبدالکريم "براهويي" څخه زياته مننه کوم چې د هېواد د لرغونو افتخاراتو سره د خاصې علاقمندی له مخې يې په ډېر اخلاص د دې اثر په دوو ټوکو کې د چاپولو هدايت ورکړ چې لومړی ټوک يې له همدې کتاب څخه عبارت دی.

همدا شان د افغانستان د علومو اکاډمی د مشرتابه په تېره بيا د اکاډمی د بشري علومو د برخې مرستيال زما د روند استاد سر محقق نصرالله سوبمن ، د کوشاني څېړنيز نړيوال مرکز رييس د سر محقق مرستيال نظر محمد عزيزي او د تاريخ او انتوګرافی د انستيتوت آمر سر محقق ډاکتر الف محمد شرر څخه د زړه له کومې مننه کوم چې په ډېر محدود وخت کې يې د دې اثر چاپ ته د چمتو کېدو او د تقريظونو د ليکلو په برخه کې زما څخه هيڅ ډول همکاري و نه سپموله.

*په درنښت*

*پوهاند رازقي نړيوال*

*د کوشاني څېړنيز نړيوال مرکز علمي منشي*



# د ښارونو پېژندنه

## ۱ - کندهار

**(اشرف البلاد)**

زموږ د هېواد د ښارونو نومونه همیشه په هماغه لومړني نوم نه دي پاتې شوي د مختلفو عواملو له کبله د دغو ښارونو بڼه او نوم بدل شوي دي چې کندهار (قندهار) هم له دې ډلې ښارونو څخه دی.

د کندهار (قندهار) نوم دومره تاریخي سابقه نه لري ځکه چې دا ښار په وروسته زمانو کې د ګندهارا د نوم په انتساب سره مشهور شو چې په دې برخه کې د هېواد په تېره بیا خارجي محققانو ډېر څه لیکلي دي.

د تاریخي مدارکو په اتبار پخوا تر دې چې دا ښار د کندهار په نوم شهرت پیدا کړي په بیلابیلو نومونو باندې یاد شوی دی لکه اراکو زیه په اوستا کې هره هوای تي او د داریوش په کتیبو کې Harauuaitsh او په اسلامي دورو کې ارخوذ، ارخد اخذو، رخچ (او په معرب شکل الرخج) یاد شوی دی.

د اسایکلو پیدیای بریتانیکا له مخې هغه خرابې چې په (اولان رباط) کې پرتې دي د اراکوزیه د لرغوني ښار محل دی د ولاړو اوبو لویدیز ته د ترنک د سیند په حوزه کې موقعیت لري او د بار تولد د

عقيدې له مخې په ميلادي اومه پيړۍ کې دا سيمه درخچ په نوم ياده شوې ده.[1]

د سکندر د حرکت په وخت درخچ او اراکوزيه څخه داسې يادونه شوې ده هغه وخت چې مقدوني سکندر د درنګ (زرنج) سيمې فتح کړې درخچ له لارې دا اراکوزيه حوزې ته چې د ننې کندهار سره مطابقت لري راورسيد.[2]

دلته دا خبره فکر ته راځي چې رخچ داراکوزيه يو محل ؤ او ممکن درخچ څخه د کندهار ښار او داراکوزيه څخه مراد د کندهار حوزه ده چې يو د بله سره جلا مفاهيم افاده کوي خو په راتلونکو څېړنو کې بيا دواړه يو مفهوم ورکوي مګر سر او لف کارو په خپل اثر پټانزکې الرخاج (الرخج) بيا داسې معرفي کوي:

الرخاج د کلاسيک اراکوزيه عربي شکل دی او هغه سيمه لرو ډېره د کندهار ولايت ټوله سيمه په غېږ کې رانيسي.[3]

اصطخري بيا درخچ په هکله داسې وايي:

رخچ د يوه اقليم نوم دی او په دې سيمه کې کرنه او ډېره غله موجوده ده.

ابوحوقل ليکي: رخچ د اقليم نوم پنجوايي يې حاکم تشين او بل ښار يې کهک دی د "بلدی" داور (زميندا ور) او بلشل (بالشتان) تر منځه پروت دی زيات اوښان، غوايان او مېږې لري.

حدود العالم رخچ په رخذ ظبط کړې لکه چې ليکي: رخذ يوه سيمه ده، آباده او د زياته نعمتونو ډرلودونکي او يوه جلا ناحيه لري، پنجوری (پنجوايي) چې د رخذ کلي دي. (۱۰۳ مخ)

د هفت اقليم مؤلف چې په ۱۰۰۱ ه پيړۍ کې تير شوی دی. د قندهار په هکله وايي:

قندهار د يو پوخ بند ښار لري وايي هر وخت چې کوم لښکر هغه ښار کلا بند کړي د هغوی په نظر د بند ښار تر هغې پورته دی چې فکر کيږي او د کلا په منځ کې په سنګ خاراکې يو ژور کوهي لري.

د هغې اوبه يې رواني ليدلی دی او کله چې له هغې کوهي څخه اوبه راوباسي د ونو پاڼې او د بوټو ځانګې ترې راوزي او د هغې د ملحقاتو څخه يو هم زميندا ور دی چې د سوري پايتخت ؤ. ځوک چې د غوري پاچاهانو نيکه ؤ او بل يې بست دی چې يو له برمه ډک ښار دی او په دې سيمه کې ګنبدې وي، هلته دوه قبرونه دي.[4]

ابوالفدا هم په يوه ځای کې د سستان، سند او کرمان د ښارونو په ډله کې د الرخچ او کندهار څخه

---

۱ علي احمد جلالي، تاريخ افغانستان از نګاه عسکري، ج ۱، وزارت دفاع ملي، اردو مطبعه، ۱۳۴۶، کابل

۲ پورتني اثر، ۹۴۰ مخ

۳ پښتانه (پټانز) سر اولف کارو، ژباړه شير محمد کريمي - دانش کتابخانه، پيښور، ۱۳۷۸.

۴ غبار، افغانستان در مسير تاريخ، مؤسسه طبع کتب، دولتي مطبعه، ۱۳۴۶ مخ.

يادونه کړې ده او د اتمي پېړۍ مشهور سياح ابن بطوطه کله چې يې د ماورالنهر په هېوادونو کې د خپل مسافرت د واقعاتو په باب خبرې کولې، د قندهار په هکله يې هم کيسه کړې ده.

په همدې شان د هند د وروستيو جغرافيه ليکونکو څخه مرتضی حسين بگرامي په خپل کتاب حديقة الاقاليم (۱۲ پېړۍ) د خراسان تر عنوان لاندې د ښارونو په ډله کې له قندهار څخه هم يادونه کړې ده خو دلته د تامل وړ موضوع دا ده چې دا د قندهار څخه مطلب کوم کندهار دی؟

لکه چې دا پوښتنه تر اسلامي دورې را وروسته په يوه روايت کې داسې بربنډه شوې ده:

... څو کاله وروسته د سنجستان (سيستان) بل عرب حکمران عباد بن زياد چې د الهند سرحدونو حملې وکړې او سيدونکي يې وتښتول. خو دوئ ته يې هم ډېر تلفات ورکړل.

(د اپريل ۶۷۲م / ۵۳ هجري) کې ؤ په دې لړ کې کندهار هم ياد شوی دی [1]

مگر د البيروني له خوا روښانه شوې ده چې دا اوسنی کندهار نه دی لکه چې په (۱۱م) پېړۍ کې د محمود غزنوي په دوره کې يې ليکلي دي. البيروني چې د هندي پاچاهانو په باب خبرې کوي، محمود غزنوي چې په کابل او کندهار کې حکومت کاوه او پايتخت يې ويهيندو چې دا کندهار نه بلکې گندهارا دی [2] د محمود د عمر په وروستيو کې د ده امپراطوري چې تر مشهد، نيشاپور، پنجاب او صوبه سرحد او آمو دريا تر آخوا پورې پلنه شوې وه. د ده د امپراطورۍ زړې (هسته) د اوسنيو غلجيو هېواد چې د کابل او کندهار (چې لا نه ؤ تاسيس شوی) تر منځ سيمه تشکيلوي. [3]

له گندهار څخه د کندهار په مفهوم په زياتو تاريخي پېښو کې يادونې شوي دي لکه "دالپتگين او نه محمود ؤ چه د کابل وادي او پېښور څخه (لا تر دې وخته پورې گنداهار په گندهار سره ياديده او عربي شکل يې قندهار ؤ) د هندوانو د شړلو پرېکړه وکړه [4]

په يوه بله پېښه کې بيا الرخاج A erukhag اوسنی کندهار) زابلستان، غزني جنوب او لويديز سيمه او حتی د کابل د پاچا په نامه ياديدله (پورتني اثر ۱۶۳ مخ) د يو سفريو دودونه ښيي چې دوئ د ۱۴م پېړۍ د پيل تر ۸ هـ پېړۍ پورې د کندهار په شاوخوا کې اوسيدل او بيا پېښور ته ليږديدلي دي. مگر دا د حيرانتيا وړ تصادف دی چې د پخوانی گندهار (د البيروني کندهار) ننني اوسيدونکي "کاکي Khakhay" او غوريا خيل قبيلې څه ډول او څه وخت له کندهار څخه راغلی حال دا چې د کندهار ولايت او ښار وروسته پيدا شوی دی. پوښتنه دا ده چې د افغانستان د دغه جنوب غربي ولايت نوم کندهار څه

---

[1] پښتانه پټمانز. ۱۰۶مخ

[2] هماغه اثر. ۱۶۰ مخ

[3] هماغه اثر. ۱۶۱ مخ

[4] پښتانه (پټهان، د کريمي ژباړه. ۱۸۹ مخ

ډول راپيدا شو؟ په دې کې هيڅ شك نشته چې د محمود غزنوي د وخت د (۱۱ هجري پيړۍ) کندهار چې البيروني ترينه يادونه کړې ده د ګندهار (ننی پېښور وادي) عربي شوی شکل دی. دا د کندهار ښار نه دی او د ټولو مسلمانانو ليکوالو په اثارو کې د کندهار د ښار ذکر نشته، که د کندهار ښار موجود هم ؤ خو د توجه وړ اهميت يې نه درلود او ځېرته د هغه ذکر نه دی شوی.

بيليو عقيده لري چې کندهار د ګندهارا د مهاجرو په واسطه جوړ شوی دی چې د پرديو د يرغلونو څخه له ګندهارا څخه تښتيدلي او دلته ميشته شوی دی. هيرودوتس "ګاندا ريوی **Gandarioi**" خپل نوم دغه نوی سيمې ته ورکړ هغه يرغل چې دوئ وشړل، هيردوتس هغوی "سايتيان **Seythis**" بولي او د دوی د مهاجرت نيټه "۶-۵ م پيړۍ" پيل بولي، له دې څخه ثرګنديږي چې په تاريخي لحاظ به دا خلك سپين هونيان وي او دا سايتيان واقعاً د ګوجرو نيکونه دی.

د نوموړي روايت په حواله دغه مهاجر نه يوازې د ګندهارا نوم خپلې مستعمرې ته ورکوي بلکې لس پيړۍ وروسته بېرته خپل اصلي ټاټوبي ته يوه غښتلی استعماري قوا راليږلی هغه ځوك چې اصلي ټاټوبي ته راګرځيدل د تبعيد په زمانه کې د اسلام د منلو او قبلولو په واسطه يې اصل کور هير کړی و، مګر هغه کاکي او غورياخيل چې راستانه شوی وو په ډېره آسانی سره د پيښور د وادي په شاوخوا کې سيمو کې له نفوسو سره منحل او يو ځای شول چې د همدې حرکت پر بنياد بيليو خپله تيوري تاييدوي.

د بيليو ټينګار په خپله نظريه د تاريخي فك په توګه د ثابت تاريخ په ډول د منلو وړ نه دی، لرغوني فرض شوی مهاجرتونه د اسنادو، مسکوکاتو، ليکنو او کتيبو په واسطه نه وو تاييد شوی، صرفاً داسې تيوري ده چې د ددود "قندهار" د اړيکو له مخې طرح شوی ده.

اسلامي دايرة المعارف **Encyclopaedira of Aslam** د دې تيوري يادونه کوي چې په دې هکله دې نوري ځيرنې هم په راتلونکي کې تر سره شي. د کندهار د دې متن پخواني نظريې کندهار اسکندر جوړ کړي دي او نوم يې "سکندريه" ارا کوزيه **Alexandria-Arachosia** ده او دوئ لکه چې پښتو اريانا دايره المعارف د کندهار د تسميې د وجه په باب وايي:

د کندهار د نامه په هکله (چې پخوا رخچ يا اخذ بلل کېده) بيلا بيلې رای او عقيدې شته دی ځينې يې منشا "الکزاندره" بولي او ځينې نور بيا دا عقيده لري څنګه چې د ګنداهارا مهاجرين دی ځکې ته راغلل نو د ګندارا نوم يې هم د ځان سره راوړو او بيا عربيانو هغه قندهار وباله[1] چې دغه يادونه د ګندهارا څخه دی سيمې ته د ګندهارا يانو چېرې لېږ ديدل تاييدوي. د پټانز (پښتانه) اثر خپل تير متن ته بيا داسې ادامه ورکوي. د کندهار مشابهت له ګندهارا سره چې د کابل سيند د ښکتنی وادي د هندي شاهانو لرغوني پايتخت ؤ هغه لا پخوا اباد شوی و منطقي بريښي قندهار د عربي تذکره ليکونکو له

[1] پښتو آريانا دايره المعارف، ټ۷. تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۵، ۸۴۵ مخ

خوا د ګندهارا عربي شکل دی.

بيليو وايي چې د کندهار کلمه (قندهار) دا را کوزيا د حوزې په باب هغه مهاجرينو ته اطلاقيږي چې په پنځمه ميلادي پيړۍ کې يې له ګندهارا څخه مهاجرت کړي دي او دا پيړۍ د دوئ د مهاجرت د پاره چې د اراکوزيا (ارغنداب) په حوزه کې تر سره شو بيخي سمه ښکاري ځکه چې په همدې وخت کې يفتليانو کابل فتح کړ او دا پيښه د چيني زاير سونګيان له يادونو څخه چې په ۵۲۰ ميلادي کې يې له ګندهارا څخه ليدنه کړې ده او د بودا کچکول يې د سلطان ويس په زيارت کې د ساتنې په حال کې ليدلی ؤ په ډېره ښه توګه څرګنديږي.

ځينې بيا داسې عقيده لري چې په (۵) او (۶) م پيړيو کې د هندوکش د شمالي صفحاتو څخه د هغه جنوبي لمنو ته او د اريانا ختيزو سيندونو او حوزو ته د کوشانيانو د ورتګ په وجه، دا مهاجرتونه منځ ته راغلي دي او ويل کيږي چې ګندهاريانو د (قو) کاسه يعنې کچکول چې د بوديزم له يادګارونو څخه ؤ احتمالاً د کوم بودايي صوفي مهاجر (Mank) له خوا راوړل شوی و.

له کندهار څخه په اسلامي دوره کې يادونه شوې نه ده او همدا شان د غزنويانو په اسنادو کې هم په دې نوم کوم تذکرات نشته دی[1] د موضوع د ښه وضاحت د پاره چې له ګندهارا څخه کندهار ته کومه قبيله راوليږديدله او څنګه يې د کندهار نوم د ځان سره هغې سيمې ته يووړ او بيا بيليو د دغه کچکول په مورد کې زيات معلومات لري او ده دا کاسه (دا کچکول) په ۱۸۷۲ م د سلطان ويس په زيارت کې ليدلی ؤ. چې اوس د کابل په موزيم کې ساتل کيږي. نوموړي وايي چې د دې کاسې قطر ۷ فټه او له يوې توتې تيږې څخه کيندل شوی و. د سلطان ويس زيارت د کندهار له ښار څخه آخوا د کندهار د زاړه ښار په لويديزه برخه کې واقع دی. البته د کندهار زوړ ښار د نادر افشار له خوا وران کړی شو.

(پښتانه ۲۶۳ مخ) او بيا د بودا د اوبو د (کاسې) کچکول سره د يادونې وروسته د کندهار اوسنی نوم د ګندهار سره څنګه انتساب پيدا کړ محترم محمد ابراهيم عطايي په خپل يوه اثر کې په دې هکله داسې معلومات وړاندې کوي.

د هرودت (هيرودوتس) د پکتيکا د څلورو قبيلو د نومونو د يادولو په ترڅ کې لومړنی قبيله ګندهارې ښودلې ده. او وايي چې دا د هغې تاريخي ځمکې (ګندهارا) (د کابل دره تراندوسه پورې) د اوسيدونکو نوم ؤ چې د تاريخ په ټولو دورو کې د "ګندهاري" يا "ګندهاري" په صفت ياده شوې ده.

په اويستا کې هم د يوه پهلوان نوم "ګندهاروا" ؤ او څنګه چې له تاريخي پيښو څخه څرګنديږي. دا قبيله په خپل اصلي ځای کې د هميشه د پاره نه ده پاتې شوې، بلکې ځينې کورنۍ يې نورو ځايونو ته تللې دي لکه د هندوکش شمالي خواوو ته تر آمو پورې، سيستان او د ارغنداب پولو ته ورکوچيدلې دي

[1] پښتانه ټيمانز هماغه اثر، ۲۶۳ مخ.

ځوك وايي چې د "كندهار" څخه اخيستې شوى ده.

ښاغلى كهزاد په خپل كتاب تاريخ افغانستان كې دا نظريه هم تر يوه ځايه معقوله بللې ده او ليكي چې ځو ځلي ګندهاريانو د كابل د رود له شرقي حوزې څخه د ارغنداب حوزې ته مهاجرت كړي دي چې يو مهاجرت يې په ۵/۶ مسيحي پيړۍ كې صورت موندلي دي. په دې مهاجرت كې يې د "قو" د اوبو كاسه له براندوس څخه ارغنداب ته يووړه چې د بوديزيم يو مهم يادګار ؤ.

بې مورده به نه وي چې د كندهار اوسنى نوم د "ګندهار" له نامه څخه اخيستى شوى وي.

"ګندوفار" د "پهلوان" د خپلواك كهول دړ لوى پاچا ؤ او ده د ارغنداب په حوزه كې يو ښار هم پخپل نامه يا د ده و نامه ته نژدې جوړ كړى ؤ.[1]

د اوسنى كندهار كلمې د غوريانو د واكمنى تر وختـه پورې هم كوم خاص شهرت نه درلود، او د غزنويانو په دوره كې هم د كندهار څخه كومه يادونه شوى نه وه.

خو تر دې وروسته يې شهرت مخ په زياتېدو شو. او دا په دې معنا چې د كندهار (قندهار) نوم په بيلابيلو تاريخي اسنادو كې راښكاره شو چې دا موضوع د دې ښار د جوړېدو د نيټې سره سم تړاو لري.

پښتانه (پټانز) په اثر كې په دې هكله په ليكل شوو واقعاتو كې داسې يادونې شوى دي:

د كندهار ښار وروسته له هغه جوړ شو چې په ۱۱۵۰ م كې علاوالدين غوري جهانسوز د بست ښار او غزني په ايرو بدل كړ.

د چغتايي جنګيزيانو په زمانه كې، د كندهار د ښار څخه يادونـه شوى ده چې په ۱۲۸۳ م د هرات د كارت كورنى د حكمران له خوا ونيول شوه ځوك چې د مغلو د فيوډالي سيستم استازې ؤ.

تر دې وروسته ګوډ تيمور كندهار ونيو او بيا د ده لسمي پير محمد تـه وركړ شو او پـه راوروسته د ورو كې كندهار چې سلطان حسين بايقرا (۱۴۳۸ – ۱۵۰۵م) كې پاچاهى ته ورسېد نومورې هم مغول او د بابر د تره زوى ؤ. د كندهار نوم د ده په زمانه كې د لومړى ځل د پاره د يوې سكې پر مخ راښكاره شو. د ده واكمنى ته په نژدې وختونو كې ذوالنون بيګ چې زميندا ور يې د خپلې واكمنى په برخو كې ورګډ كړ نو كندهار يې هـم خپل پايتخت وګرزاوه.[2]

بيا وروسته كندهار د تيموري كورنى د حاكمانو په لاس كې و او له درو خواوو څخه تر تهديد لاندې و: ازبك شيباني خان (چې بابر له ماورالنهر څخه شړلي ؤ) صفوي پاچا شاه اسمعيل او بابر هر يوه غوښتل چې كندهار ونيسي.

كله چې بابر په ۱۵۰۴ م كې كابل ونيو او شل كاله يې په دې هيله او چمتووالي تېر كړل چې هند

[1] پښتانه (پټهان) ۶۲ مخ

[2] پښتانه (پټانز) هماغه اثر، ۲۶۳ مخ، اريانا مجله، ۲ ګڼه ۱۳۳۵، كابل

ونيسي، تر څو چې يې د خپلو سنګرونو تر پياوړي کولو وروسته د هند نيولو ته اقدام وکړ. او د کندهار نيول ده ته بېخي زيات ضرورت ښکاريده او د سرحدي لشکر کشيو په ترڅ کې يې څو پلا د کندهار د نيولو قصد وکړ بالاخره په ۱۵۲۲ م کال کې يې کندهار ونيو.

دا ويلای شو چې بابر د کابل او هند د فتوحاتو په لړ کې تل دا هيله درلودله چې دواړه کندهار (لرغونی ګندهارا او نوی جنوب غربي کندهار) د خپل کنترول لاندې راولي.[۱]

په يو بل روايت کندهار د سلطان حسين مرزا صفوي، شهزاده ولايت شو او له ده څخه وروسته د ده زوی مظفر مرزا ته ورکړ شو.

په ۱۵۸۷م چې راجا بيربل مړ شو د صفوي تاج و تخت په اصفهان کې لوی شاه عباس ته ورسيد. کندهار هم د صفويانو د سلطنت يوه برخه ده. دوه کاله وروسته ملک سدو (د سدو زو نيکه) د کندهار د شاوخوا ابداليانو مشر وټاکل شو

د پورتني څه اوږدې څېړنې څخه بېخي په ډاګه کيږي چې د غوريانو تر واکمنی د مخه کندهار د کندهار په اوسني نوم نه ياديده او په هر بل نوم چې ياديده هغه د کندهار (قندهار) نوم نه ؤ.

خو بيا څه وخت چې د کندهار ښار په لومړنی شکل آباد شو نو تر دې وروسته په تاريخي اسنادو کې په واضح او بې احتماله شکل يې يادونې شوی دی تر هغې چې لوی احمد شاه بابا هغه په نوی شکل جوړ کړ.

<u>کندهار په افغانستان کې د هند د مغولي پاچاهانو په وخت کې</u>

د کندهار زوړ ښار چې نادر افشار هغه په ۱۱۵۱ هجري کې وران کړ د لکه چې يا قيتول د غره په ختيزه لمنه کې پروت ؤ چې دا غر شمالاً او جنوباً امتداد لري او د دې غره د پاسه د کندهار کلا او ارګ جور شوی ؤ د اکبر نامي او آئين اکبري مؤلف او د اکبر د دربار مشهور مؤرخ او ليکوال ابو الفضل علامي په قول د کندهار ښار دوې دروازې درلودلې او ډېر مستحکم حصار ؤ د هغې کلا ډېره سخته وه او ګرد چاپيره ترې خندق هم موجود ؤ.

د حصار په منځ کې د ارګ لوی برج واقع ؤ چې اوس يې هم بقاياوې شته دی. او د هغه لوړوالی سلو مترو ته رسيږي او خلک ورته نارنج وايي

سربېره پر دې د ننه په ښار کې د خاکستر برج او نوی برج په نوم برجونه هم شته دی او د نومورې په ختيز کې موقعيت لري. هلته د اوبو، حوض او د ودانيو آثار ليدل کيږي چې د مير معصوم په قول د هغه د پاسه آتشکده ده.

له پخواني زمانې څخه دا عمارت له اومو خښتو څخه چې د هرې خښتې اوږده او پسور دوه ګزه او

---

[۱] همدغه اثر. ۲۶۴ مخ

وسط يې يوه لويشت وه. او د اکبر پاچا تر زماني پورې په خپل حال موجود وو او کوم زيان ورته نه ؤ رسيدلی.

د شاه جهان په زمانه کې د دې د غره د پاسه درې برجونه هم موجود وو په دې دوره کې د کندهار حصار يو شمېر دروازې درلودلې.

- د چهل زينې په طرف د ښار شمال ته دروازه ګندګان.
- د شيخ ولي دروازه.
- د ښار جنوبي لور ته د ماشور دروازه.
- د ښار ختيزې خواته نوی دروازه.
- د خضري دروازه.
- او قيتول ته نژدې د علي قابي دروازه.

د ابو الفضل د تصريح له مخې د قندهار د قاضي شمس الدين علي باغ، چهار دره او زوړ ښار چې دا د ماشور د دروازې په اطرافو کې واقع و.

او د ارګ په د ننه عمارت کې د خچه (آقچه) په نامه يو برج ؤ. او د ګنج علي خان باغ هم دې شخص د شاه جهان په عصر کې (۱۰۳۲ هجري) د صفوي دربار له خوا چې د کندهار حکمران ؤ د ښار په اطرافو کې يې جوړ کړي ؤ.

د غره په لمنه او د ښار په داخل کې يوه کلا وه چې د وسلې او جبه خانې مخزن شميرلی کېده او له هغه ځايه د ماشور تر دروازې پورې د ښار په منځ کې يو اوږد بازار و.

د هغو دروازو څخه چې ابو الفضل يادې کړې دي نواب صمصام الدوله يوه بله دروازه هم د "ويس قرن" په نوم يادوي. کله چې په ۱۰۵۸ هجري کې د ايران پوځ کندهار محاصره کړ شادي خان د دې دروازې ساتونکی ؤ.

اوس هم د کندهار د زوړ ښار ختيزې خواته ننبتي يو مزار د سلطان ويس په نوم شته دی نو ځکه د دې دروازې محل هم د ښار شرقي خوا ته کل شوی دی.

د کندهار حصار لکه چې پرې خبرې وشوې په ګورګاني دوره کې موجود ؤ او شاه جهان تر اتو لکو روپو پورې د هغه د تعمير په ترميم ولګولې.[1]

شاه جهان همدا شان د کندهار، بست او د زميندراور د کلاګانو په جوړولو اته لکه روپۍ مصرف کړې بايد زياته شي چې د هند د مغلي پاچاهانو په دوره کې کابل او کندهار له ابتدا څخه دارالقرض وو او په دې دورو کې دلته زيات مسکوکات وهل شوي دي چې د کابل د موزيم د اسلامي مسکوکاتو مهمه برخه

[1] تاريخ افغانستان در عصر ګورګاني هند مؤلف عبدالحي حبيبي ۲۰۵ ۲۰۷- مخونه

شمېرل کېږي.

د ابوالفضل د تصريح له مخ د اکبر په زمانه کې کابل له هماغو څلورو ولايتو څخه ؤ چې اکبري طلاوي پکې سکې وهل کيدلی د سپينو زرو او مسوسکي هم دلته وهل کيدلي لکه چې ليدل کيږي زياتې مسي سکې د زرم هجري کال او تر هغه وروسته په کندهار کې وهل کيدلی

په جهانگيری عصر کې هم دا سکې د آسماني دولس گونو برجونو په تقويمي شکل ضرب شوی دی.

په همدې شان په يوولسمه پيړۍ کې چې د جهانگير زمانه ده د هغه فلزي روپی په کندهار کې وهل شوی او دا بيت پرې منقوش ؤ:

ز جهانگير شاه اکبر شاه - سکه قندهار شد دلخواه.[1]

## د کندهار ښار د نادر افشار په وخت کې

هغه وخت چې نادرشاه د خپلو لښکر کشيو په ترڅ کې چې د هېواد په لويديزو او جنوب لويديزو سيمو کې يې تر سره کړي او د کندهار ښار يې د خپل يوه پوځي مرکز په توگه وگرزاوه، نو بيا يې هلته يوه پخه کلا هم جوړه کړه په دې کلا يې هغه وخت شروع وکړه چې د شير سرخ د مزار په سيمه کې يې خپله قرار گاه واړوله او بې له ځنډه يې په دغه پوځي کلا بنا وکړه. د دې کلا د ديوالونو او برجونو د جوړولو په کار کې د کليو بې وسلې بزگران او افغاني بنديان وگمارل شول. او دا کلا په "نادر آباد" باندې ونومول شوه د دې کلا ويجاړ شوی ديوالونه اوس هم موجود دي نادر افشار د دې پوځي کلا په واسطه وکړای شو چې ځان يې د کندهاريانو د شبخونونو څخه وژغوره.

د کلا د ديوالونو په يوه کيلو متری کې يې جنگي برجونه جوړ کړل چې په هره يوه کې توپک لرونکی پوځيان مؤظف وو. د دوو برجونو تر منځه مسافه د سلو مترو په اندازه وه او لس لس تنه پکې وگمارل شول. په دې توگه نه يوازې د کندهار د ښار محاصره سخته کړای شوه، بلکې ځانته يې ښه پناه گاه هم جوړه کړه.[2]

په يوه بل روايت د کندهار د ښار حصار په ۱۱۵۱ هجري قمري کې د نادرشاه له خوا جوړ شوی دی نادر افشار په ۱۱۵۰ هجري کې د کندهار هوتکي حکومت ته سقوط ورکړی ؤ له ډېر پخوانه هغه موجود ؤ چې د عبدالحميد په قول مغولي شاه جهان هغه د اتو لکو روپو په لگښت بيا له سره ترميم کړ.[3]

بايد وويل شي چې د نادر افشار په جگړو کې د کندهار په شا و خوا کې يو شمېر نور پخو کلاگانو ته هم اشاره شوی ده.

---

۱ تاريخ افغانستان در عصر گورگاني هند ص ۲۰۸.

۲ مير غلام محمد غبار. افغانستان در مسير تاريخ، ۱۳۴۶ کابل.

۳ عبدالحي حبيبي، تاريخ مختصر افغانسان، انجمن تاريخ، ۱۳۴۹ کابل، ۲۵۴ مخ

## د کندهار ښار د احمد شاه بابا په وخت کې

د کندهار د نوی ښار بنسټ د احمد شاه بابا د يادګارونو څخه دی. او هغه وخت چې احمد شاه بابا د پاڼي پټ له جګړو څخه راستون شو په يوه پراخه سيمه کې يې د کندهار د ښار بنسټ کېښود. لرغوني نوم يې اراکوزيه ورپسې يې نور نومونه هم درلودل خو وروسته په احمد شاهي ښار او بيا د اشرف البلاد په نوم ونومول شو او بالاخره دغه ښار د کندهار د ښار په نوم شهرت پيدا کړ. د کندهار ښار په کلاسيکي سبك په مستطيل شکل جوړ شوی او يو حصار ترې راتاو شوی ؤ او لوړ برجونه يې درلودل.

د دې ښار څلورو خواوو ته څلور دروازې وې د کندهار ښار سلامخانه او شاهي ارګ هم درلود د کندهار د ښار دروازې دا دي.

- دروازه د شمال بازار د عيدګاه د دروازې او يا د شاه بازار په نوم يادېدله.
- جنوب ته د شکار پور دروازه يا د شکارپور بازار
- شرق ته د کابل دروازه
- شمال ته د هرات دروازه

په دغه دوره کې تر کابل وروسته کندهار زموږ په هېواد کې دوهم مقام درلود.[1]

**خاطره:**

بايد عرض وکړم چې د اخستليکونو د محدوديت او د امکاناتو د نامساعدت په وجه ممکن زما دا تحقيقي، تاريخي څېړنه بې نيمګړتيا نه وي، هيله ده چې معذرت به مې ومنئ.



[1] محمد اکبر شورماچ، جغرافيه عمومی افغانستان. انتشارات زوري، کابل. ۱۳۵۰. ۲۸۰ مخ



# ۲- کابل

## (د افغانستان زړه يا څلورلارې)

کله چې د کابل نوم اخيستل کيږي نو بې شکه د سړي وړاندې د کابل کهندز د کابل بالاحصارونه، شير دروازه او اسمايي غرګوټي او د هغوئ پر سر پاخه ديوالونه د کابل لرغوني توب او د هغه لرغوني څېره، د کابل د ښار دروازې، د کابل تاريخي پيښې، تجارتي مرکز، څلور لارې، پوځي، مذهبي، اداري او سياسي موقعيت او د داسې نورو تاريخي پيښو او موضوعګانو پس منظرونه مجسم کيږي.

ښکاره ده چې د کابل لرغوني تصوير د هغه د اوسنی تصوير سره بيخي زيات توپير لري او دا ځکه چې د کابل ښار پخواني مظاهر له منځه تللي او نوي مظاهر پکې رامنځ ته شوي دي کاشکې د کابل د ښار هغه لرغوني تصوير په ټوله معنا خوندي پاتې واى چې اوس د هغه له رويه د کابل لرغوني څېره په تمامه معنا معرفي کيدلاى شوه ځکه چې د کابل د هغو لرغونو مظاهرو څخه يوازې د کابل کهندز (بالاحصار) د شيردروازې او اسمايي پر څوکو ديوالونه او د کابل قلعه جنګي د نمونې د مثال په توګه د دې امکان ورکوي چې د کابل سوق الجيشي او نظامي موقعيت. او د هغې زمانې د تعميراتي هنر او سليقې کيفيت او په خلص مفهوم د کابل د پخوانيو زمانو د برم او د بدبې ډيرى وياندې بيلګې راجوتې کړي.

افغانستان د آسيا د زړه په توګه او کابل د دغه زړه د هستي په توګه د تاريخ په پړاوونو کې هميشه د خپل ژوندي‌توب، اغيزمن توب، ګټور تحرک او فعاليت په دوامداره توګه جاري ساتلى دى

او په هميشني توګه يې دا تيوري او دکتورين محقق او په اثبات رسولي دي چې وايي:

هر هغه جهاني او يا سيمه ايز قدرت چې په افغانستان باندې حاکميت ولري، پر ګاونډيو هېوادونو تسلط تر لاسه کولای شي او بيا په افغانستان باندې حاکميت درلودل هغه وخت امکان پيدا کوي چې په کابل کې واکمنی ولرلای شي.

د دې ادعا د ثبوت ډېر زيات شواهد موږ د خپل هېواد د تاريخ په دې وروستيو لسيزو کې د سر په سترګو ليدلي او وينو يې، پخوانيو او وروستيو حکومتونو يوازې په کابل کې حکمروايي درلودله او په همدې اعتبار په نړيواله سويه د يوه دولت په حيث پېژندل کېدل.

زه د کابل معرفي په دې څېړنيزې او تاريخي ليکنې کې د کابل د پورتنيو يادو شوو محتوياتو د تاريخي پس منظر او د کابل د تاريخي ښېړې په باب رڼا اچول غوارم چې طبعاً دا مطالب د کابل د تسميې وجه، لرغوني موقعيت او څېړې د کابل د ښار د پراختيا د کابل کهندز (بالاحصار)، شيردروازې او آسمايي غرګوټو د تسميې د وجهې، او د هغو پر سر ديوالونو، جنګي کلا او داسې نورو تاريخي پس منظرونو او لږو ډېر د تاريخي واقعاتو په چوکات کې او هغه هم د هغو باندنيو ختيز پېژندونکو، تاريخ او جغرافيه پوهانو، سياحينو، نورو هېوادونو پياوړو پوهانو او ليکوالو د نظريو، د عقيدې په استناد بيانيږي، هغه چا چې کابل يې په خپلو سترګو ليدلی او يا د کابل په باب د پراخو معلوماتو دلودونکو وو. چې دا دی دلته په عمومي ډول د کابل د پېژندنې موضوع په لاندنيو برخو کې تر څېړنې او کتنې لاندې نيول کيږي.

۱- کابل په تاريخي آثارو کې او د هغه د تسميې وجه.

۲- د کابل د لرغوني ښار موقعيت، د هغه څېره او د هغه پراختيا.

۳- د کابل کهندز او بالاحصارونه.

۴- د شيردروازې او آسمايي غرګوټي د تسميې وجه او د هغوی د پاسه ديوالونه.

۵- کابل د څلور لارې په توګه.

۶- د شير آباد ښار او جنګي قلعه

بايد وويل شي چې د دې موضوع ګانو د څېړنو په ترڅ کې د هغوئ په اړوند تاريخي پيښې په مختصر ډول بيانيږي کومې چې هغوی ته تاريخي استناد او مدلل توب ورکولای شي.

کابل زموږ د هېواد د ډېرو لرغونو او مهمو ښارونو څخه يو ښار دی يا په بل عبارت کابل هغه نوم دی چې د لرغونو پېړيو راهيسې د زړې آسيا د جغرافيا او تاريخ په پاڼو کې ځای لري.

دا نوم هغه ښار ته اطلاقيږي چې د هميشه د پاره د مقتدرو پاچاهانو او پياوړو واکمنانو د تمدن او سلطنت مرکز ؤ، که څه هم تر اسلام نه د مخه د کابل سياسي موقعيت دومره څرګند نه دی. خو دومره

معلومه ده چې کابل زياتې پيړۍ د مخه حتی د مقدوني سکندر د عصر څخه هم د مخه موجود ؤ او د سکندر مؤرخانو په مکرر ډول له هغو څخه يادونه کړې ده.

د طبقات الارضي په اصطلاح کابل يوه "ته کاسه" يعني "ښکته کاسه" وه چې په هغې کې د نږدې نقطو له ارتفاعاتو څخه اوبه راټوليږي او يا په بل عبارت د اوبو د راټوليدنې ډنډ دی. که د کابل کاسې ته په يوه لنډ نظر وکتل شي نو ليدل کيدای شي چې په شمال کې يې د خواجه رواش چمن په لويديز کې يې د بيني حصار چمن او په جنوب کې يې د حشمت خان قلعه چمن پروت دی او هغه اوبه چې له لوړو برخو څخه راښکته کيږي مجرانه لري او په بيلابيلو کاسو کې راټوليږي چې اوس هم د کابل په شاوخوا کې د غه شواهد ليدل کيږي او څرګنده ده چې په پخوانيو زمانو کې رودخانې د مهاجرينو د تګ او راتګ طبيعي معبرونه وو، کلي او ښارونه د دغو رودخانو په غاړو آباد شوي وو.

د کابل څخه په ډېرو زياتو تاريخي اسنادو کې يادونې شوې او په مختلفو مفهومونو د هغه د تسميې وجهې تعبيرې شوې دی. لکه چې د کابل ښار د کابل د درياب په نوم په ويدي سرودونو (ويدې سرودونو) کې چې معمولاً د هېواد ډېر داسې ځايونه د سيندونو په نامه ياد شوي دی کابل هم د "کوبها" په شکل په تکرار سره راغلي دي. چې د "کوبها" په کلمه کې د کابل سيند ډېر پخوانی نوم چې "کو" د "اوبو" په معنا په "الف" باندې د "واو" په بدلون اوس هم د کابل په کلمه کې هغه له منځه تللی نه دی.

د شاعرانو د ادبي صنعت او تخليق له مخې چې کابل او ګل د کلمې په منځ کې "اوبه" وينو او د فيلالوژی د حقايقو له مخې دغه حقيقت ته نژدې خبره ده يعنې "ك آب ل" چې دلته ګل له کل څخه مانوس شوی شکل ګڼل شوي دي په يوه بل روايت يو وخت کابل ته بګرام انتساب ورکړ شوی ؤ او دا هغه زمانه ده چې بګرام د ګندهارا او يفتليانو د ادارې مرکز مقام هم درلوده.

لکه څنګه چې د کابل څخه په ويدې سرودونو کې د کوبها په نوم يادونې شته دی په همدې ډول د هغه د قدامت له مخې په اوستا کې هم د ۱۶ ګونو مځکو څخه "اومه مځکه" د "ويکده ته" په نوم ياده شوې او معمولاً پوهان دا اومه مځکه کابل بولي او د دې مځکې د حماسې پهلوانانو څخه "کرسپه" چې ډېر شهرت لري او د ده د پهلواني د نوم او کارنامو منشا چې وروسته کابل او کابلستان ته نسبت ورکړ شو له همدې ځای څخه نشئت کوي.

له ميلاده درې پيړۍ د مخه يو يوناني مؤرخ "اراتوسنس" په دې سيمه کې د يوه ښار نوم اخلي چې "اورتسپانا" يا "اورتسپنه" په نوم چې پوهانو د بطليموس له متونو څخه چې نوموړې يوناني مصري جغرافيه ليکونکي ؤ په دوهمه ميلادي پيړۍ کې دغه مفهوم په کابل باندې تعبير کړی دی چې د څلور لارې معنا ورکوي.

د احمد علي کهزاد د ليکنې له مخې چې د کابل نوم د "کوبها" په شکل راغلی او د دارمستر د "زند"

او "اوستا" د ترجمې په اعتبار د ده په قول "دیگره ته" او د هیرودت په قول "کسپا تیرودس" او د استرابون په قول اورتسپنه یا څلور لارې لیکل شوی دی.

او همدا شان "کوفن" "کوفس"، "کاوفو"، "کاروارا" یا "کابورا" د بطلیموس له قوله لیکلی دی.

د هند د پخواني جغرافیې په کتاب کې د کنگهم د یادونې له مخې د کابل ناحیه د لومړۍ ځل د پاره د پتولمی (بطلیموس) چې د کابل خلکو ته یې د "کابیلتو **Kabolito**" او مرکز ته یې "کابورا **Kabura**" وایه او "اورتاسپانا **Ortospana**" نوم لیکلی شوی دی.

د پلیني په ځینو کاپي گانو کې د "اورتمه سپانوم **Ortospananum**" چې ویلسن یې گومان کاوه په قوي احتمال سره "اردهشتانا **Orddhashan**" سانسکریت کلمه ده چې د لوړ ځای او یا لوړ ښار معنا ورکوي.

هېوان تسنگ هم همدا نوم د کابل ناحیې ته ورکړی دی.

په تاریخي منابعو او د چین په پخواني جغرافیه کې هم له کابله یادونه شوې. ده "دیموزات" د "چین د امپراطوری پراختیا" په کتاب کې د "تانك" په تاریخ کې د "کاویو" څخه د یوه هېواد یادونه کړې او هغه ته یې د کابل سره مطابقت ورکړی دی.[1]

"ریتر". "**Ki Pin**" چیني نوم په "تانك چو" کې راغلی او د کابل څخه یې شمېری او د چینایانو دا غربي هېواد له پنځمې پېړۍ راهیسې پیژانده او همدا وجه وه چې هغه ته یې "کوفین **Ko-phene**"[2]

لسترنج په خپل کتاب کې "جغرافیاي تاریخي خلافت شرقي" ۳۷۴ مخ کې لیکلی دی چې اصطخري کابل ته "اطابان" وایه چې معمولاً په کابل یې اطلاق کېده لکه چې د مخه وویل شو بطلیموس چې په دوهمه پېړۍ کې یې ژوند کاوه د پارو پا میزاد د ښارونو او کلیو په جمله کې د "کارورا" په نوم له یوه ښاره یادونه کړې چې پوهان د هغې سم تلفظ کابورا قبول کړی دی نوموړي اورتسپانا او کابورا دواړو ته "بازلیوس" یعنې شاهي ښار هم وایي چې دا خبره د کابل د ښار په تاریخچه کې خاص اهمیت لري د کابل وروستنی تلفظ "کاول" یعنې کابل دی چې "کاول" د "پراچي" او "اورمړی" د لهجو د تاثیر له مخې د یفتلیانو په وخت کې رامنځ ته شو او دوهم مفهوم یعنې کابل په "پهلوي ادبیاتو کې د "بندرهش" په متن کې ذکر شوی دی لکه کاول (کاولستان)، زاول (زاولستان) او نور دا تلفظ د پنځمې میلادي پېړۍ راهیسې د یفتلیانو سره په یوه وخت کې معمول شو کابل په کاپل هم تلفظ شوی دی چې نژدې له زرو کلونو راهیسې د کابل په نوم یې شهرت موندلی دی.

یعقوبي په دریمه پېړۍ کې د کابل له ښاره یادونه کړې او د کابل لوی ښار ته یې "جروس" ویلی دی.

---

[1] آریانا مجله، ۲۸ گڼه، ۹۶ مخ

[2] میر غلام محمد غبار، جغرافیاي تاریخي افغانستان، ۱۳۶۸، ص ۱۹۶ – ۱۹۷

اصطخري ورته "طابان" يا "اطابان" وايي د مقدسي حمدالله قزويني او ابن بطوطه په آثارو کې چې دی وروستنی شخص يوه پيړی وروسته کابل ليدلی ؤ وايي:

کابل پخوا يو لوی ښار ؤ او اوس د يوه کلي په توګه دی ۱

لنډه دا چې په زياترو تاريخي مدارکو او بيلابيلو تاريخي پړاوونو کې د کابل څخه په مختلفو نومونو يادونې شوی دی.

## د کابل د تسميې وجه:

په تېر بحث کې هم تر يوه حده د کابل په باب او تقريباً د هغه د تسميې د وجهې په باب لکه د کاول څخه کابل اخيستل شوی شکل دی اوږدې خبرې شوې. خو دلته به د کابل د تسميې د وجهې په باب د يوې محلي کيسې روايت هم راواخلو چې وايي:

په تېره زمانه کې يو پاچا د لښکر سره کابل ته راورسېد. کله چې يې وليدل چې ټول د اوبو، لاندې وو لکه چې د دې قول په تاييد د بګرامي، د قلعه حشمت الله خان مقابل نيزارونه، جبه او بيني نيزار ډنډ، د خواجه رواش چمن او داسې نور ځايونه د دې اوبو په منځ کې يو کوچنی ټاپو ښکاريده.

پاچا لږ مخه د دغو اوبو په غاړه تم شو او بيا ورته وزيرانو مشوره ورکړه چې د دغو اوبو څخه د تيريدلو او ټاپو ته د ورپوري وتلو په مقصد يوه زياته اندازه واښه ضرور دی چې هغه په اوبو کې واچول شي او بيا پرې خاورې ور تخته کړي نو په کراره به ترې پل جوړ شي

د پاچا په امر يې دواړه د ښار د شاو خوا د زراعتي مځکې څخه واښه راټول کړل او اوبو ته يې واچول او د پاسه يې پرې خاورې ور تخته کړی دا وه چې يو ډول پل جوړ شو او لښکريان ټاپو ته ورپورې وتل هلته يې وليدل چې يوه موسيقي نوازه کورنۍ په پوره خوښۍ او کراری سره هلته په ساز او خوشالۍ مشغوله ده.

دغه پل چې د وښو پل يعنې "کاه پل" ؤ چې د هغه په انتساب هغه ټاپو د کابل نوم واخيست او وروسته دغه ځای په کابل مسمی شو، او هغه کابلي موسيقي غړونکی کورنۍ د ښار په دې محله کې چې خرابات ورته وايي هستوګنه شوه نو څرګنده ده چې په دې شان "پ" د "ب" په بدلون سره هغه ځای د کابل نوم وګرزيد. ۲

## د کابل د لرغوني ښار موقعيت، د هغه څېره او پراختيا:

پخواني کابل چې هر چېرته موقعيت درلود، پروت به ؤ خو محققه خبره دا ده لکه چې د کابل په

---

۱ احمد علي کهزاد، افغانستان در پرتو تاريخ. ۱۳۴۶ ص ۲۰۴ - ۲۰۵

۲ اريانا مجله، ګڼه ۹، ۱۳۳۴، مخ ۴ - ۵

غرونو باندې د هغه دیوالونو ظهور وکړ د ښار د ثقل مرکز د شیر دروازې او آسمایي غرګوټو منځ ته پراختیا وموندله.

د تاریخي شواهدو له مخې د کابل د اوسنی ښار موقعیت د هغه د پخوانی موقعیت سره پوره توپیر درلود، دا ځکه چې پخوا د هغه موقعیت د لوګر د سیند په دواړو غاړو کې ؤ، ښاغلی احمد علي کهزاد په خپل اثر (افغانستان در پرتو تاریخ) کې په دې هکله په لاندې ډول څرګندونې لري.

د تاریخي مدارکو په استناد یو وخت د کابل ښار د لوګر د سیند په وادي کې پروت ؤ چې د دوهمې څخه تر دریمې پیړۍ په اوږدو کې د "چکري" د غره سلسلو په بیخ کې یې موقعیت درلود. او ورو ورو له هغې حوزې څخه یې د کابل رودخانې دواړو غاړو ته محل بدل کړ، البته د دې ښار پراختیا په لومړی سر کې د مرنجان د تپو غربي لمنې ته چې د حضوري چمن د کلوپونو او نندارتونونو ساحه پکې شامله وه او بیا د آسمایي د غره شمالي لمنې یې احتوا کولې.

ځینو مؤرخانو د دې ښار موقعیت یو څه ښکته او پورته ورې دي.

په یوه بل روایت کابل د جغرافیوي موقعیت له پلوه د څو تاوو راتاوو پرتو غرګوټو او غونډیو لکه د مرنجان تپه، کلوله پشته، بي بي مهرو او داسې نورو په منځ کې پروت دی. دلته د پخوانیو یادو شوو روایتونو په تایید تر اسلام د مخه هم ودانی وجودې وې چې تاریخي سابقه یې تر میلاده دوه پیړۍ پخوا زمانې ته رسیږي.

هغه مسکوکات چې د حضوري چمن د کول څخه تر لاسه شوی دی وایي چې ۳-۵ پیړیو تر میلاده او مخه هم په دې سیمه کې ودانی موجودې وې خو کله چې مقدوني سکندر او ځینې سیاحان د دې ښار څخه تیر شول او توقف یې پکې و نه کړای شو نو له دې څخه دا خبره جوتیږي چې کابل تر اسلام د مخه که څه هم ودانی او معبدونه درلودل خو بیا یې هم دومره اهمیت نه درلود او دا ځکه چې د ده په ۶۰ کیلو متری کې د بګرام ښار د زیات اهمیت وړ بلل کیده او د بګرام دا ښار د کوشانشاهانو په دوره کې پایتخت هم وګرزید.

اصلي خبره دا ده چې د کابل لومړنی هسته چې د یوه کلي په شکل یې درلود په دوهمه، دریمه او څلورمه میلادي پیړۍ کې د چکري د جنوب شرقي زاویې څخه په تدریج سره شمال غربي خواته تغییر محل وکړ، کمري، شیوکي، د تخت شاه لمنه، زنبورک، جبه کهنه او بالاخره هغه پوزي ته وروغزیده چې د شیر دروازې، آسمایي د پخوانیو دیوالونو، بارو، برجونو او بالاحصار، ګوشه ایزي بقایاوې یې لیدلای شو. له دې نقطه نظره د محل د بدلون له سیر وروسته بیا یې هم هماغه شمال غربي استقامت تعقیب کړی، له بالاحصاره او د هغه له خرابو څخه د کابل د سیند حوزو ته د ښار ودانی را نقل شوی دی.

په لومړی مرحله کې د ښار آبادی د کابل د سیند ښی خواته (د غرب له خوا ښي لاس) او بیا وروسته

کم کم کين اړخ ته مخ په شمال غرب پراختيا موندلې ده. په دې ترتيب له چکري څخه تر شير دروازې، کلوله پشته، سپين کلي، مهتاب باغ او دارالامان، د هغې ساحې پر مخ چې د وخت په تېرېدلو سره د کابل ښار پراخوالي موندلي او د ثقل مرکز يې هم بدلون خوړلی دی او بالاحصار يې د چکري پر ځای په منځنۍ تکی کې پاتې شوی دی.

د پخوانيو يادوو شوو مفکورو په تعقيب او پيروی احمد شاه بابا هم کابل له خپل نظره نه ؤ غورځولی او غوښتل يې چې خپل مرکز يې وګرزوي نو ځکه يې په ۱۱۶۶ هجري کې پر کابل باندې د ديوال د راګرزولو او احاطې (ربض) امر صادر کړ او سردار جهان خان دغه ديوال په څلورو مياشتو کې پای ته ورساوه.

د دغه ديوال يو اړخ د اندرابي د ماشينخانې د برخې څخه د ګلستان د سرای ... تر پايه او بل اړخ يې د خاصې سلامخانې څخه (دارالاماري سيمه) د بابا کيداني (عدليې وزارت) د زيارت څخه تيرېږي او په يوه کږ ليچ سره تر لاهوري دروازې پورې رسيږي بل اړخ يې د چنداول څخه تيريږي او د ماشينخانې -په شاوخوا پای ته رسيږي د کابل ښار دغه ديوال څو دروازې درلودلې چې په لاندې ډول دي:

- په دهمزنګ کې د کندهاريانو دروازه.
- د خاصې سلامخانې په برخه کې سپينه دروازه.
- د بابا کيداني په برخه کې د سردار محمد جانخان دروازه.
- د عيدګاه مسجد شاته د بيت دروازه.

همدا راز د ګذرګاه، لاهوري، خافيا، ساسمنديان، فرتا، شيرازيانو په نامه دروازې هم يادېږي.

دغه ديوال ۱۲ مهري درلودلې چې يوه برخه يې په اندرابي کې په يوه عمارت کې راغلی ده چې درې نيم متره پسور لري او بله برخه يې د ختکيو خرڅولو په منډه اي کې په يوه خانقا کې راغلې ده.

په يوه بل عين روايت کله چې تر نادر افشار وروسته احمد شاه بابا په ۱۱۶۰ هجري کابل ونيو نو غوښتل يې چې کابل د خپل مملکت اداري مرکز کړي، د دې مقصد د پاره يې په ۱۱۶۶ هجري قمري د کابل په ښار کې د يوه لوی ديوال د جوړولو امر صادر کړ چې د سردار جانخان سپه سالار په څارنه او اهتمام پای ته ورسيد. دې ديوال ۱۱ مهرې (په تير روايت کې ۱۲ مهرې دي) او شپږ دروازې يې درلودلې چې په دې ليکنه کې په پخوانيو څلورو دروازو سربيره د ګذرګاه دروازه او د کابل بالاحصار شمال جنوب ته لاهوري دروازه يو څه ځرګنده ښودل شوی ده.

که څه هم دا دروازې له لسو دروازو څخه چې د مخه ترې يادونه وشوه عبارت دي.

د احمد شاه بابا تر مړينې وروسته د هغه زوی تيمورشاه چې په ۱۱۹۰ هجري ۱۷۷۴ ميلادي کې پاچا شو، د پلار ارمان يې تر سره کړ او د کابل ښار يې رسماً د خپلې پاچاهي پلازمينه وټاکله او پايتخت يې

له کندهاره ورته را نقل کړ.[1]

که څه هم په هيڅ يوه شوی اثر کې د کابل د ښار بنسټ ايښودونکی نه دی معرفي شوی خو د جغرافيايي تاريخي افغانستان مؤلف ښاغلی غبار په قول چې يې له يوه روايت څخه اقتباس کړي دي داسې ويلي شوي دي.

د الماني آثارو څخه په يوه اثر کې چې نوم يې راځني هېر شوی دی لوستلی دی چې د کابل ښار په ۷۷۰ تر ميلاده د مخه کلونو کې د "اثور سلمانا" پاچا "دوهم سار" له خوا يې تاداو ايښودلی دی.

## د کابل قهندز او بالاحصارونه:

### (حصار او ارګ)

د کابل د موجوده ښار په سهيلي ختيزه برخه کې يوه جنګي کلا ده چې د يوې دبريني غونډۍ په جګه او هواره سطحه باندې د ختيز طول البلد ۲۹ درجو. ۱۰ دقيقو او ۴ ثانيو او شمالي عرض البلد د ۳۴ درجو. ۳۰ دقيقو او ۱۸ ثانيو تر منځه پرته ده.

په تاريخ کې د اکلا د کابل د بالاحصار په نوم عمومي شهرت لري. په پخوانيو زمانو کې بالاحصار د يوه مستحکم (ارګ) د پنډواو لويو ديوالونو درلودونکي ؤ چې له تيرو څخه جوړ شوی ؤ دغې کلاته د کابل قهندز يا کهندز او يا زړه کلا ويل کيدله.

لکه چې ويل کيږي کابل هم د هېواد د نورو لويو ښارونو غونډې يو کهندز درلود. چې د هماغه بالاحصار څخه عبارت دی. يعنې جګه کلا او يا جګ ديوال.

په تولو پخوانيو موخذونو کې که عربي دی که فارسي لکه المسالك و الممالك. ابن خرداد به حصار. دژ. کهندز. قلعه دا ټول په حصينو او مستحکمو صفتونو ياد شوی دی او دا ښار هم له ځانه ربض (احاطه) يا حوزې درلودلی چې د کلا د ديوالونو د باندې لمنه يې پراخه ده. د دې کلا موقعيت همدا اوس مشهود دی چې د کابل د آسمايي غره. ديوال په ختيزه برخه کې چې د بالاحصار په لويديزه ګردنه ختميږي او ترې لاندې هديره ده. د غونډۍ په دې جګې برخې په جنوب لويديزه برخه کې دا کهندز ليدل کيږي د کابل له بالاحصار څخه په تاريخي اسنادو کې په لاندې ډول يادونې شوی دی.

حدود العالم هغه داسې معرفي کوي.

"کابل شهريست و او را حصاريست محکم و معروف. با ستواري او اندروی مسلمانان و هندو اند. و اندر وي بتخانه است و راي قنوج را ملك تمام نگردد. تا زيارت اين بتخانه نکند و لوای مملکت

[1] پښتو اريانا دايره المعارف. ۷ ټ. ۱۳۵۵. ۷۷۶ مخ

اينجا نبندند " ۱

د پورتني ليکنې له مخې بيخي جوته ده چې په دې پخه کلا کې نه يوازې مسلمانانو هستوګنه درلوده بلکې، هندوان هم پکې اوسېدل او هغوی بتخانه هم لرله

د يعقوبي په قول چې وايي:

"شهريست بزرگتر کابل را که به آن "جروس" گفته مي شود. عبدالرحمن بن سمره در خلافت عثمان بن سحقان فتح کرد و اين شهر اکنون ناگشوده است جز اينکه بازرگان بدان وارد مي شوند.

مير غلام محمد غبار د ابن هوقل په حواله ويلي دي:

"در بغل شهر کافران و يهودان سکونت دارند (چې دا کافران هندوان دی) مردم کابل معتقدند که کسي پادشاهي را نشايد جز اينکه در کابل او را به پادشاهي نامزد کند و اگر کسي از اين شهر دور باشد بايد بدانجا رود و با شرايطي که از قديم باز اندکي از آنرا نگهداشته اند او را به پادشاهي بگمارند..."

له دې ليکنې څخه د کابل ستراتيژيکي اهميت په ډېره ښه توګه څرګندېږي.

مقدسي چې کابل د سيستان د ايالت وروستنی نقطه ګڼي او ابو الفدا په تقويم البلدان کې کابل د هند د خاورې ډېره مشهوره ناحيه بولي او وايي چې يو جماعت دی د اهل علم څخه، خو د دې فرهنګي حيثيت او مرکزيت بيا هم خپل ستراتيژيکي موقعيت خوندي ساتي لکه چې په وروستيو زمانو کې بابر ويلي دي:

هغه وخت به په هندوستان حاکميت وساتلای شئ چې کابل يې په لاس کې وي او د بابر د وصيت سره سم په کابل کې د ده ښخېدل هم په خپل ذات کې د يوې سياسي دور انديشي څخه پيدا شوی خبره ده دا کار ده ځکه مصلحت وګڼه چې اخلاف به يې د نيکه د هډوکو د ساتنې په خاطر کابل له نظره، نه غورځوي او کله چې کابل ور سره وي نو په هند به يې حاکميت پوخ او دايمي جاري وي. ۲ چې وروسته احمد شاه بابا او تيمورشاه هم د دې مفکورې په پيروي کابل پلازمينه وګرزوله.

او د دې ښار زيات تاريخي اهميت په دې ټکي کې پروت ؤ د هغه پاچا فرمانروايي نه شي چليدلی تر څو چې د دې بتخانې زيارت و نه کړي او دلته د خپلې واکمنۍ لوا و نه تړي.

مګر په دې ښار کې که څه هم مسلمانانو هستوګنه درلوده د کوم جومات يادونه شوې نه ده. اصطخري بيا د دې محکمې کلا په باب داسې معلومات ورکړي دي:

کابل قهندزي دارد، سخت استوار از يك راه نتوان شد و اين قهندز مسلمانان دارند ربض کافر آن دارند و گويند شاه پادشاهي را نشايد تا آنکه او را در کابل بيعت بندند.

۱ حدود العالم، طبع ۱۳۴۲، ص ۱۰۴

۲ د کابل پر تاريخي جغرافيه، د محمد ابراهيم عطايي د تقريظ څخه

(د المسالك و الممالك (۲۱۹ – ۲۲۰ مخونو په حواله)

د اصطخري په ليکنه کې د حدود العالم له قوله سره کوم توپير نشته دی او دواړو د کابل د کهندز په باب يو شان نظريه وړاندې کړي ده. خو يوازنی تکی چې د اصطخري په قول کې د پاملرنې وړ دی هغه دا دی چې د حدود العالم هندوان او د اصطخري کافران د کلا په محوطه کې اوسيدل.

که څه هم په تاريخونو کې د کابل د کهندز څخه د کابل د بالاحصار په نوم يادونې شوی دی خو په حقيقت کې دا بالاحصار يو بالاحصار (جګه کلا) نه بلکې دوه بالاحصاره دی.

يو برنی بالاحصار دی چې د هماغه قهندز څخه عبارت دی چې د بيني حصار په طرف او په جنوبي برخه کې قرار لري.

او بل لرنی يا کوز بالاحصار دی چې د برنی بالاحصار څخه راښکته د نوموړې غونډۍ په هواره لمنه کې جوړ شوی دی.

برنی بالاحصار پرته له دې چې يوه مستحکمه کلا ده بلکې ارګ يې هم دلود مګر په کوزنی بالاحصار کې بيا د ښار ودانی شاملې وې.

راغلو دې خبرې ته چې د کابل بالاحصار په کومه زمانه کې او د چا له خوا جوړ شوی دی محقق او اتفاقي معلومات په لاس کې نشته خو د تيرو پانو يوه روايت ته که وګرزو نو په هغه کې ويل شوي دي.

چې د کابل ښار يعنې دا بالاحصار په ۷۷۰م کې د "الثور سلمان" پاچا د "دوهم سار" له خوايې بنسټ ايښودل شوي دي او که له ده پرته بل څوک ؤ او لومړنی اوسيدونکی يې څوک وو؟ په دې هکله د افغانستان په تاريخي جغرافيه کې داسې اشاره شوې ده:

د کابل کلا (حصار) د لومړی ځل د پاره د ترکي پاچاهانو هستوګنځي ؤ او وروسته برهمنانو هلته هستوګنه غوره کړه. ۱

زما په ګومان دلته په برهمنانو اتفاق کيدای شي ځکه چې دلته بتخانه هم موجوده وه د هندوانو او بودايي مدنيت څخه هم په زياتو تاريخي مدارکو کې يادونې شته دی، اما د ترکانو په باب خبره يو څه د غور وړ موضوع ده.

بله موضوع چې د دقت وړ ده چې په دې هم اتفاق کيدای شي چې د بالاحصار د ودانی سابقه د کابل په غرګوټو د ديوالونو څخه قدامت لري او دليل يې دا دی چې دغه ديوالونه د کابل د کندز د ساتنې او دفاع په خاطر جوړ شوی وو. نو طبعاً د بالاحصار د جوړېدو تاريخ د کابل د ديوالونو څخه د مخه دی يعنې دا په هغې زمانه پورې تعلق درلودلای شي چې لا اسلام دې محل ته نه ؤ رارسيدلی لکه چې وايي، د دې ديوال د جوړېدو څخه د مخه کابل يو کوچنی کلی ؤ، خو ديوالونو ورته خاص مرکزيت او تاريخي

---

۱ جغرافياي تاريخي افغانستان، ص۲۰۰

اهميت ورکړ.[1]

بالاحصارونو په حقيقت کې د يو ښارګوټي حيثيت درلود. په بالاحصار کې يو شمېر وداني موجودې وې لکه د بالاحصار د شمالي لمنې په هواره برخه يعنې په کوزنی بالاحصار کې د بالاحصار پخواني وړوکی ښار ودان ؤ او له دې ځايه څخه جوتيږي چې دلته د بالاحصار ارګ، سلطنتي مقر، د حکامو او امراوو د پاره د ناستې او هستوګنې محلونه، د نغدو او ګران بها او قيمتي څيزونو د ايښودلو او ساتلو د پاره ځانګړې ځايونه موجود ؤ.

د بالاحصار ښار د مامورينو منصبدارانو او وګړو د کورونو ځاى، د مانيو، بازارونو او حمامونو درلودونکي وو.

که د بالاحصار د غونډۍ جنوب شرقي لمنې ته وکتل شي يعنې د برنی بالاحصار ختيز اړخ ته د سياه سنګ د واټ مخامخ سړك ته په دغه هواره او جګه سطحه کې يعنې د بالاحصار د جادې ښي خواته د يو شمېر ويروونکو او وحشتناکو زير زمينو بقاياوې ليدل کيږي چې په اغلب ګومان سره دلته د بالاحصار د ښار زندان او سياه چالونه هم موجود وو.

## د بالاحصار (کهندز) د ساختماني سبك څرنګوالی

که چېرته د کابل کهندز يعنې لوړی کلا او ارګ پاتې شوی وداني او ديوال د بيني حصار له خوا يعنې د شهداى صالحين د سړك پر سر وليدل شي نو په څرګنده توګه پوهيدلاى شو چې د دې لوړې او پخې کلا ديوالونه، د تيرې، ګچو، چونې او پخو خښتو څخه په ډېر پاخه ډول جوړ شوي دي او برجونه يې چې د بيني نيزار خواته بازوکي دري برجونه دي په ډېر پاخه او مدور شکل جوړ شوي دي چې د ديوال د باندې او لوړوالى يې د ديوال سره برابر دي. دوه قطاره تير کشونه لري.

د برنی بالاحصار د دې برخې ساختماني نقشه د هماغې کلا سبك سبك کاپي ګڼل کيږي چې د هېواد د لويديزو او مرکزي ولايتونو په لرغوني استحکامي کلاګانو کې لکه د غور او سيستان په کلاوو کې يې ليدلاى شو او په قوي احتمال سره دا کلا د سيستان د هزار برج او چغانسور کلاوو ته ډېر زيات ورته والي لري.

پادر کسپاني چې وروسته به يې څېړنيزه مشاهداتي ليکنه په تفصيل سره راشي د بالاحصارونو او د هغه د ودانيو او دروازو په باب وايي:

بالاحصار لکه چې د سدوزايي کورنی په عصر کې (۱۷۴۸م او ۱۸۴۲ م) پوره په خپله بڼه موجود ؤ. د هغې مبدا د مغولو عصرته رسيږي او دا د بالاحصار د جوړولو لومړني دوره ده. يعني ۱۵ ميلادي پيړۍ او تر هغې وروسته د سدوزيانو او په تېره بيا د تيمورشاه د واکمنی دوره (۱۷۷۳م – ۱۷۹۳م) چې د

---

[1] افغانستان در پرتو تاريخ، ۲۰۴ – ۲۰۵ مخ

بالاحصار پادشاهي ماڼۍ او د هغې مربوط تعميرونه، د ښکتنۍ بالاحصار په ښکتني برخه کې د مغلو د ساختماني سبك په شان جوړ شول او په دې وخت کې پاسنی بالاحصار هم موجود ؤ.

د ښکتنی بالاحصار په احاطه کې شرق خواته د شاه شهيد دروازه او ښکتنی بالاحصار لويديز ته د نغاره خانې دروازه ده.

پاسنی بالاحصار د ښکتنی بالاحصار په مقابل کې څو دروازې درلودلې لکه، په شرق کې يې يوه دروازه درلوده چې د کاشي دروازې په نوم مشهوره ده او د هغې پسې يوه کوچنۍ دروازه د شير دروازې په استقامت چې خونی دروازه نوميدله.[1]

د تاريخي واقعيتونو له مخې د وخت واکمنانو د بالاحصار د ودانۍ د سالمې باقي پاتې کيدو په ترميم کې يې خاصه توجه کړې ده.

لکه څنګه چې زموږ د هېواد دا له برمه ډك تاريخي يادګار له پخوا راهيسې موجود ؤ او حصار يې د جهانګيري تزك په قول د مرزا کامران له خوا ترميم شوی دی او د بالاحصار عمارتونه د (١٠١٥هـ) د صفري په مياشت کې د نوموړي پاچا په امر جوړ شوی دی.[2] خو را وروسته وختونو کې د کابل بالاحصار په امن پاتې نه شو او په ١٢٩٦قمري/ ١٢٥٦ش/١٨٧٨ميلادي کې کله چې انګريزان له کابل څخه مخ په تيښته شول نو هغوی د بالاحصار کلا، او د هغه د ښار هغه برخه چې د کابل چارچته پکې شامله ده د کيوناري انګليس د خونخواهي او انتقام په عنوان په باروتو وسوزوله، چې په دې صورت سره دا ښکلې او ودان ښار چې نژدې شپږ پيړۍ د کابل د حکمرايي محل او ځينې وخت هم د ټول مملکت پايتخت ؤ وران او ويجاړ کړ.

د اعليحضرت محمد نادرشاه په زمانه کې د دې تاريخي ځای د بېرته ودانولو اراده د هغه له خوا وشوله او د ده په امر دا ودانۍ د حربي پوهنځي (حربي پوهنتون) د پاره ودانه او ماڼۍ ګانې يې جوړې شوې چې د نيم مربع په شکل ؤ او په لويديزه برخه کې برجوره ماڼۍ او ترينه لاندې يوه ښه سينما هم موجوده وه او حربي پوهنځي پکې هستوګن دی.[3]

کله چې حربي پوهنځي، حربي پوهنتون ته ارتقا وکړه بيا هم تر ١٤٤٥ ش پورې هغه د حربي پوهنتون يو د برمه ډك مقر ؤ.

تردې وروسته چې حربي پوهنتون د پلچرخي د تخنيکي ورکشاپونو د رياست تعميرونو ته ور انتقال شو په دې ځای کې د اردو کماندويي قطعات اوسيدل او بيا ور پسې د کارمل په وخت کې د سياسي

---

[1] آريانا مجله، ٣ ګڼه، ١٣٥٣، ٣٢ مخ

[2] عبدالحي حبيبي، تاريخ مختصر افغانستان، طبع ١٣٤٩، ص ٤٠

[3] آريانا دايره المعارف، ټ٤، ١٣٤٤، مخ ٣٣٥

پوهنتون مقر وګرزید او چي کله په کابل کې د تنظیمي جګړو اورونه بل شول زمونږ د تاریخي ویاړونو دغه تلپاتي سمبول د دغو شومو جګړو د کرغیړنو آثارو او بقایاوو څخه یوه د بلې زړه دردوونکي غمیزې او فاجعي نښانه پاتې شوه.

## د شیردروازې او آسمایي غرګوټو د تسمیې وجه او د هغوی پر سر دیوالونه

د کابل د ښار د آسمایي او شیردروازې د غرونو پر سر یو اوږد پوخ دیوال غزیدلی دی چې د کابل ښار یې شمالاً او جنوباً احاطه کړی دی که څه هم د کابل د ښار دغه دیوالونه څه د خارجیانو د پاره او څه د هغو افغانانو د پاره چې پخوا یې دا دیوالونه لیدلی نه دی ۱ یوه د عجایبو څخه ډکه منظره ده، خو بیا هم تر اوسه پورې هیڅ مؤثق تاریخي ماخذ، د هیڅ یوې کتیبې او ډبریني لیکنې له مخې پته لګول کیدای نه شي چې په دقیقه توګه د دې عجایبو په باب معلومات ورکړي.

که چېرته د کابل لرغوني ښار د محوطې منظره تر سترګو شي نو ګورو چې د بری کوټ په برخه کې او هغه خوا د آسمایي غره د ګذرګاه په شمال لویدیزه لمنه کې د دواړو غرګوټو پوزې راوتلی دی چې د شیردروازې پوزه یو څه زیاته ده. او په دې برخه کې د ښار یوه دروازه وه. او ممکن دغه دروازه چې د کندهار دروازه ده په شیردروازه مشهوره وه. او د دې دروازې له نوم څخه څرګندیږي چې په دې دروازه کې د زمریالیو سپاهیانو په واسطه د ښار په دغه برخه کې دفاع کېدله، او دغه غرګوټي هم د دې دروازې د نوم سره په انتساب پیدا کولو د شیر دروازې د غرګوټي نوم اخستی وي.

پردې یادونې سربیره نور څه معلومات په لاس کې نشته چې د شیردروازې د تسمیې وجه پرې وښودلای شي.

اما د آسمایي غرګوټي په باب هم دومره ثقه معلومات نشته دی خو د هغه د نوم په استناد دومره ویلای شو چې ممکن دا نوم د آسمایي، یعنې هسک څخه اخیستل شوی وي، یعنې د شیردروازې په نسبت لوړ غر.

ځینو څیړونکو آسمایي (اسه ماهي) په یو لوی رب النوع ترجمه کړی دی او وایي د پورتنی غره د بیخ په شمالي لمنه کې یو معبد او یوه لویه تیږه ده چې خلکو هغه په تقدیس سره وپیژندله او د هغې پرستش یې کاوه. چې بیا وروسته همهلته د هندوانو درمسال جوړ شو.

د تاریخي شواهدو څخه داسې څرګندیږي چې د بالاحصار په غونډۍ د بودایي معابدو او عمرانات په وخت کې لکه د کابل تپه سلام، د علي آباد او په کافر ګردنه، خواجه صفا، د خزانې په غونډۍ (پل رتل ته نژدې) د مرنجان په غونډۍ کې، په خواجه روښنایي، په خضر، پنجه سیاه، او نورو سیمو کې

---

د اعلیحضرت محمد ظاهرشاه په وخت کې د دې دیوالونو پر سر رنګارنګ ګروپونه ځړول شوي ؤ او ښار داسې ښکاریده که د یو فانوش په منځ کې

موندل شوي وو او په بالاحصار کې هم يوه مهمه غونډۍ ده چې هلته يو معبد موجود ؤ[1]. او دا ده چې آسمايي د هغو مذهبي رب النوع شخه د يوه د نوم سره ارتباط ولري.

مگر احمد علي کهزاد وايي چې په محلي کيسو کې د آسمايي تعبير په دې ډول شوی دی.

وايي چې يوه ظالم پاچا د آسمايي او شيردروازې د غرو په څوکو د يوه ديوال د جوړولو په مقصد امر کړی ؤ چې د ښار له هره کوره په نوبت سره يو تن د خاورو، تيږو او نورو عمراني موادو په راوړلو او لگولو کې مرسته وکړي.

يوه ورځ يوې هسې کورنۍ ته نوبت راورسېد چې يوازې يو بوډا او د هغه ځوانه لور پکې اوسېدل.

د پاچا سپاهيانو غوښتل چې دغه بيگار ته بوډا په زوره بوزي کله چې يې لور وليدل چې هغوی يې د پلار زارۍ نه مني او په هيڅ شان يې نه پرېږدي نو د پلار په عوض ور سره پخپله روانه شوه.

او د بيگارچيانو سره يې په کار شروع وکړه، تقدير ته گوره چې په دغه ورځ پخپله پاچا د شيردروازې د کار جريان وکوت او بيا د آسمايي د غره څوکې ته راوخوت، ټکنده غرمه او سوزونکې لمر ؤ. تيږې يې ببخي سري کړي وې ټول خلك تندي او ستړيا وارخطا کړي وو، کله چې پاچا د ديوال بېخ ته راورسيد ناڅاپه هغې پيغلې د ده د تشدد، ظلم او خپلې ډېرې ناتواني او بيچاره گې د احساساتو له مخې وپتيله چې پاچا له منځه يوسي، نو يې يوه لويه تيږه چې يې په لاسونو کې پورته کړې وه ښه يې ورپسې پورته کړه او د پاچا په ککرې يې ورگوزار کړه د خلکو شورماشور پورته شو چې پاچايې وواژه.

څه رنگه چې د دغه نجلی نوم سومهي (سپوږمی) ؤ نو په ټول ښار کې خوله په خوله دا آوازه خپره شوه او تر دې وروسته دغه غره په آسمايي مشهـور شو[2].

د کابل د ديوالونو په باب چې مفصل معلومات وړاندې شوی هغه بې ــاي کسپاني له خوا چې پوره اتلس کاله يې په کابل کې ژوند کړی دی او هر څه يې په سترگو ليدلی دی.

د کابل بالاحصار او ديوالونه دا دواړه هغه مفاهيم دي چې په ډېرو برخو کې سره تړلي مطالعه کيږي او په تاريخي څيړنو کې يې يو له بله جلا کول د موضوع تسلسل ته زيان رسوي.

په هر صورت پادر کسپانی په کابل کې د خپلې هستوگنې په موده کې د کابل په هکله يوه کتاب د "د افغانستان چارراهی آسيا" يعنې اورتسپانا په نوم ليکلی، هغه عقيده لري چې د کابل د ښار دغه ديوالونه د يفتليانو په زمانه کې چې په پنځمه ميلادي پيړی کې يې ظهور کړی ؤ[3].

د يو بل روايت له مخې دا ديوال لکه چې د مخه وويل شو د عجايبو څخه ډك او د پوره دلچسپي

[1] احمد علي کهزاد، بالاحصار کابل و ... ج ۱، ۱۳۳۶، ص۶

[2] آريانا مجله، ۹ گڼه، ۱۳۳۴، ۱ – ۴ مخونه

[3] افغانستان در پرتو تاريخ، ۲۰۴ – ۲۰۵ مخونه

منظرې درلودونکې دی تاریخي قدامت لري.

د دې دیوال د جوړېدو نیټه غالباً د اسلام د لومړنی پیړی ۱۸۱هـ/۷۰۰م د کوشاني سلسلې د کابلشاهانو یوه پاچاته منسوبوي چې رتبیل شاه یا زنبورك شاه نومېده او دا دیوال یې د خلکو په واسطه په بیګار آباد کړی دی.[1]

خو د دې نظریې په خوا کې افغاني مورخانو تر یوه وخته پورې داسې فکر کاوه چې اصلاً د کابل پخواني دیوالونه د عربي مهاجمینو په مقابل کې د اسلام د سپیڅلي دین د خپرولو زمانې ته په نژدې وختونو کې په دې سیمه کې د کابل زمین د پاچاهانو لکه رتبیل شاهانو له خوا جوړ شوي دی مګر که د دیوالونو د بنا او د کار اوږدولی او عظمت ته چې د هغو په جوړولو کې په کار اچول شوي وکتل شي نو په مطلق ډول داسې حکم کوي چې د احصارونه په تلوار او عجله نه دي جوړ شوي او د هغو د جوړولو مفکوره ډېره پخوانی سابقه لري.

مګر د غربي پوهانو له جملې څخه پادرکسپانی په هغه مقاله کې چې په ۱۹۴۶م کې د افغانستان په مجله کې خپره شوی ده چې د خپلې ادعا د ثبوت د پاره داسې دلیل راوړی چې یفتلیان نژدې د شلو زرو تنو په شمېر د بدخشان د فیض آباد په شمال کې اوسیدل نو د پنځمې میلادي پیړی په اوږدو کې د یوې دینامیکي قوې په توګه د هندوکش شمال او جنوب ته په فعالیت راغلل او ساسانیان یې د مملکت له زړه څخه د لویدیزو پولو په لور وشړل او د هندوکش په جنوب کې یې یوه مشهوره قبیله (زاولي) په نوم په زاول (زابل) کابل یعنې په غزني او د اوسنی کابل په شاوخوا کې هستوګنه غوره کړه او زاول او (کاول) زابلستان او کابلستان نومونه د هغوی د میشته کېدو د زمانې له خاطره دی. څه رنګه چې یفتلیان سلحشور او جنګیالی خلك وو او د سوق الجیشي له مخې یې د اراضي په پیژندلو کې خاص مهارت درلود نو دا یطالوي نوموړي دانشمند په عقیده قوي احتمال شته چې د کابل د پخې کلا (بالاحصار) هسته د اوسني بالاحصار په محل کې او د کابل د غرونو پر سر دیوالونه د دوی په لاس د کلا د ساتنې او دفاع په مقصد آباد شوی وي او تر یوه حده دا احتمال هم لري چې د کابل دغه دیوالونه د اسلام د ظهور په نژدې زمانې کې جوړ شوی دی.

که د کابل د دیوالونو د جوړښت سبك او هنري ځانګړتیاوو ته وکتل شي او د کابل دیوالونه د چین د ستر دیوال سره مقایسه شي نو د کابل پخواني دیوالونه د چین د ډېرو لویو او اوږدو دیوالونو سره یوه کوچنۍ مقایسوي نمونه ده. چې د پیکن په لویدیز (۱۹۰) کیلومترۍ کې پراته او په نړۍ کې خاص شهرت لري.

لکه څنګه چې پوهېږو د چین دا ستر دیوال نژدې درې زره کیلو متره اوږد او (۲۵۰) کاله تر میلاد د

[1] پښتو آریانا دایرة المعارف، ټ ۷، ۷۷۸ مخ

مخه په حدودو کې د چين د لويې قبيلې له خوا چې مانچو نومېږي د "هيوانگتو" د تهاجمونو په مقابل کې جوړ شوی وو.

د کابل ديوالونه د چين د سترو ديوالونو په مقابل کې يو ډېر کوچنی شی دي او يوازې د يوې کوچنې ښار د دفاع د پاره چې د دوو غرګوټو په منځ کې پروت دی جوړ شوی دی.

مګر د آبادۍ د سبك له مخې د دې دواړو ديوالونو تر منځه چندان توپير وجود نه لري د کابل د ديوالونو په جوړولو کې د تيرو له ټوټو د پخواو او مو لويو خښتو څخه کار اخيستل شوی دی. د دې ديوالونو کنګرې، تير کشونه او برجونه اوس هم په څرګنده توګه تشخيص کيدای شي. او د ديوال د تعمير د محل انتخاب په تېره بيا د هغو غرونو په لمنو کې چې د دهمزنګ په تنګي کې د يو اوبل په مقابل کې قرار لري د جنوب له خوا ډېر ښه معلومېږي.

دی ديوالونو ځانته يو شمېر دروازې درلودلې چې يوه يې په همدغه سيمه يعنې د دهمزنګ په تنګي کې واقع ده او له امکان څخه ليرې نه ده چې د شيردروازې د تسميې وجه لکه چې د مخه هم وويل شول له همدې ځايه نشئت کړې دي.

دا ديوالونه چې د رتبيل شاهانو په دوره کې د عربو د تهاجماتو په مقابل کې يعنې د اسلام د دريم خليفه په وخت کې چې کابل د تازيانو د تهاجم لاندې راغی (۸۱هـ) کابلي رتبيل شاه د شيردروازې او آسمايي د غرونو د پاسه هغه جوړ کړل او په هره څنډه کې يې ورته پخې کلاګانې ودانې کړې چې ښار يې شمالاً او جنوباً احاطه کاوه.

دا چې ساحوي ريسرچ شوي نه دي نو د ديوال نور مشخصات لا مجهول پاتې دي. په دې نژدې زمانه کې دا ديوالونه مرمت کاري شوي دي لکه د دراني احمد شاه او سدوزايي تيمورشاه په عصر کې هم په دغو ديوالونو کې مرمت کارۍ تر سره شوې دي. او څه رنګه چې د ښار په ختيزه برخه کې ديوال د ځنګلو او د کرنې د مځکو (د ده خدای داد، قابلبای او بي بي مهرو) څخه تيرېده نو دا ځکه يې آثار په ځای پاتې نه دي او د هغو د خط تعينول څه مشکل کار دی.[1]

روايت دی چې د آسمايي او شيردروازې د غرونو څوکې په يوه ديوال پای ته رسيږي چې په مهمو نقطو کې په کوچنيو کلاګانو باندې مجهزې شوي دي د کابل کوچنۍ دره د يوه پل په واسطه تړل شوي ده چې د يوې کلا په واسطه ترې دفاع کيدله.

د سترې کلا (قندز) په جنوب کې بالاحصار جوړ شوی دی، د دې تعميراتي مواد تيږې او هغه وچې خښتې دی چې د لمر په واسطه کلکې شوي دي.

د دې ديوالونو او کلا د جوړولو دوه مهمې دورې معلومې دي.

[1] افغانستان در پرتو تاريخ، ۲۰۱ – ۲۰۳ مخونه

- یوه یې د بابر او جهانګیر په وخت کې چې علي مردان خان په دې کار کې مرسته وکړه (۱۰- ۱۱هـ او ۱۷م پیړی)
- دوهمه دوره یې د دراني احمد شاه بابا او د هغه د زوی تیمورشاه په وخت کې وه چې د دې کلا او بالاحصار په جوړولو او مرمت کاری کې یې پوره توجه وکړه.
د امیر عبدالرحمن خان د سلطنت په وخت کې اوسنی دیوالونه چې د کابل د سیند د کینې غاړې په کلیو کې واقع وو. د ښار د پراختیا خنډ ګرزیدلدا وه چې د دغو ودانیو څخه یوه لړ څه ورانه شوي چې د پوځي نقطه نظره بې ګټې هم وي خو دیوالوه د غرونو د پاسه په خپل حال پاتې شول.
د ټولو هغو ځایونو او دروازو چې وراني شوی دی نومونه هم د خلکو په حافظو کې پاتې شول ۱

## کابل د څلور لارې په توګه:

دا یو څرګند واقعیت دی چې په پخوانیو زمانو کې له یوه ځایه بل ځای ته تګ راتګ په ډله ییزه توګه د مهاجرت، تجارت او د پوځي سفرونو په شکل وو. چې په طبیعي ډول د مهاجرتونو د مسیر انتخاب د رود خانو د مسیر سره سم وو او ډېر کم په نورو برخو کې تر سره کېده او دا ځکه چې د رودونو مسیر او درې یوازنی طبیعي لارې وي چې دوئ پرې یوه محل ته رسیدای شول. او رودونه په حقیقت کې د هغوی طبیعي "راه بلد" ګڼل کیدل.
خو تجارتي لارې بیا هغسې نه دي او په هغو لارو تجارتي کاروانونو تګ راتګ کاوه چې د مخه غزول شوي او معلومي وي. اما د پوځي لښکرو بهیر و نه بیا له هرې ممکنې او اغیزمنې لارې څخه استفاده کوله.
لکه چې د تاریخي واقعاتو د جریانونو له مخې څرګنده ده چې کابل زیاتره د تجارتي کاروانونو لاره او حتی د لارو یو مهم مرکز او کاروانسرای و چې زموږ بحث هم په دې ټکی دی.
د کابل څخه له مختلفو استقامتونو څخه لارې متلاقي کیدلی او تیریدلی. هغه لار چې له لویدیز او جنوب لویدیز څخه شرق ته غزیدله یوازې د کابل له سیمې څخه په آسانه تیریدای شوه او هغه لار چې له شماله جنوب ته غزیدله. خامخا د کابل د حوزې څخه تیریدله را به شو تاریخي اسنادو ته چې په دې باب پکې یادونې شوی دی:
ځینې مؤرخان وایي د کابل د ښار موقعیت د اورتسپانا د جغرافیایي موقعیت سره دومره بې مطابقته نه دي
د اورتسپانا د موقعیت اهمیت له دې څخه څرګندیږي چې دا د هغو پخوانیو کاروانونو د لارو په منځ کې پروت ؤ چې د هند. باختر او اراکوزي (قندهار) خواته غزیدلي وې او د دې ښار له مخې یې د

۱ آریانا مجله. ۳ ګڼه. ۱۳۵۳. ۳۲ مخ

ښارونو فاصلې محاسبه کولې، له همدې کبله استرابون هغه ته اورتسپنه (څلور لارې) ويلي دي يعنې اورتسپانا اوسنی کابل ته اطلاقيږي نورو پوهانو هم دا نظريه تاييد کړې ده.

کابل په خپل وخت کې له اوله څخه د دوو براعظمونو يعنې هندوستان او ترکمنستان تجارتي مرکز ؤ او د يونان د مؤرخ يوروتس (هيرودت) په قول د کابل مال التجاره يونان او روم په ټولو بازارونو کې مشتريان درلودلی دي. ممکنه ده چې د افغانستان لاجورد (د بدخشان لاجورد) چې د مصر د دولسمې سلسلې د فراعنه په نزد يې لوړ مقام درلود د هغوئ د سلطنتي ماڼيو د نقش او نګار د پاره ترې کار اخيستل کېده تر ميلاد ټژدې دوه نيمې پيړۍ د مخه يعنې تر مقدوني سکندر وروسته، د يوناني باختر (بلخ) په وخت کې د کابل مدنيت او اقتصاد مخ په ترقي او لوړتيا روان ؤ.[1]

چيني سياح هيوان تسنګ هم يو وخت د کابل څخه ليدنه کړې او هغه ته يې -کوبها- ويلي دي.

د وريښمو د لارې څانګه هم د کابل څخه تېره شوې ده.

مقدوني سکندر هم پرته د کوم توقف څخه د کابل له حوزې څخه خپل سفر ته دوام ورکړی دی.

دا مثالونه د کابل د لارو د مرکزيت موضوع په ډېره ښه توګه په اثبات رسوي يعقوبي په دريمه هجري پيړۍ کې د کابل د ښار په باب وايي:

سوداګر دې ښار ته ډېر راځي او له دې ځايه د کابل لوېې هليلې وړي.

مقدسي ترده يوه پيړۍ د مخه وروسته وايي: کابل د هندوستان سره د سوداګرۍ د راکړې ورکړې يو مرکز ؤ او د هغه د نيل بيه ډېره جګه وه.

ابن هوقل د خپل کتاب صورت الارض په ۱۸۴ مخ کې ليکلي دي:

"کابل هم د هند په خوله کې پروت دی او له هغه څخه هرې خواته لار ده. په دې ښار کې نيل ډېر زيات لاس ته راځي د هغو نيلو بيه چې د کابل په ښار او کليو کې تهيه کيږي، د سوداګرو يوه ستره برخه ده..."

په عجايبُ المخلوقات کې د کابل د سوداګرۍ د مرکز د اهميت په هکله راغلي دي:

"کابل [illegible] هندوستان در ميان کوه و کوه، بر ګرد وی در آمده مدور چون حلقه و ګرد به ګرد دی سي فرسنګ هيچکس در آن نتوان رفتن مګر جواز کی جای تنګ است بر آن يك در حرس بر آن موکل هيچ (هيليله) در اين شهر بود..."

د څلورمې پيړۍ په لومړنيو کې مسلمانانو، حکيمانو او بت پرستانو هر يوه په کابل کې خاصې ناحيې درلودلې او زيات شتمن بازارونه.

کابل له پخوانيو وختونو څخه د نړۍ د لويو او بيلابيلو فاتحانو او مهاجمانو معبر واقع شوی دی او د هند، چين، يونان، فارس او د مغلو رنګارنګو ملتونو د نفوذ لاندې راغلی يو بل ته تحويل شوی دی

[1] جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ۲۹ ـ ۳۰

لکه یونان، عربو او فارس نفوذ له دې لارې په هند کې او د هند و چین نفوذ په فارس کې قایم شوی دی او البته دا هغه وخت دی چې کابل د سوداګرۍ د موقعیت د درلودلو سربېره ستراتیژیکي موقعیت هم پیدا کړی دی.

همدا اوس موږ کتلای شو چې د کندهار -کابل لار- او کابل- ننګرهار لارې سره په کابل کې مخامخ کیږي.

همدا شان د شمالي صفحاتو لار کابل ته راغزیږي او د جنوبي سیمو لارې هم پر کابل ختمیږي او که بیا هم پخوانیو زمانو ته وګرزو، یو وخت له بلخه تر تکسیلا پورې لار د بګرام څخه د پای منار له غاښې له کابله تیریدله او د موسئ څخه ګندمك ته او سرخرود ته ورغزیدله.

همدا شان دلته بند او د ماهیپر له لارې د جوړېدلو څخه د مخه هم د شمالي صفحاتو او لویدیزو سیمو لار له کابل. بتخاك او خورد کابل څخه ګندمك ته او له هغه ځایه ننګرهار ته رسیدله.

په کومه اندازه چې موږ د کندهار کابل په لار کاروانسرایونه او منزلونه پیژنو په همدې ډول کابل ننګرهار په پخوانی لار کې راته هم د منزلونو معلومات شته دی.

لنډه دا چې مؤرخان کابل څلور لارې بولي او هر یوه په خپل وار سره د هغه اهمیت په ډاګه کړي دي، نو بې له شکه نن ورځ کابل نه یوازې څلور لارې پاتې دی بلکه د زیاتو لارو مهم مرکز هم ګرزیدلی دی. او د حربي دکتورین هغه خبره پرې تایید وړ ده چې بابر، احمد شاه بابا، او تیمورشاه هغه عملي کړې ده.

## د کابل ښار او حصار

## افغانستان د هند د مغولي پاچاهانو په زمانه کې:

مرحوم عبدالحی "حبیبي" په "تاریخ افغانستان در عصر کورګاني هند" د کابل د ښار او حصار په هکله یو څه څرګندونې لري او وایي

هغه غره چې د بالاحصار ارګ پرې جوړ شوی دی په پخوانیو زمانو کې ورته د کابل پاچا ویل کېده. د هغې د پاسه د دوو عقابانو شکلونه وو.

د کابل ښار دوې ختیني کلاوې درلودلې او پردې سربیره یې یو ځانګړي ارګ او کلا هم درلوده د بالاحصار ښار کلاچې انګریزانو مسمار (میخ) کړې وه مرزا کامران د بابرزوی هغه بیا له سره ترمیم کړه او کله چې جهانګیر کابل ته راغی د کابل د بالاحصار پخوانی ودانی یې ورانې او په عوض یې د ځان د پاره مناسب تعمیر آباد کړ. له دې نه علاوه د کابل بیروني حصار د جهانګیر په وخت کې په ګچ او اهکو جوړ شو. د بالاحصار کلا او ارګ چې خام ؤ په ۱۰۵۶ هـ د شاه جهان په امر د ګچ او اهکو څخه راپورته کړ او د ارګ د پاره اوبه هم برابرې شوې (آئین اکبري، اکبرنامه، تزك بابري او پادشاه نامه په حواله)

په مغولي دوره کې د کابل د ښار قلعه یوه ډېره مستحکمه کلا وه چې یو شمېر دروازې یې درلودې.

(ممکن د کابل ښار او د بالاحصار ښار سره ځانګړي وي. ځکه چې د بالاحصار د ښار د دروازو څخه د مخه یادونه شوې ده)

## د ښار دروازې دا دي:

- د دهلي دروازه ختیز خواته.
- دروازه پارک (مبارک)
- دروازه طاقیه دوزان [1]

د کابل په ښار کې دوې رواني ویالې موجودې وې چې یوې ته یې د خطیبانو ویالـه ویله. او دا ویالـه له للندر څخه راغلې له شهرارا او ښار څخه تیریدله. او بله ویالـه د ده یعقوب لـه تنګي څخه د دهلي دروازې مخې ته بهیدله او هغې ته یې د پل مستان ویاله ویله.

ښار ته په نژدې برخه کې "ما هم بیګم" د جلال الدین اکبر دایه یوه ویالـه راوستې ده چې د ګلکه لـه محلې تیریدله. د کابل لـه غره څخه درې چینې رابهیدلې یوه یې د خواجه همو چینه، بله یې د قدمګاه خضر او دریمې ته یې خواجه روشنایي ویله (پورتنی اثر ۲۰۵مخ.)

په دې دوره کې معولي پاچاهانو په کابل کې له ۱۱ زیات عصري باغونه جوړ کړل لکه: چارباغ کابل، باغ شهرارا او په هغه درې تعمیرونه. باغ جلوخانه. اورته باغ، باغ صورت، باغ مهتاب، باغ آهوخانه، باغ پغمان. باغ علي مردان. باغ استالف او باغ بابر.

د شوربازار جومات هم د اورنګزیب د ودانیو څخه دی. [2]

## د شیر آباد ښار او جنګي کلا:

د کابل قلعه جنګي چې د شیر آباد ښار د جنګي کلا پـه نوم هم یادیږي. د کابل یوه بله مستحکمه پوځي کلا ده چې د جوړېدو دقیقه نیټه یې بیخي څرګنده نه ده او دا ځکه چې د دې جنګي کلا یو شمېر تعمیراتي آثار لا اوس هم پر ځای پاتې او د استفادې وړ دي.

افغانستان در مسیر تاریخ د دې پوځي کلا په هکله داسې معلومات وړاندې کوي:

هغه وخت چې د امیر شیر علي خان د سلطنت دوره وه. د هغه پاچا پـه فرمان د افسرانو، عسکرو او مامورینو معاشونه چې تر دې وخته پورې په مالیه ورکوونکو حواله کیدل، منع اعلان شول او د دولت لـه خزینې څخه ورته نقد تادیه کیدل منظور شول. د دې تر څنګه دا حکم هم صادر شو چې تر دې وروسته دولتي سپاهیان نه شي کولای چې د دولتي ښارونو پـه د ننه کې هستوګنه ولري نو د دوئ د سکونت د پاره د ښار د باندې محلونه باید موجود وي او دا د دې له کبله چې عسکري منسوبان د ښاریانو سره زور

[1] دروازه آهنین د لویدیز خواته (تاریخ افغانستان در عصر ګورګاني هند. مؤلف حبیبي، ۱۳۴۱، مخ ۲۰۴.)
[2] همدغه اثر. ۱۹۸ – ۲۰۴ مخ

زياتې و نه کړای شي. دا وه چې امير شير علي خان د شير آباد د کلا (ښار) بنسټ د کابل په شمال (۱۲۸۸هجري قمري/ ۱۸۷۰ ميلادي) کې کېښود د پنځو کلونو څخه په زياته موده کې به هره ورځ شپږ زره تنه چې نژدې يو زر تنه معماران او نجاران د هغې په جوړولو اخته وو.

د استاد کارانو ورځنۍ اجوره او د کارګرانو (چې عسکر وو) د مياشتې پنځه روپۍ د هغوئ پر معاش سربېره وټاکل شوه او د دولتي خزانې له خوا ورته ورکول کېدلې. په داسې حال کې چې تردې د مخه د ودانيو او لارو جوړول د بيګار (اجباري کار) په ډول د خلکو او دهقانانو په غاړه ؤ.

د شير آباد ښار (کلا) په دوو زرو جريبه مځکه کې د بيماهرو (بي بي مهرو) د تپې د پاسه ګرد چاپېر د ۲۰ فوټو په لوړوالی د خارجي او داخلي ديوالونو او د يوې نظامي قشلې (جنګي کلا يا چونۍ) په شمول ودانه شوه.

د ښار د ديوالونو عرض د توپونو د ګرزولو د پاره مساعد ؤ. د هغو خته د پيلانو د پښو لاندې پخيدله تر اوسه لا د ښار د ودانۍ کار نه ؤ بشپړ شوی، شرقي او غربي ديوالونه يې لا نه وو جوړ شوی چې د افغان –انګليس دوهمه جګړه (۱۸۷۴م) کې ونښتله او د شير آباد د ښار د جوړېدلو پروژه نيمګړې پاتې شوه او بيا د زمانې په تيرېدلو سره يو څه ودان شو ۱ چې په اوسني شيرپور کې يې ځينې يو شمير تعميرونه اوس هم د پوره استفادې وړ دی. په يوه بل روايت د دې ښار د جوړولو په هکله يو څه نور معلومات هم شته دی.

په ۱۲۸۲هـ ۱۸۷۰ميلادي) د شير آباد په نوم د نوی ښار بنسټ کېښودل شو دا نوی ښار د خواجه رواش د غونډيو په لمن کې او د کابل په شمال غرب کې واقع دی.

د دې ښار نقشه د کندهار د احمد شاهي ښار له مخې په زيات عصري شکل جوړه شوه او د ناظر حسن علي جانخان يې (هغه څوك چې بيا وروسته د سپه سالار حسن علي په نامه د امير شير علي خان حربيه وزير شو.) د دغې ښار د نقشې د ودانۍ په کار وګماره. د ښار په جوړولو کې زيات تعميراتي مواد او سامان. مساله او عمله په کار واچول شوه او پوره پنځه کاله يې پر له پسې کار پکې وکړ. د ښار بيروني او څيرمه دوه ديوالونه او څو نورې بنيادي ودانۍ سرته ورسيدلی. خو ارمان چې د امير شير عليخان د سلطنت عمر د ده سره وفا و نه کړه او دا ښار نيمګړی پاتې شو.

دغه ښار د ولسي قيام او انقلاب په وخت کې انګريزانو د خپلې مورچې په توګه استعمال کړ او له دغه کبله د جګړې په جريان کې وران شو (يو څو ودانۍ يې باقي پاتې شوی) له دې پس د نومورې پاچا اخلافو لکه چې په ختيزو ملکونو کې د زاړه رواج او عاداتو له مخې د دغې ودانۍ بشپړولو ته توجه و نه کړه او نن د دغو ټولو خواريو او لګښتونو يادګار فقط يو نړيوالی ديوال دی او بس او دا جنګي کلا او

۱ مير غلام محمد غبار، افغانستان در مسير تاريخ، ص ۵۹۴

يو شمېر تعميرونه.

خو بيا وروسته د دغه ښار تاريخي نامه (شير آباد) د راژوندي کولو په مقصد د وخت د دولتي مقاماتو له خوا د کابل د نوي ښار سره د لګيدلي نوم شيرپور کيښودل شو. [1]

د پورتنيو څرګندونو څخه په ګوته کيږي چې هېواد دوارو مؤرخانو معلومات سره يو ډول دي او ممکن له يوه ماخذ څخه يې استفاده کړې وي.

## شېرآباد او د کابل د قلعه جنګي تعميراتي نقشه:

که څه هم شخصاً ما د دې پوځي چوڼۍ د ساختماني څرنګوالي په باب يو څه نسبي ساحوي ريسرچ کړی دی خو د موضوع د لنډيز په مقصد د احمد علي کهزاد په هغو معلوماتو بسنه کوم چې په دې باب يې وړاندې کړي دي.

د امير شير علي خان د تجدد پسندۍ افکار بالخاصه د ده د امارت په دوهمه دوره کې کله چې د هندوستان له سفره راستون شو. د دې باعث شول چې د بي بي مهرو د تپې په شا و خوا کې نظامي قشله، نوی ښار او نوی عمارتونه کوم چې د ديوان، دفتر د پاچا د دربار او هستوګنځي د پاره ضروري وي آباد کړي په دې کې کوم شك نشته چې د امير شير علي خان تر زماني تقريباً ۳۰ کاله پخوا يعنې د ده د پلار امير دوست محمد خان د لومړۍ امارت په وخت کې او هغه غوغا چې د شاه شجاع او د انګليسانو په راتلو سره راپورته شوه مکناټن دغه فرنګي وزير مختار او سفير د بي بي مهرو د تپې تر څنګه د يوې قشلې ودانۍ چې د انګليسي ځواکونو څخه د کابل د تخليې په وخت کې د غازيانو له خوا هغه وسوزول شوه. نو امير شير علي خان په همدې سيمه کې چې د آسمايي او شيردروازې د غرونو څخه ليرې واقع دي او د دوئ د جګړه ايزو تاثيراتو او اغيزو څخه په امن وي د يوه نوي ښار په خيال کې شو او په هغه يې د خپل نوم په انتساب شير آباد نوم کيښود.

امير شير علي خان اصلاً په نظر کې درلودل چې د خپلو سپاهيانو د پاره يوه لويه قشله د بي بي مهرو د تپې په جنوبي لمنه کې جوړه کړي. د تپې پر پاسني برخه حرمسرای او سلطنتي مقر ته اختصاص ورکړي او د قشلې په بيروني برخه کې ورو ورو نوموړي ښار ته پراختيا ورکړي.

خو واقعات بل ډول راغلل او د دې کار د پاره يې موقع پيدا نه کړه. د نورو مورد نظر ودانيو کارپاتې شو او يوازې د شير پور قشله يې جوړه کړه چې وروسته دغې قشلې په قلعه جنګي باندې شهرت پيدا کړ د دې قشلې ساختماني شکل په دې ترتيب ؤ.

دا کلا مستطيل شکله ده. د هغه ديوال اوږدوالي چې د شرق نه غرب ته پروت دی ۲۶۵۰ ګزه او يا له يوه ميله څخه زيات دی. او کوم ديوال چې د شمال نه جنوب ته واقع دی ۱۰۰۰ ګزه اوږد دی.

[1] سيد قاسم، رښتيا، په نولسمه پيړۍ کې افغانستان، طبع ۱۳۴۱، ۳۳۸ - ۳۳۹ مخونه

د قشلي د جنوبي ضلعي په اوږدو کې چې د ښار پر مخ ده یو شمېر بارکونه جوړ شول چې د هغوئ بامونه هواروو او د بامونود غاړو په جنوبي اوږدو کې یو دیوال چې ۶ فټه لوړ ؤ تیر کشونه درلودل چې د قشلی د جنوبي ضلعي د خارجي دیوال په مقابل کې د ۲۰ فټو په ژوروالي یو خندق هم ایستل شوی ؤ اوبه یې نه درلودلی او د ضرورت په وخت کې له اوبو څخه ډکیدلای شو.

د قشلی د دیوالونو لوړوالی ۱۶ فټو ته رسیده او حد په حد یې نیمه مدور او ځینې یې د هرم د مقطع په شکل برجونه درلودل. چې په هغوئ کې د توپ انداخت د پاره مخصوص تیرکشونه ایستل شوی وو او ۵ فټه ښکته د دیوالونو له سره د سپاهیانو د پاره یو گردش گاه جوړه شوی وه.

د قشلي داخلي بارکونه. د مستطیل شکلو کوټو چې ۹۰ فټه طول او ۶۰ فټه عرض یې درلود عبارت وو په ژمي کې د اورلگولو د پاره هر بارك څلور دیوالی بخاری درلودلی چې دوه یې د دوو منزلونو په وروستی برخه کې او دوه یې د دیوالونو د ربع په فاصله کې جوړې شوی وي

هر بارك ځانته زینه درلوده. د زینې سره نښتی یوه کوچنی کوټه وه چې ۱۵x۱۶ فټو کې وه چې هغه د بارك د پهره دارانو د پاره وه

د قشلی د شمالي ضلعې په امتداد کې یوه برنډه وه ۱۲ فټو په عرض چې پایې او کمانونه یې درلودل او د پخو خښتو او خټو څخه جوړه شوی ده

د قشلي غولی یو پراخ میدان درلود چې د سپاهیانو د مشق او تمرین د پاره تري کار اخیستل کېده [1]

باید بې یادونې پاتې نه شي چې د دې کلا په څلورو کونجونو کې د پنځو مترو په لوړوالی یو مدور برج موجود ؤ چې د پخو خښتو څخه جوړ شوی ؤ د هر برج په منځ کې یوه لویه پایه وه چې محیط یې ۵ متره او ۳۰ سانتي د برج د ننی قطر ۹ نیم متره ؤ د برج په دننه کې د درندی او سپکې وسلې د پاره روزنې دلودلی چې حتی په ولاړه تري انداخت کېدای شو

د کلا په د ننیو تعمیرونو کې په پارکونو سربېره د لوړ رتبه افسرانو د پاره هستوگنځي. دفترونه. تحویلخانې او دیپوگان هم موجود وو.

د کلا د باندې محوطې په شمالي برخه کې زراعتي سیمه او په نورو درو ساحو کې میوه لرونکی ونې او بوتان وو

[1] (بالاحصار کابل و پیش آمدهای تاریخي آن. ج۲- مؤلف کهزاد. طبع ۱۴۲۰ ص۳۸۰ – ۳۸۱)



# ۳- بلخ

## (ام البلاد يا د لوړو پېرغونو ښار)

لرغوني بلخ (بخدي) زموږ د هېواد په پنځه زره کلن (حتی تر دې هم د مخه) تاريخ کې ډېر لوړ او منلی مقام لري او په ګردو تاريخي مدارکو او شواهدو کې پرته له کوم ګومان او شک څخه په ممتازو او پرتمينو نومونو او القابو ياد شوی دی.

اريايان چې د خپل تمدن په لومړني پړاو کې دې ځای ته رارسيدلي وو، د دوئ نورو ډلو او څانګو چې زياتره ښاري هستوګن او زراعت پيشه وو. هم په بخدي کې خپل بېرغونه پورته کړي وو.

دلته په دې ټکي يو څه تامل په کار دی تر څو چې د بلخ په ماهيت او اهميت او اساسي معرفت وپوهيدلای شو هخامنشيانو چې د اريايي تاريخي شهنشاهي لومړنی بنسټ يې په (پارسارګاد) کې ايښودلی او دا ښار يې په خپلو کتيبو کې په (باختريش) ياد کړی دی. او بيا وروسته مقدوني سکندر او يونانيانو هغه د بکتر او بکترا په نوم زيات مشهور کړ. که څېرته تر دوی د مخه او حتی د ويدې او اوستايي دورونه په پخوا زمانو کې دا ښار بهليکا، بلهيکا او بخدي په نومونه ياد شوی او که په ايراني منځنيو ژبو چې يوه پهلوي او بله يې د فراموشۍ د پيړيو په نوم (بلخي) ښودل شوی ده د (باخل) يا (بخل) او بهل په شکل راغلی او د بلخ د دغو کلمو اړول شوی شکل دی چې دوه زره کاله د مخه د هغه اوسيدونکو دغسې تلفظ کاوه چې بلخ ته د بخل نه اړونه دا نظريه ثابتوي. ۱

۱ کهزاد، افغانستان در پرتو تاريخ، ص ۱۴۸

ټول مؤرخين او محققين په دې هم عقيده دي چې بلخ يا بخدي د ټول هغو نومونو نتيجوي او ثيقل شوى نوم دى چې په بيلا بيلو مؤخذونو كې په بيلا بيلو شكلونو يې يادونه شوې ده خو د دې ټكي صراحت ضروري بريښي چې د بلخ او باختر نومونه تر دې سرودونو څخه د مخه په كوم سند كې نه دي ياد شوي. او د هغه يادونه په بلهيكا شوې تر څو چې له دې كلمې څخه بلخ اشتقاق شو.

اګر چه دا خبره منلې شوې ده چې بلخ او باختر د هندي، يورپي آريايانو مركز وو او بيا له دې ځايه دا خلق، هند، ايران او يورپي ملكو ته تللي دي، ولې د دې با وجود د بلخ يا باختر ذكر په (رګ ويد) كې نشته، د دې خبې وجه څرګنده ده، يعني دا چې اريايي قبايل د بلخ او بآختر په علاقه كې په ډېره پخوانۍ زمانه كې هستوګن وو. او د ريګ ويدا سرودونه د مهاجرت په زمانه كې په مختلفو وختونو او مختلفو ځايونو كې ويلې شوي دي. يعني د ويدا موجود سرودونه د زمانې له مخې د مهاجرت، د وختو سره او د مكان له مخې د هندوكش د جنوبي علاقو او د پنجاب مځكو ته منسوب دي، نو ځكه د بلخ او باختر د ذكر نه خالي دي. سره د دې هم په (اتهر ويدا - **Atheruida**) كې بلخ د بهليكا - **Behlika** په نامه ذكر دي. دغه نوم په مهاجرت او د سنسګريت په كلاسيكي ادب كې هم ذكر دى. او ځيني اريايي قبيلې چې د باختر نه لېږديدلى او په اباسين پورې شوي او د پنجاب په مځكو كې ميشته شوي دي هغه د بهليكا په نوم مشهور دي، چې د دې كلمې ريښه (بهلي) او (باهلي) ده او د دې لفظ (هـ ل) چې په (خ د) تبديل يې يو (بخدي) يا (باخدي) به ترينه جوړ شي او دا هغه نامه ده چې په اوستا كې د بلخ د پاره ذكر شوې ده.[1]

د اريا او آريانا د كلمې په باب چې د مخه يې ذكر راغى دا سې نظريه موجوده ده:

د ټولو پخوانيو منابعو په شهادت (بخدي) د نورو ټولو مدققينو په تعبير د هغو هندو اروپايي ځانګې د هستوګنې او مدنيت كانونۍ چې په آريانا او هندو پارس كې خپره شوې ده. او د آريانا نوم يو ازې هغه وخت رامنځ ته شو چې دا ځانګه په باختر كې هستوګنه شوه.

يعنې په بل عبارت د آريانا په (باختري كتلى) پورې منحصره ده چې په دې كې آريانا كه د لفظي معنا څخه يې تير شو د آريا مسكن هم جوړ شوى دى.

د ويدې او اوستايي مدنيتونو له هغو څخه د (آريا) او (ايريا) شكلونه رامنځ ته كړل او دا دواړه نومونه هند او فارس ته د مهاجرينو سره يو ځاى لاړل.[2]

لكه چې د مخه ورته اشاره وشوه بلخ د يو شمېر مؤرخينو او مدققينو له خوا په مختلفو شكلونو ياد شوى دى. چې دا دى دلته د هغه د تاريخي قدامت او تاريخي شكلونو په باب خبرې كيږي او په جغرافاي تاريخي افغانستان كې په دې هكله مفصل معلومات وړاندې شوي دي.

---

[1] ظفر كاكاخيل، پښتانه د تاريخ په رڼا كې، ۷۷ مخ

[2] تاريخ افغانستان، ج اول، ۵ مخ

وايي چې په شرقي ناحيت کې يو ښار دی چې هغه ته بلخ وايي او دا د دنيا دوهم ښار دی او تر ده د مخه په دنيا کې بل ښار موجود نه ؤ مګر هغه لومړنی ښار چې حضرت آدم (ع) بنا کړ (په اندليب کې ؤ) او د هند په خاوره کې ؤ او د (اوق) ښار ورته وايي

د بلخ ښار د قابيل له خوا شوی څوك چې د هابيل وژونکي ؤ (د فضايل بلخ د ۵ مخ په حواله)

بلخ په اوستا کې د (ونديو دات) په دوو برخو کې د (باختي - Bakhtri) او له ده نه د مخه باختري (Bacthire) له نوم څخه رامنځ ته شوی دی او هغه خاوره ده چې د اريانانو لومړنی مذهبي پيشوا زردشت (سپينتمان) د خپل آهورايي آئين په تبليغ ترويج دلته پيل وکړ [1]

د احمد علي کهزاد له قوله په اوستا کې چې د سپينتمان مذهبي کتاب دې له ۱۶ هېوادونو څخه څلورم مملکت يې بخدي ؤ چې د (بخديم سريرام) (ښکلی بلخ) په صفت ياديده او د اوستا پيژندونکو له قوله د دې نوم عنصري توری (ب-ا-خ-د-ی) او د جيکسن (Jachson) په قول د اوستا په پهلوي نسخه کې (اتمه ميلادي پيړی) ليکنه چې له سمرقند څخه کشف شوی دا نوم (بخل باميك) چې په ادب کې (بلخ باميك) ياتې دی د مرحوم پوهاند حبيبي له قوله دا د انساني لرغوني مدنيت مرکز د پخوانيو آرياناو څلورم ديني کتاب چې (واويدا) نوميږي د ۱۴۰۰ق-م د (بلهيکه) په نوم د هند د حماسي داستان مطابق مهابهارت د ۱۲۰۰ق-م (بهليکه) ؤ او کله چې (پاني نې) (مشهور ګرامر ليکونکی عالم) د اټك په غاړه خپلې اته ويناوې په ۳۵۰ق-م کې ليکلی د څلورو فرهنګي ولايتونو له جملې څخه د بلهيکه. ګندهاره، کهپيشه او کمبودچه خاوره ده چې روهيتا ګيري يعنې د روه غرنی سيمه (هندوکش) هغه له ګهيشه جلا کوي. (آريانا ګڼه ۲۸۶ مخ ۱) په حواله په چينايي منابعو کې هم په څو مواردو کې له بلخ څخه يادونه شوې ده

ريموزات (Ta-hig) مملکت چې جنرال چانك کين په ۱۲۹ق-م کې هلته رسيدلی و همدا باختر ګڼي

هيوان تسانګ د لويديزو هېوادونو په بيانوتو کې (FO-HOLO) مملکت هم يادوي چې له شماله د (Fo-Tsu) (اکس-امو) سره پيوسته دی او همدا بلخ دی

او سنت مارس (FO-HOLO) ته بلخ وايي چې (فوقبلايو) هم تلفظ کيږي په (يوان شي) کې څو ځله له بلخه يادونه شوې ده

(يانګ شي) وايي چې (Ban-Le-Ho) د لويديزې آسيا يو لوی ښار دی کله چې چانګ د سمرقند له لارې هندوکش ته د (Ban-li) له ښاره تير شو چې دا (بان-لي) د همدې ښار څخه عبارت دی [2]

د حدود العالم نوم ورکي مؤلف د بلخ په باب مفصلې څرګندونې لري او وايي چې بلخ يو ستر او

---

[1] جغرافياي تاريخي خلافت شرقي. ۴۲۸ مخ

[2] آريانا مجله ګڼه ۳۱۹ مخ ۶ په حواله

سمسوره ښار دی او د پاچاهانو هستوګنځي و. په پخوانيو زمانو کې په بلخ کې د پاچاهانو ودانی وي. چې ښکلي نقشونه او عجيبه شهکاری يې درلودلی او وران شوی دی هغه ته نوبهار وايي او د سوداګرانو ځای دی او يو لوی رود لري چې پوره ګټه ورځنی اخيستل کيږي. په دې سيمه کې ترنج، نارنج، ګنې او نيلوفر زرغونيږي. بلخ يو شارستان لري چې محکمې باري لري او د ده د الفيل په منځ کې ډېر بازارونه دي (۹۹ مخ په حواله)

د کابل مجلې د ۱۳۱۰ کال په ګڼه کې د بلخ په باب تقريباً داسې تاييدې يادونې شته دی بلخ د يوې جلګې په منځ کې له غره څخه څلور فرسخه ليرې موقعيت لري د باکتروس او (بلخاب-بلخ آب) مخرج (سرچينې) ته نژدې ډېره حاصلناکه سيمه او د هندوستان سره د تجارت مرکز ؤ.

د هند سره د بلخ ارتباط غالباً د خلم د جلګې له لارې قايم ؤ د بلخ له اطراف څخه اوږدې باری راتاوي شوي وې چې يعقوبي يې اوږدوالی ۱۲ فرسخه ښودلی دی. او د عربو د استيلا په وخت کې يې وجود نه درلود [1]

## په تاريخي اسنادو کې د بلخ لقبونه:

د تاريخي مدارکو له مخې بلخ ته يو شمېر توصيفي لقبونه ورکړ شوی دی چې د هغه پرتم او د پډ به عروج، ښکلا او تاريخي لوړ مقام په ډاګه کوي

لکه د بيلابيلو ممالکو او مسالکو په کتابونو کې: بلخ ګزين، بلخ الحسنا، بلخ البهيه، ام البلاد، پرتمين بلخ د ښارونو مور او داسې نور

همدا شان د غوره بلخ، بلخ بامي بلخ باميك (چې د باميك کلمه په پهلوي ادبياتو کې استعمال شوی او د درخشان، پر نور، مشعشع او وړانګيز معنا ورکوي

د بلخ د غوره ښار له صفتونو څخه يو صفت (شاوران) دی چې دا کلمه د ترجمې له مخې لايق شاه يا سزاوار شاه يعنې د پاچاهي لايق په معنا ژباړل کيږي خو اصلي معنا يې يو بل څه ده چې هغه بايد د شاهي کوچنی ښار يا شهر کوچك شاهي يا (پاچاهي ښارګوټي) ترجمه کيږي

يوناني باختري لوی پاچا ايوتيدس (اوتيدم) د عصر جغرافيه ليکونکي (استرابون) د بلخ په باب وايي

بلخ د آريانا د مرواريدو صفت او د هزار قلعه اصطلاح په دې عصر کې منځ ته راغلی ده. په همدې شان بلخ د تاريخ په زياتو اسنادو کې د (ام البلاد)، (د ښارونو مور) يعنې د آريانا خراسان او د افغانستان لومړی ټاټوبي او د غزني غوندې (عروس البلاد)، د ښارونو د ناوې د ښکلو او لوړو بيرغونو د ښار په نوم

[1] کابل مجله ګڼه. ۱۳۱ کال. مخ ۳۵،

ياد شوی دی. ۱

مسلسل د ابو ذر غفاري (رض)، د حضرت محمد (ص) څخه روايت کوي:

وايي: د وده ښارونه دي چې جبرائيل امين يې په خپلو مبارکو وزرونو باندې د هغو د اوسېدونکو سره لکه د ناوې د ډولۍ غونډې په ډېر ناز او آرامۍ سره بيت المقدس ته وړي هغه ورځ چې تبديل الارض غير الارض وي دوی د قيامت د ورځې وېرې او زارۍ څخه خلاصون ولري او دا ښارونه نيکانو ته وبخښل شي. دا دواړه ښارونه يو په مشرق کې دي بل په مغرب کې هغه چې په مغرب کې طرابليس دي او هغه چې په مشرق کې دي د بلخ ښار دی. (ص۱۳ - ۱۴)

همدغه ليکوال د حضرت علي (رض) له قوله ليکي:

يو سړي د ده حضور ته راغی، پوښتنه يې ترې وکړه له کومه راغلی، ويې ويل له خراسان څخه بيا يې ترې وپوښتل د خراسان له کوم ښار څخه، ځواب يې ورکړ د بلخ له ښاره حضرت المؤمنين دعا وکړه د هغه ښار اوبه او وابښه دې خواږه او تازه وي او دا ځکه چې د علم او عالمانو څخه داسې ډک دی لکه انار د هغو په دانو، (ص۱۴ فضايل بلخ) ۲

جغرافیاي تاريخي افغانستان د بلخ د ښار په ستاينه او د لوړ تاريخي مقام په باب وايي:

د کوفې ځينو عالمانو بلخ ته (مرجيا باد) وايه او دا په دې سبب چې ابو حنيفه (رح) ورته (مرجي) وايه. چې عالمانه او فاضلانو هم بلخ ته دار الفقا هم وايه ابو القاسم سمرقندي د بلخ په تاريخ کې راوړي دي چې بلخ په اول کې د (برخ) يعنې (برخه) په ځای ؤ چې نصيب ورته وايي او په بامي منسوب ؤ چې د بام يا لوړ مکان په معنا دی. يعنې د بلخ مملکت او پاچاهي د ډېرو لوړو مملکتونو څخه دی. (واعظ بلخي او فضايل بلخ د ۲۸ مخ او ۲۸ مخ په حواله. ۳

## د بخدي کلا (ښار) د وارا مانۍ (ارګ)

وارا د ارګ، حصار، بالاحصار، حصن، او جګې کلا په مفهوم افاده شوی دی. وارا چې د اريانا لومړنی پناه ګاه او پايتخت د بخدي د کلا او ښار مفهوم د دوئ د پيژندنې له مخې څرګندوي چې دا محل ارګ هم دي، احمد علي کهزاد د دې کلا د بنسټ ايښودلو او آبادولو په باره کې وايي:

په آريايي پخوانی تاريخ کې په عام مفهوم او د آريايي کتلی (هندو ايراني) د مهاجرت او ميشته کېدو په تاريخ کې په حاص مفهوم او د افغانستان د تاريخ نه د مخه تاريخ کې په اخص الاخصه معنا ډېره مهمه ده، د غوړ او ځيرنې يوه وړه موضوع د ارګ (وارا) د ودانی څخه عبارت ده.

۱ افغانستان در پرتو تاريخ، کهزاد، ۱۴۸ – ۱۴۹ مخونه
۲ غبار، جغرافیاي تاريخي افغانستان، مخ ۲۲۹ – ۲۳۰
۳ پورتنی اثر، ۲۲۸ مخ

وارا چې دلته یې په ارګ سره ژباړلی ده په نورو تعبیرونو باندې هم معنا او ترجمه شوی ده لکه چې د مخه ورته اشاره هم وشوه وارا: په ماڼۍ، کلا، حصار، کلي، ښار، هستوګنځي او مقر ترجمه کېدای شي.[1]

## د وارا تاریخچه

وارا لومړنی ارګ او لومړنی مقر دی چې (یاما) اریایي لومړني پاچا د هندو آریایي کتلې لومړني پاچا چې د بلخي پیشدادیانو د کورنۍ د لومړني پاچاهۍ مؤسس شو او په خپل ژوند کې یې د هغې په ودانولو او جوړولو کې خاصه پاملرنه ولرله.

یاما لازمه وګڼله چې د ژمي د سختو او نامساعدو شرایطو له امله د ځان او نورو ور سره آریایانو د پاره یوه سرپناه جوړه کړي نو یې د وارا د محوطې په جوړولو پیل وکړ چې پراخه ساحه یې درلودله او د هغې هربازو داس د یوې ځغاستې سره برابر ؤ.[2]

احمد علي کهزاد د بخدي کلا او د وارا د مشخصاتو او ځرنګوالی په باب وایي

د اوستا په شهادت هغه وخت چې یاما پاچا سلطنت ته ورسېد د (اهورا مزدا) د امر له کبله یې د یوې پناه ګاه په جوړولو لاس پورې کړ چې وارا نومیدله، د وارا نه مقصد لکه چې د مخه ورته اشاره وشوه پاچاهي کلا یا پاچاهي ارګ چې د پاراداتا د کورنۍ مؤسس یاما د بلخي پیشدادیانو د سلطنتي کورنۍ د سلسلې مشر (جمشید) د هغې د بنسټ تیږه په خپل لاس کېښودله.

د اوستا دوهم فرګاد (وندیدا) تر یوې اندازې پورې د وارا ماڼۍ د جزئیاتو څخه بحث کوي او له هغه نه د مخه تر پوره اندازې پورې د ماڼۍ او د هغې د شاوخوا احاطې په باب نظریه قایمیدلای شي. او هر کله چې همدغې احاطه کرار کرار پراختیا وموندله، د بخدي ښار ورځنی جوړ شو.

په هره اندازه چې د وارا د ماڼۍ په هکله معلومات تر لاسه شي د ډېر اهمیت وړ دی د وندیدا دوهم فرګاد د مطالبو روح له ۳۱ فقرې څخه تر ۴۲ فقرې پورې په لاندې ډول ښودل کېدای شي.

(.....) اهورا مزدا یما ته وویل د ویوانګت زویه! په یوه پونده (پاشنه) مځکه ووهمه او د کولال په شان خټه په لاسونو لمده او هواره کړه.

یما د (اهورا مزدا) د لارښوونې سره سم مځکه په پونده ووهله او لکه چې اوس یې کولالان کوي خټه یې په لاسونو باندې لمده او هواره کړه او له هغې څخه یې یوه داسې وارا جوړه کړه چې هره ضلع او بازو یې د اس د یو ځل ځغاستې په اندازه اوږدوالی درلود په دغه ځای کې یې د اوبو، ویاله و ایستله او په غاړو کې یې ورته چمنونه او سمسور ځایونه او شنې جلګې جوړې کړې چې تل به ترو تازه وې او وابښه

[1] پښتو اریانا دایره المعارف، ج۲، طبع ۱۳۳۲، ۸۳ مخ

[2] افغانستان در پرتو تاریخ، ص ۱۸

یې نه تمامیدل. دلته یې کورونه او تعمیرونه آباد کړل او د دغه ځای له ودانیو څخه یې یوې ودانۍ برنډې، داخلي او بهرني کوټې او رواقونه درلودل او د میدان په پاسني برخه کې یې دري خیابانونه هم جوړ کړل

د پاسنۍ برخې په خیابانونو کې یې ۶۰۰ تنو ته او د ښکتني برخې په خیابانونو کې یې ۳۰۰ تنو ته ځایونه ورکړل

د وارا د تعمیرونو د جوړیدنې وروسته یې په خپل طلایي لور (د اس د زین) یوه دروازه او کړکۍ وایسته چې رڼا په کې پیدا شي او بیا یې د اسې ښځې د قد و قامت په لحاظ لوړ شکلي او په ښایسته والی کې بې مثاله وې دغه شان ډیر ښه جنس د مرغانو. حیواناتو. نباتاتو او د داسې میوو نه یې چې په ښکلیتوب. ښایسته والی. خوند او لذت او په خوشبویي کې یې په نړۍ کې مثال نه درلود د وارا په ماڼۍ او د هغې د شاوخوا په احاطه کې یې ځای ورکړ او د مرغانو د پاره یې د سیند د مجرا او د هغه د چمنونو په اوږدو کې ځای وټاکه

د ماڼۍ او د هغې په احاطه کې یې ټولو اوسیدونکو انسانانو او حیواناتو او نباتاتو په پوره محبت. سلامتي او په ډیره خوشالۍ سره ژوند کاوه. د دغې ماڼۍ د اوسیدونکو په منځ کې ناروغ عیبجن، کمزوري. کم طاقته. ټګ. متقلب. کینه ناك او دروغجن نه لیده کیده. [1]

د دې ماڼۍ او د بخدي ښار د څرنګوالي په باب او ستا دغه ښار بخدي سریرام د پهلوي فارسي په ادبیاتو کې بخل بامیك چې بامي د روښان په معنا دی او د زند له کلمې څخه مشتق شوی دی. بللی دي

مسعودي ورته بلخ الحسنا او دقیقي بلخي د بلخ ستر شاعر یمین همدغه مطلبونه د غوره بلخ په صورت ادا کړی دی

وارا چې د سرپناه معنا لري په کرار کرار سره د کور. ماڼۍ. او معبد په مواردو کې هم استعمال شوې ده

وارا له اوستایي دوران څخه وروسته له منځه لاړه نه شوه او د هیوان تسنګ له خوا د پخوانی او نوو ویهاره یادونه الزاموي چې پخوانۍ ویها را هم په بلخ کې ودانه او اباده وه

د اسلامي دورې نامتو مؤرخینو او شاعرانو له ویهارا څخه (بهار) او له (ناوه ویهاره) (نه بهار) جوړ کړی دی او تر اوسه پورې د بلخ د سیمې ودانۍ او خرابۍ. کلا او حصار د جنوب له خوا یوه دروازه د نوبهار د دروازې په نوم شهرت لري

ښکلی بلخ. روښانه بلخ. وړانګیز بلخ. بلخ الحسنا. غوره بلخ چې د نجیب قوم (آریا) د مدنیت او تهذیب. ژبې او ادبیاتو او فرهنګ کانون ؤ د آریانا ټول افتخارات له دې ځای څخه نشئت کړی ؤ.

---

[1] د افغانستان پخوانی تاریخ. ج ۱. ۲۷۰ - ۲۷۱ مخونه

سياسي او اداري مرکز، د حکومت او مملکت داري کانون هم وګرزيد.

(... آريانا هورينو) يا اريايي فرشاهي هم له دې ځايه ميدان ته راووت او د لومړي ځل د پاره لوی ياما (پيشدادي جمشيد) د خپل سلطنت او پاچاهي د خپل نجيب قوم د سيادت بيرغ د وارا د مانۍ د پاسه په کتارو (د کنګرو) باندې ورپاوه او د (بخدي سريرام)، (اردو درفشام) يعنې د ښکلو او لوړو بيرغونو خاوند وګرزيد

د اردو درفشام لغت يعنې د لوړو بيرغونو درلودونکي او ستا په توله اريانا نشينو مځکو کې بخدي ته ورکړ.[1]

د آريانا دايره المعارف د ليکنې له مخې هغه خرابې چې د بلخ د شاوخوا په څو کيلومترې کې ليدلې کيږي، د دغه ځای برم او تاريخي عظمت په منظرونو کې مجسم کوي چې د هغه د پاتې شوونو. بقاياوو او آثارو څخه يې د بلخ بالاحصار. د بالاحصار مدخل برج عياران، يو پنډ او لوی ديوال، لوی لوی منارونه او يوه د خاورو غټه غونډی ده.

## د بلخ (بخدي ښار)

مؤرخينو او محققانو د بلخ د ښار او د هغه ساختماني او تعميراتي څرنګوالي په باب زياتې څرګندونې لري چې د هغو له رويه د بلخ تاريخي قدامت او عظمت ښه په ګوته کيدای شي.

يعقوبي په دريمه هجري پيړۍ کې د بلخ د ښار او د هغه د ودانيو په هکله داسې ليکي.

بلخ د خراسان يو لوی ښار دی په پخوانيو زمانو کې يې (۳) بارې (پاخه ديوالونه او ۱۳ دروازې درلودلې

مقدسي وايي

په ايراني کتابونو کې بلخ ته له برمه ډک بلخ. پرتمين بلخ ويل شوی. د نوبهار ربض د ښار څخه د باندې دی.

د ښار مساحت درې ميله په درې ميله کې دی.

د يعقوبي د وينا له مخې بلخ شلو پينځت جوماتونه درلودل.

اصطخري وايي. د بلخ ښار په يوه جلګه کې واقع دی او د (چهل کوه) نامې غرونه ترې څلور فرسخه لېرې پراته دي.

جامع جومات د ښار په منځ کې دي او بازارونه د جومات په شاوخوا کې موقعيت لري.

بلخ يو نهر لري چې (دهاس) نوميږي چې د ابن حوقل په قول په فارسي کې د هاس ته (ده آسيا) (لس ژرندي) ويل کيږي. دا نهر وروسته له هغې چې دغه لس ژرندي وګرزوي د نوبهار له دروازې څخه تيريږي

---

[1] همدغه اثر ۲۷۵ – ۲۷۶ مخونه

او بیا د ښار کلي ته تر سیاګرده او ترحد د لارې سرخړوبوي.

د نهر شاوخوا د بلخ نیلوفر، ګنیو او انګورو شنه شنه باغونه دي. د دې محصولات د بلخ څخه د باندې لیږل کیږي. د بلخ بازارونه معمور او له سوداګرو څخه ډك دي.

د بلخ ښار اوه دروازې لري (د یعقوبي په قول ۱۳ دروازې ښودل شوی ی) چې هغه دا دي:

- دروازه نوبهار
- دروازه میدان (واخته)
- دروازه آهن (باب الحدید)
- دروازه یهود
- دروازه شست بند
- دروازه یحي (په بل قول بختي)

په کال ۵۵۰ هـ د غز تر کانو د استیلا په وخت کې بلخ ته زیات زیان ورسېد او بیا وروسته یې خپل رونق تر لاسه کړ. ۱

پورتنی دروازې د نومونو په لړ تفاوت سره جغرافیای تاریخي افغانستان هم تایید کوي او زیاتوي چې د بلخ ښار بارولري او د ښار دروازې له هغه څخه بیرته کیږي. ۲

یعقوبي لیکي چې بلخ د ناحیو او ښارونو درلودونکي دي.

او عبدالرحمن بن ثمره د معاویه بن سفیان په وخت کې چې بلخ فتح کړ نو یې د هغه په باب وویل: د بلخ ښار د خراسان ډېر لوی ښار دی او د خراسان پاچا (شاه طرخان) هلته هستوګنه درلودله.

بلخ یو ښار دی چې له عظمته ډك دی او دوه باری لري، یوه باره د بلې باري شاته واقع ده. او په پخوانیو زمانو کې یې درې بارو درلودل او د هغه دولس دروازې وې ویل کیږي چې بلخ د خراسان منځ دی.

لکه چې د هغه ځایه تر فرغانې پورې ۳۰ میله د مشرق خواته دي. او له دې ځایه تر (ري) پورې دروازې موجودې دي.

او د دوهم بارو چې د ښار د څنډو د ودانیو د پاره ده، څلور دروازې دي او له یوه بارو څخه بل بارو او بیا له هغه څخه د بارو تر منځه مسافه یو فرسخ ده، نو دا ده چې د بلخ د ښار مساحت ۲ (۳۰) منزله (دا مسافه سمه نه ده ځکه چې د کابل کندهار پورې څو منزله تفاوت شته دی) او له هغه ځایه تر کرمان پورې ۳۰ منزله او له هغه ځایه تر کشمیره پورې ۳۰ منزله او له هغه ځایه تر خوارزم پورې ۳۰ منزله او له هغه

۱ لسترنج، جغرافیاي تاریخي سرزمین هاي خلافت شرقي، طبع ۱۳۳۷، مخ ۴۴۷
۲ همدغه اثر، ۴۴۸ مخ

ځايه تر ملتان پورې ۳۰ منزله.

د بلخ لوی بارو د بلخ له کليو، ابادیو او د کرنې له سيمې څخه راتاو شوی دی. لکه د مزرعو او ودانيو له دروازې څخه تر هغې دروازې پورې چې مخامخ ورته پرته ده (۱۲) فرسخه فاصله ده او د بارو د باندې کوم تعمير، زراعتي سيمه او کلي نشته دی او يوازې ريګستان دی او د دې لوی بارو د پاره چې د بلخ د مځکې څخه راتاو شوی دی ۱۲ ميله په درې ميله کې دی (يعقوبي ص۶۳ -۶۴ په حواله). ۱

حافظ ابرو د بلخ د توابعو په باره کې وايي: تخارستان، سمنګان، بغلان، سرای درهنګ، طالقان، اندخو د (اندخوی)، شبورغان، فارياب، جوزګان، باميان، غزنه، بنجهير، کابل او د فراوان ترسند تر غاړو پورې بلخ شمېرل کيږي. او د هرات له طرفه لنګر ججکتو تر مرغاب د بلخ له توابعو څخه دی.

اصطخري هم د بلخ د ښيګنو په باب يادونې لري او وايي: ډېره پر تمينه ډېره آباده او ډېره پر نعمته خاوره ده. او ورپسې د بلخ د ساختماني ځرنګوالي په باب داسې معلومات وړاندې کوي.

ښار په يوه دښته کې پروت دی، له بلخه تر غره پورې څلور فرسخه مسافه ده بلخ بار ولري، ربض او مسجد ادينه د ښار په د ننه کې پروت دی او د جومات ګرد چاپير بازار دی چې هميشه ودان دی.

ابن حوقل وايي که د بلخ ښار د هرات او (مرو) غوندې مهم او لوی ښار دی د دې ښار مساحت د هغه د چاپيريال سره يو فرسخ په يو فرسخ کې دی. دا ښار په ۵۹۰هـ (چې دا نيټه د يوه بل روايت د نيټې سره توپير لري) د غزانو په واسطه وران شو. بيا وروسته ورته خلك بېرته راستانه شول او په دښته کې يې د پخوانی ښار تر څنګه له ختو څخه نوی ښار جوړ کړ. ۲

ابو الفضل بيقهي د سلطان محمود په تاريخ کې د بلخ، د ښار د نورو ودانيو تر څنګه وايي: سلطان محمود غزنوي په بلخ کې يو لوی باغ د خلکو په واسطه په بيګار جوړ کړ چې ګرد چاپير يې يو فرسنګ ؤ او هر ډول ميوې او ونې پکې اينښودل شوی دی د بلخ د لويوالی او عظمت په باب به يوازې دا بيلګه کافي وي لکه چې يعقوبي ويلي دي بلخ (۷۴ منبره درلودل). ۳

بلخ بيا هم تر اوږدې مودې پورې په خپل حال ودان او په رونق کې پاتې نه شو. په ۶۱۷هجري کې د بلخ ښکلی ښار د مغولو د وحشي لښکرو تر پښو لاندې پايمال شو او حتی د هغه د جومات په ورانولو يې هم صرفه و نه کړه.

ابن بطوطه وايي: جنګيز ته خبر ورکړ شو چې د بلخ د جومات د ستنو لاندې خزانې ښخې شوی دی دا و چې د چنګيز په حکم د جومات يو په دريمه برخه يې ورانه کړه خو کومه خزانه پکې و نه موندلای شوه.

۱ جغرافاي تاريخي افغانستان، مخ ۲۲۸
۲ پورتنی اثر، ۲۳۰ مخ
۳ همدغه اثر، ۲۳۴ مخ

(او دا د هماغه د مصر د سکندريې د عجايبو ډك د منار کيسه شوه چې دا حنف بن قيس له خوا د دغسې خزانې په ګومان) وران کړی شو. او هغه وخت چې ابن بطوطۀ د اتمې پيړۍ په لومړيو کې بلخ ليدلی ؤ نو په يوې کنډوالې بدل شوی پروت ؤ.[1]

## د بلخ بالاحصار

د بلخ د تاريخي پيښو او استحکامي ودانيو له جملې څخه يو هم د بلخ بالاحصار دی چې ځينې ورته د هندوانو کلا وايي. دا کلا له پخوا زمانې راهيسې يو پراخ متين او پر تمين بالاحصار ؤ چې تر اوسه يې هم د برجونو او بارو (پخو ديوالونو) آثار پاتې او شاهدان دي.

د بالاحصار مدخل ډېر لوی او د يوې مستحکمې کلا په شکل جوړ شوی دی.

د برج او بارو آثار يې تر اوسه پورې هم موجود دی. او ممکنه ده چې د هغو کلاګانو له جملې نه به وي کومه چې مقدوني سکندر دلته جوړې کړې وې. يو وخت فرانسوي لرغون پيژندونکي هيئتونو لکه مؤسيو فوشه او موسيو هاګن په واسطه په دغه بالاحصار کې د ننه کنيدنې وشولې خو د کيندنو آثار او يو زيات شمېر استوپې دلته څرګندې ښکارې.

## د بلخ د عيارانو برج

د بلخ يو بل تاريخي ساحمان هغه ښکلی او قديمه مثمن شکله ساختمان دی چې د (برج عياران) په نامه بلل کيږي.

دا برج د بلخ د مرکز د جنوب لويديز د يو نيم ميلو متری په فاصله د برج عياران په کلي کې واقع دی. دغه برج ډېر پخوا جوړ شوی دی. او اوس يې هم د هغه پاملرنې په اثر چې د ترميمولو په برخه کې شته. هماغه خپله پخوانۍ ښکلا او برم يې ساتلی دی.

## د بلخ ديوال (حصار)

د بلخ د لرغونو ښيو او پخوانيو آثارو په جمله کې يو هم ډېر ضخيم او ډېر لوی ديوال دی چې د ازبك عبد المؤمن خان. د عبد الله خان د زوی په عصر کې د ښار ګرد چاپير راتاو شوی دی.

دغه ديوال چې د بلخ په جنوب کې واقع دی يوه برخه يې د برج عياران سره نښتلی ده دا ډېر ټينګ او پوخ ديوال دی او تر اوسه پورې په هماغه ضخامت پاتې دی.

خو ځينې برخې يې د نورو سرکونو د ايستلو په وخت کې ورانې شوی دی.[2]

---

[1] جغرافياي تاريخي سرزمين خلافت شرقي. ص ۲۲۸

[2] پښتو اريانا دايره المعارف. ج ۲. طبع ۱۳۵۴. مخ ۲۵۸

## د بلخ خاورينه غونډۍ:

د بلخ يوه بله تاريخي ابنيه هغه ډېره غټه يوه خاورينه غونډۍ ده، چې د برج عياران جنوب غرب کې پرته ده او د (توپ رستم) په نوم بلل کيږي. د دې غونډۍ پر سر د ودانۍ آثار او يوه مربع شکله صُفّه څرګنده ده او له دې څخه معلوميږي چې پخوا د دې تپې پر سر باندې يو تعمير ؤ او آبادي پکې موجوده وه.

## د بلخ منارونه:

د بلخ له لرغونو ابنيو څخه هغه لوی منارونه هم دي چې د زردشت د زمانې پورې تعلق لري دغه منارونه د خښتو او ختو څخه جوړ شوي دي. ۱



۲ پورتني اثر ۴۵۸ مخ
همدا شان حدود العالم. کابل مجله. ۵ ګڼه. ۱۳۱۰، ۳۴ مخ. کابل او آريانا مجلې کلکسيونونه



# ٤- هرات

**(د مرغلرو ښار)**

هرات چې په تاريخي اسنادو کې د شهر مروارید (د ملغلرو ښار) او د خراسان د ښارونو د مور لقب ورکړ شوی دی زموږ د هېواد د لرغونو، مهمو، تاریخي، فرهنگي، مدني، پوځي او ستراتیژيکي ښارونو څخه یو نامتو ښار دی. او بې ځایه به نه وي چې د علم، ثقافت او د تجارتي ستر مرکز په نوم هم یاد شي.

د هرات ډېر لرغونې ښار د بطلیموس په قول (آریه) دي چې د آریانا د اوو گونو ولایتونو له جملې څخه شمېرل کیږي.

په قطعي دلیل (هر یو) د (هر) په (زیر) او د (واو) په زور هرات دی د محشتمې برهان هراه (هراة) چې د هرې او هریو سره معادل دي په اوستا کې (هر یوا) ضبط دی. ١

د لرغونې هرات څلور خواوې په دې ډول دی:

- شمال: د مرگیانو او مرو ولایت په صفحاتو پورې.
- جنوباً د درنگیانا سستان او فراه ولایت په صفحاتو پورې.

١ (جغرافیي تاریخي سر زمینهاي خلافت شرقي، ۴۱۴ مخ)

- شرقاً: د غور او غرج (غور او هزاره جات) صفحاتو پورې.
- غرباً: د پارتيا (د اوسني خراسان يوه برخه) د صفحاتو پورې تړلی ؤ.[1]

## هرات په تاريخي اسنادو کې:

هرات په تاريخي مدارکو او اسنادو کې په بيلابيلو نومونو او مفاهيمو ياد شوی دی.

هريوا (Haraya) يوه نامه ده چې په اوستا کې د هريرود په لويديز کې د سرسبزي خطې د پاره استعمال شوې دي.

په دې کلمه کې د پخواني اريانا د لفظ ريښه موجوده ده. په ځينو نومونو کې چې اوس د زمانې په تيريدو سره د (هرې) (ارې) او (اريا) نه هرات شوی دی[2] چې په عين مفهوم سره ښاغلي کهزاد په تاريخ افغانستان ج. ا. ۴۱ مخ کې داې ليکلي دي:

هريوا يو نوم دی چې اوستا د هريرود د ناوې سمسوري سيمې ته ورکړي دي.

د هرې، ارې، اريا او د هرات نوم ترې اشتقاق شوی دی.

د هرات نوم په دې شکل د لومړي ځل د پاره د زردشت په فهرست وينديداد (Vendidad) کې ياد شوې دي.

زردشت په خپل مذهبي کتاب اوستا کې د هرويو يا هرايوه په شکل ياد کړې دي.

د کوروش په نقشه کې (۵۴۶ق.م- ۵۳۹ ق. م) هرای و، اريا او هريرود ذکر کړې دي.

د هخامنشيانو په نقشيه کې د هرات په شکل راغلي دي.

د نقش رستم په کتيبه کې، د تخت جمشيد په کتيبه هم د هرات په شکل ترې يادونې شوې دي.[3]

د اشپيګل د (۲۴۹مخ، په استناد هرات ته په پهلوي کې (هره) او (هريك) ويل کېده مارکوارت وايي: چې د پخواني ايران له ښارونو څخه دي خو ياقوت حموي څرګندوي چې هرات د لويو ښارونو څخه دي او د خراسان د ښارونو مور بلل کيږي.

د هرات د ښارونو د جوړيدنې په باب زيات روايتونه شته دي چې د ليکنې د لنډيز په مقصد ترې صرف نظر کيږي.[4]

د هرات ښار د تاريخ په بيلابيلو مرحلو کې په يو شمېر نورو نومو لکه (اريامتروپوتس) هرات، هريوا، ارتاکوانا (ارتاکون، ارتاکانا، ارتاکان، شاهي ښار، اريانه، هري او داسې نورو باندې هم پوره

---

۱ (آريانا مجله ګڼه ۶، ۱۳۱۰کال. مخ ۴۶)
۲ پښتنانه د تاريخ په رڼا کې، ظفر کاکخيل. ۷۹ مخ.
۳ کابل مجله ۱۳۱۶ش، ۵۹ مخ
۴ آريانا مجله، ۱۳۶۲ کال

شهرت درلودلی دی. (جغرافیاي تاریخي سرزمین هاي خلافت شرقي په حواله).

د هرات د ښار مؤسس معلوم نه دی. اما تاریخي قدامت یې د ېرو پیړیو ته رسیږي. تاریخ ښیي چې د اریایي قومونو چې د سیحون او جیحون نه اریانا ته هجرت وکړ، لومړي یې په هرات کې هستوګنه غوره کړه[1]

د هرات لرغوني ښار چې په پخوانیو زمانو کې تقریباً پراخه ساحه رانیوله، پخه کلا ارګ او پاخه برجونه لري چې په نړۍ کې بې ساري دي.

په اسلامي دوره او په لسمه میلادي پیړۍ کې هرات د مقدسي او ابن وقل په قول یو لوی ښار ؤ چې لوی دیوالونه (حصارونه) برجونه، کهندز، ارګ او نورې ودانۍ یې درلودلې.

## د هرات د ښار دروازې:

د هرات د ښار او کهندز دروازې په مختلفو روایاتو بیلابیلې ښودلې شوي دي.

د تحفة الاشراف مؤلف وایي. د هرات شهر بند په پنځو دروازو دوو فصیلونو (د دوو بارو ترمنځه فاصله) چې د هر فصیل ترمنځه مسافه له ګزه، (۱۴۹) برجونه شامل دي چې ګرد چاپیر یې ۷۳۰۰ ګامه کیږي. د ښار قطر د ملك له دروازې څخه تر فیروز آباد دروزې پورې، د خوش له دروازې نه د عراق تر دروازې پورې ۱۹۰۰ په ۱۹۰۰ ګامه دي.

شهر بند خندق لري چې ۲۰ ګزه عرض لري

ابن حوقل د هرات د ښار دروازې څلور بولي:

۱- د سرای دروازه په شمال کې د بلخ په طرف چې د ماښي په دروازه مشهوره ده.

۲- د زیاد دروازه په غرب کې د نیشاپور په طرف.

۳- د فیروز آباد دروازه په جنوب کې د سیستان په لور.

۴- د خشك دروازه په شرق کې د غور په لور

دا ټولې دروازې پرته د سرای له دروازې څخه چې له اوسپنې څخه جوړه شوې ده نورې درې واړه دروازې د لرګي څخه جوړې شوی دی. او بیا دا هره دروازه ځانته حلا بازار لري[2]

د ښار په د ننه کې حوض دي چې د جاري اوبو درلودونکي دي.

پخپله د هرات کلا هم څلور دروازې لري چې د ښار دروازو ته مخامخ پرتې دي او د هغو په نوم یادیږي. (د صورت الارض د ۱۷۲ مخ په حواله اریانا مجله)

مقدسي او لسترنج هم د هرات د دروازې شمېر څلور تاییدوي.

---

[1] کابل مجله ۱۳۱۰. ۴۳ مخ

[2] جغرافیاي تاریخي سرزمین هاي خلافت شرقي. ترجمه محمود عرفاني. ۱۲۳۷. ص ۴۱۴

خو د ترکي (جهان نما) کتاب لیکوال چې په ۱۰۱۰ هـ کې یې ژوند کاوه وایي چې دغه وخت د هرات ښار پنځه دروازې لرلي چې په لاندې ډول یې معرفي کړي دي

- شمالي دروازه چې د ملك د دروازې په نوم شهرت لري.
- غربي دروازه چې د عراق د دروازې په نوم یادیږي.
- جنوبي دروازه، چې د فیروز آباد د دروازې په نوم یادیږي.
- شرقي دروازه، چې د خوش د دروازې په نوم یاده شوي او دا خوش چې خشك ورته هم ویل شوي او ممکن د کوشك دروازه هم وي.
- پنځمه دروازه چې دا هم د کلا په شمالي بازو کې او نوي آباده شوي ده د قیچاق د دروازې په نوم یادیږي.

په جهان نما کې د هرات د لسو ملکونو (کلیو) نومونه هم اخیستل شوي خو محلونه یې معلوم نه ده.[۱]

د قیچاق تر دوو دروازو پورې چې تر چارسو پورې دي بازار نه لري.

د ملك بازار د حصار له بیخه تر چارسو پورې له پخو خښتو څخه جوړ شوي دي او څو تیمونه لري چې هر یو یې د بل بازار سره موازي دي. او د دروازو په بهرنیو برخو کې هم د ښار تر سواد پورې بازار دي[۲]

حافظ ابرو د خراسان د ربع د برخې په جغرافیا کې له هراته داسې یادونه کوي او وایي:

هرات پنځه دروازې لري

د ښار د دیوال په شمالي برخه کې دوې دروازې شته دي چې په دې دروازو کې د خلکو ګڼه ګونه زیاته ده او هغو دواړو ته د میدان دروازه او د رامان دروازه او ملك دروازه هم وایي لسترنج هم پورتني قول تاییدوي.[۳]

نوموړي وایي

چې د اختیار الدین کلا هم دوې دروازې لري

یوه یې شمالي دروازه چې هلته د اسانو بازار دي

بله یې د جنوب له خوا چې د شنوز په خوا ده.

د هرات د شهر بند په د ننه کې څلور بازاره دي چې له هرې دروازې څخه څلورو خواوو ته یو بازار دي

۱ غبار، افغانستان در مسیر تاریخ ص۲۱۹

۲ (روضات الجنات اسفزاري ج۱. ۷۷ – ۷۸ مخونه)

۳ آریانا مجله ۳ ګڼه ۱۰۹ – ۱۱۲ مخونه. ۱۳۵۶ کال

او د هماغې دروازې په نوم یادیږي.[1]

د هرات د ښار ودانی او رونق تر هغه وخت پورې په خپل حال باقي پاتې ؤ چې د مغولو په مصیبتونو لا نه ؤ اخته شوي او دا ځکه چې د مغولو قساوتونو او وحشتګریو هرات هم د هېواد د نورو ودانو او معمورو محلاتو غوندې د خاورو سره خاورې کړ.

یاقوت حموي چې په ۶۱۴ یعنې پر هرات د مغولو تر حملې څلور کاله وروسته چې په هرات کې اوسیدلی وایي

په خراسان کې د ډېر لوی، ډېر مهم او ډېر ښکلي، له ډېر رونق او نفوس څخه ډك ښار پرته له هراته یې نه دي لیدلي چې زیات باغونه او پریمانه اوبه لري.

قزویني هم په همدې وخت کې د یاقوت د خبرې په تایید وایي: هغه ژرندي چې د باد په واسطه ګرزیدلې له هغوی څخه یې یادونه کړې ده. البته نوموړي تر دې وخته پورې دغه بادي ژرندي هیڅ چېرته نه دي لیدلي.

هرات د مغولو تر فتنو وروسته دوباره بیا له سره آباد شوی ؤ او حمدالله مستوفي د مغولو تر حملې وروسته یوه پیړۍ د ابن بطوطه وینا تایید کړي چې ویلي ؤ.

هرات تر نیشاپوره وروسته د خراسان د ډېرو سترو ښارونو څخه دی. د دې ښار دوه بارې ۹ زره ګامه دي ډېره په زړه پورې او ښه هوا لري او په اوړي همیشه باد چلیږي او «دیه» یې اته باره دي د هغې سره نښتي ښار او ربض دي او د هریرود رودګي ترې تیریږي.

هلته یوه محکمه کلا ده چې (سمیرم) ورته وایي چې د هرات په اوه فرسخي کې پرته ده، د غره اتشکده ده چې اشك او دلته پرتې کلاته مکلچه وایي.

(جغرافیاي تاریخي خلافت شرقي. ۴۳۵ مخ)

د هرات ښار په دولسمه او دیارلسمه میلادي پیړۍ کې چې د شپږمې او اومې هجري پیړۍ سره سمون خوري پراختیا وموندله تر هغې چې ویل کیږي (د نزهت القلوب مؤلف حمدالله قزویني) د غوریانو د سلطنت په عصر کې د هرات ښار ۱۲ زره دکانونه. ۴۴۸ زره کورونه. ۳۵۰ بابه مدرسې او خانقاوې درلودلې.[2]

د قزویني له یادونې داسې معلومیږي چې تر دې وخته پورې هرات ته د مغولو تاړاکونه نه ؤ رارسیدلي.

په یوه بل روایت د تاریخي شواهدو په استناد د هرات ښار د افغانستان د پخوانیو او لرغونو

---

۱ پورتنی اثر، ۱۱۲ مخ

۲ غبار، افغانستان در مسیر تاریخ، ص ۲۱۹

ښارونو څخه دي که څه هم د دې روایت له مخې د جوړېدو تاریخ يې معلوم نه دي (یعنې د اختیار الدین پر کلا برسیره او د اورتاکانا د کلا د مؤسس په شمول) مګر ویل کیږي چې دا ښار د سلطان غیاث الدین محمد سام په زمانه (۵۴۴هـ) جوړ شوي دي دا ښار لکه چې د مخه ورته اشاره وشوه د تاریخ په اوږدو کې په مختلفو نومونو لکه هرات هریوا، ارتاکوانا، ارتاکوان یا ارتاکان یعنې د اریائیانو شاهي ښار، اریانه، هري او داسې نورو باندې یاد شوي دي.[1]

د دې ښار د ښکلا او رونق په باب میلسن لیکي

زه هغه الفاظ نه شم پیدا کولای چې د هرات لرغوني د بد به او ښکلیتوب پرې افاده کړم پرته له دې چې هرات ته هرات ووایم.

په همدې ډول نیلامایر وایي: که چېرته د هرات ښار د قاهرې د ښار سره مقایسه شي ګورو چې قاهره که څه هم د هرات د ښار د ودانیو په نسبت زیاتې ودانۍ لري مګر په ښکلا او برم کې د هرات مقام ته رسیدلای نه شي.

زما په عقیده که څه هم د غزني ښار ته د عروس البلاد لقب ورکړ شوي دي خو د برم او دبدبې او ښکلیتوب او ساختماني سبك او فورم له مخې به د هرات د ښار مقام ته و نه رسیدلای شي چې یو دلیل يې د دې ښار ډېر مناسب جغرافیوي موقعیت او ستراتیژیکي اهمیت دي.

د عبدالرحمن جامي د روایت په اساس د هرات د ښار د آبادۍ څخه تر ۱۵۰۰ کلونو زیاته موده تیریږي او په یوه وجه ویل شوي دي چې د هرات د ښار بنا د طهمورشاه بن هوشنګ ابن فرسب بن کیومرث د زمانې څخه ده.

## هرات د ساختماني څرنګوالي له مخې:

## د هرات کهندژ او شاهي ارګ:

موږ به د هېواد لرغوني او مهم ښارونه ډېر په ندرت سره ولیدلای شو چې هغه به کهندژ او ارګونه چې په کلاسیك سبك او عنعنوي شیوه جوړ شوي وي. د خپلو ودانیو په جمله کې و نه لري چې په دې موضوع باندې همیشه خبرې شوي دي. او هرات چې زموږ د هېواد د لرغونو فرهنګي، مدني، تجارتي، پوځي او داسې نورو مرکزونو څخه یو مهم مرکز دي کوم چې د وریښمو د لارې یو مهم کاروانسرای او د شرق و غرب، شمال او جنوب په منځ کې د څلور لارې او حتی څو لارو د تلاقي په محل کې پروت دي، بې له شکه د باندنیو یرغلګرانو او فاتحانو د توجه وړ پاتې شوي دي. او خامخا د کهندژ درلودونکي دي، چې دا دي په دې مورد کې بیا هم د تاریخ او جغرافیه د پیاوړو پوهانو له نظره او قوله دا موضوع تر

[1] غبار. جغرافیاي تاریخي افغانستان، ۱۳۶۸، ص ۶۴

څېړنې او مطالعې لاندې نيول کېږي.

بطليموس دا ښار د (اريامتروپولتس - **Ariametropoltis**) په نوم نومولی دی د هرات ښار د سکندر تر حملې د مخه د ارتا نا په نوم يادېده او همدا شان (کهن دژ) او (دژسميران) په نوم هم ياد شوی دی (جغرافيه افغانستان ۶۴ مخ)

د حدود العالم نوم ورکي مؤلف وايي:

هری شهريست بزرگ و شهرستان وی استوار است و او را قهندزو ربض گرداگرد شهر يا پيرامون شهر.[1]

خو په يوه اثر کې د هرات د کهندژ په باب يو څه په تفصيل سره بحث شوی او ويل شوی دي.

د هرات کلا هم د قهندز (زړې کلا) په نوم يادېږي او دا کلا هم لکه د هرات ښار څلور دېره ازی لري چې هر يوه دروازه يې د ښار دروازې ته مخامخ پرته ده. او د ښار د دروازو په همـاغو نومونو يادېږي د هرات د ښار مساحه نيم فرسخ په نيم فرسخ کې ده

د هرات د ښار دارالاماره په يوه داسې محل کې موقعيت لري چې په (خراسان آباد) شهرت لري. د ښار د باندې په يوه سيمه کې د فشونګ د لارې پر سر چې د لويديز په استقامت غزيدلې ده ارګ ته نژدې څلور دروازې موقعيت لري او د هرې دروازې د باندې يوه پراخه سيمه موجوده ده

د ښار په داخل کې يو بازار شته. د دغه بازار په منځ کې جامع جومات او د هغه د قبلې لورې د شاته د ښار زندان دی.

ياقوت حموي دا ښار په ۶۱۴ هـ کې په پوره برم او دبدبې کې ليدلی. وروسته د مغلو له لاسه وران شو خو بيا وروسته بېرته ودان کړې شو.[2]

په يوه بل روايت کې د هرات د لرغوني ښار په باب داسې راغلي دي:

د هرات د پاخه عمر لرونکې ښار په پخوانيو زمانو کې د نسبتاً پراخې ساحې درلودونکی او د هغې د کلا او برجونو پوخوالي بې ساری و

مرزا عطا محمد شکارپوري د هرات کلا په دې ډول ضبط کړې ده:

له کومه ځايه چې د هرات کلا په ټينګوالي او متانت کې ساری نه لري بلکې د سد سکندر په شان ده، چې د زياترو يا جوج ماجوج اصلو مخالفينو د پاره په هغې لاس بری نشته مګر که د کلا په داخل کې څوک د خيانت او ټګۍ اوربل کړي. کنه په هيڅ صورت دغه کلا څوک نيولای نه شي

ويليم جان کې ليکلي:

---

۱ د اريانا مجله ۲ ګڼه. ۱۳۶۲ مخ ۱۲۰

۲ آريانا مجله. ۲ ګڼه. ۱۳۶۲. مخ ۱۲

د هرات ښار له هرې خوا نه د يوه ابي خندق او بيروني پخو ديوالونو په واسطه د پنځو دروازو سره چې هر يوه يې په خاص تكتيك سره مدافعه كېږي ډېره مستحكمه شوې ده. ۱

جغرافياي تاريخي افغانستان د جغرافياي عمومي افغانستان، ۲۸۴ مخ په حواله ليكي: د هرات د تاريخي بناګانو په جمله كې د ارګ قلعه هم شامله وه. او له دې څخه څرګنديږي چې پخپله د هرات ښار پخوا يوه پخه كلا (كهندژ) درلود او دې ښار داخلي او خارجي ديوالونه هم درلودل. ۲

حمدالله (مستوفي) د هرات د ښار د پوخوالي او د كلاګانو په متعلق وايي:

د هرات خلك چې په وسله مين او جګړه مار خلك دي هلته يوه محكمه كلا موجوده وه چې اشك ورته وايي او په اوس وخت كې د مكلجه په كلا مشهوره ده.

اوس چې خبره دمكلجه پخې كلاته راغله او د ځينو تاريخي روايتونو له مخې ممكن دا هماغه د هرات كهندز وي چې تر اوسه مو د هرات د پخې كلا په نوم پرې بحث وكړ.

نو د دې د پاره چې د مكلجه په نوم يې وپيژنو لاندې څيړنه ايجابوي.

د هرات كهندز د ارشك (رشك) او املكچه كلا په نوم كه څه هم د دې پخې كلا په هكله په يو څه تفصيل سره د نامتو مورخانو د قولونو په استناد بحث وشو خو كه د رشك كلا له هغې بله كلا وي نو هغه به دې ډول معرفي كيږي.

دا امكلچه او اشكلچه د نومونو د مشابهت په استناد د (ارشك) كلاته (قلعه امان) هم ويل شوي دي. لكه چې په يوه تاريخي سند كې راغلي دي:

د ارشك كلا د اشكلچه او اشكلچو په شكلونو هم ضبط شوې ده، روسي نامتو مستشرق بار تولد په قول دا كلا د كرت د پاچاهانو په دوره كې د نه تسخيريدونكو او بر لاسي نه منونكو كلاګانو په رديف كې راغلي ده چې د ښار د جنوب غرب په څلور فرسخي كې بنا شوې ده.

چې د دې كلا دا خصوصيت لكه چې د مخه هم وويل شو شكار پوري په قول كې هم د عباراتو په يو څه بدلون تاييد شوي دي.

د روضه الصفا ليكوال د دې كلا په هكله هم داسې څرګندونې لري:

د امان كوه كلا چې په اشكلچه هم مشهوره ده هغه د ده پلرونو او نيكونو (چې مراد ترينه ملك فخرالدين كرت دي) د هرات د لويديز مخ ځوړې په طرف جوړه كړې ده. د زياتو خزانو څخه ډكه ده. (روضه الصفا ۲۹۹ مخ) دا كلا د كرت د پاچاهانو يوه نه تسخيريدونكي او ډېره مهمه پناګاه ده، لكه چې ملك فخرالدين كرت چې د هرات د انقلاب او شورش په موده كې (۷۰۶هـ) تر مرګ د وخته پورې په دې كلا

۱ جغرافياي تاريخي افغانستان، مخ ۶۴

۲ آريانا مجله، ګڼه ۶، ۱۳۲۳، مخ ۱۴

کې اوسيده.(١) بايد وويل چې د هرات د انقلاب او شورش څخه مطلب يو څه تحريف شوي شکل لري ځکه چې دغه تاريخ د مغولو د وحشتگريو او ورانکاريو وختونو ؤ. او دغسې له جنايت ډکو عملونو ته يوازې د فتنو او تباهکاريو نوم ورکولای شونه د انقلاب. (ليکوال)

لسترنج د حمدالله قزويني په حواله د رشك (ارشك) د کلا په باب وايي.

د هرات په دوه فرسخي مسافه کې د يوه غره د پاسه يوه آتشکده ده چې هغې ته اشك وايي او اوس ورته امکلچه قلعه ويل کيږي.

د دې آتشکدې او د کنيسه نصاري د ښار تر منځه د ادبياتو او عالمانو قبرونه د شيخ عبدالله انصاري چې په مصري پير مشهور دي، د خواجه مهر ابوالوليد او امام فخري رازي قبرونه موجود دي.

د غوري ملکانو په وخت کې دلته ١٢ زره دکانونه آباد وو. شپږ زره حمامونه او کاروانسرايو نه طاغونه (ژرندي) او ٣٥٩ مدرسې، خانقاوې، آتشکدې او ٤٤٤ زره کورونه ميشته وو.

د اتمې پيړۍ په وروستيو کې گوډ تيمور د هغې بارو وران کړ. ٢

دلته که چېرته ١٢ زره دکانونه ٤٤٨ کورونه او ٣٥٠ مدرسې او خانقاوې چې په مخکيني روايت (د دې ليکنې په ..... مخ کې) راغلي دي د پورتنيو عددونو او محلونو سره مقايسه شي نو بيخي نسبي توپير لري او له دې څخه دا په ډاگه کېدای شي چې د هرات کهندز همدا (قلعه امان کوه) او امکلچه ده.

هرات په څلورمه هجري پيړۍ کې يو ودان ښار ؤ چې مستحکمې کلاوې، باري او څلور دروازې يې درلودلې د هرات هغه کلا چې کهندز. کهندژ (کهن دژ) په نوم يادېدله هم د څلورو دروازو درلودونکې وه چې هر يوه يې د ښار د دروازو په لور وه.

ابن حوقل ليکي. د کلا د باندې يو ديوال (ربض) دي چې کلا يې رابنده کړې ده او د دې ديوال لوړوالی د انسان له قد څخه لوړ دي

... درې گامه ده. د همدغه اثر د ليکنې له مخې دا کلا د د اميرالشعب محمد په امر ورانه شوه.

په يوه بل سند کې داسې راغلي دي:

د هرات پخواني ښار د يوه بل حصار درلودونکې ؤ چې په د ننه کې يې اوس هم د ودانيو د خرابو او د خندق آثار ليدل کيږي.

د ښار د ديوال متصل په يوه لوړ ځای کې شاهي ارگ ودان شوی ؤ چې د کلاسيکي سبك له مخې يې مربع شکل درلود. په کونجونو او د بازوگانو په اوږدو کې يې مدور لوی برجونه وو چې شمېر يې ٤ برجونو ته رسيده د يوال لوړوالی تقريباً ١٥ متره ؤ.

١ آريانا مجله، ۶ گڼه، ١٣٢٣ کال، ١۴ مخ

٢ جغرافياي تاريخي سرزمين هاي خلاقت شرقي، ص۴٣۵

همدا شانې (تخت سفر) همدلته د يوې لوړې پشتې د پاسه ليدل کيږي د هرات د وداني تاريخ (د تير قول په تاييد) سلطان غياث الدين ابو الفتح بن محمد سام ته سام منسوب دي ١

د دې کلا د ورانولو په باب که څه هم د مخه د خراسان د امير اشعب محمد په امر ښودل شوي خو په لاندني روايت کې ترې د يوې پيښې په ترڅ کې داسې يادونه شوې ده:

کله چې د کلي (کلا) اوسيدونکي د محمد بن جراح په خلاف د هغه چا چې د خراسان د امير (البته هماغه اشعب محمد ؤ) له خوا يې ولايت درلود او نيکي يې ور سره کړي وه راپورته شول او د کلا د دروازې په تړلو يې نوموړي د امير توب څخه منع کړ او تر يوه وخته يې خپل مخالفت ته دوام ورکړ تر څو چې اشعب بن محمد په هغوی غلبه وموندله او ښار يې په سوله سره پرانيست او دغه کلا يې په قار سره ونيوله، نو د خراسان امير امر وکړ چې د ښار ديوال ونړي او په دې ډول هغه ديوال وران کړی شو. آثار او نښې نښانې يې له منځه لاړې او داسې معلومه شوه چې ګويا هلته هيڅ حصار او کلا موجوده نه ده. ٢

## د هرات د ارتاکانا کلا (شاهي ښار):

د هرات په باب په تېر بحث کې وويل شو، هغه وداني چې د هرات د عمرانا تو په جمله کې يې تر ټولو د مخه قدامت او لرغونتوب درلود هغه د ارتاکانا کلا ده چې په ارته کوانا ارکوافا، ارتاکان، ارتاکوان ارتاکونه باندې يې شهرت درلود او د هرات د لومړنيو لرغونو استحکامي کلا وو څخه ده چې تاريخي ويا ړلي ريښې لري.

دا کلا په هرات باندې د مقدوني سکندر تر سفر بري د مخه ٣٣٠ ق. ميلادي موجوده وه او يوه تاريخي پخه کلا ګڼل کيدله.

افغانستان در پرتو تاريخ مؤلف وايي چې که څه هم د اورتاکان د کلا مؤثق موقعيت معلوم نه دي خو دا خبره يقيني ده چې هغه د هرې په حوزه کې پرته ده، مګر د ځينو روايتونو په استناد د هغې مؤثق موقعيت تثبيت شوي دي.

د ارتاکا يا ارته کوانا او يا ارکوافا چې د هرات په موجوده ارګ او يا د هرات د اختيار الدين د کلا په سيمه کې پرته ده (٣) او بيا په يوه بل روايت د دې مستحکمې کلا ځای او محل هم ښودل شوي دي لکه چې ليکي:

ارتاکوانا او يا ارتاکانا چې د شاهي ښار معنا ورکوي د (اريه) د خلکو هغه ښار دي چې د هرات د اوسني ښار په خوا کې موقعيت لري. او هغه د وخت چې سکندر دلته راغی نو يې دا ډېر مستحکم ښار

---

١ رهنماي افغانستان، ١٢ ګڼه، ١٣٢٨، ص٢٤٢
٢ جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ٢٥٤
٣ افغانستان در پرتو تاريخ، ١٣٤٦، ص٥٧

وموند چې د هرات ارتاکوانا ورته ويل کېده، دې شاهي ښار د هرات د اوسني ارګ پر ځای موقعيت درلود چې بيا وروسته د اختيارالدين د قلعه په نوم يې شهرت پيدا کړ چې د ملك فخر الدين کرت په عصر کې (۷۰۵ هجري قمري) کې بنا شوي وه، د تيمور په وخت کې دا شاهي کلا د ده په امر ورانه ورانه شوه، ولي وروسته دوباره بيا ودانه شوه.[۱]

(پښتانه د تاريخ په رڼا کې) ۸۰ مخ کې ليکل شوي دي.

ارتاکوانا د هريرود منطقې يو پخواني ښار ؤ چې د سکندر د حملې نه وړاندې د اريا (هرات) د صوبې مرکز ؤ.

ښاغلي احمد علي کهزاد د پورتني مطلب څخه تقريباً په عين مفهوم کې داسې يادونه کړېده:

د اريا ريښه (آر) په شکل کې په دې لفظ کې هم موجوده ده.

ارتاکانا د هرود د سمسوري او آبادي سيمې له پخوانيو زړو ښارونو څخه يو ښار دي چې د سکندر د پيدا کېدو او ظهور نه پخوا د اريا د ولايت مرکز او د دې خاورې د نجباوو او شهزاده ګانو د استوګنې ځای بلل کېده.

د اريا د کلمې ريښه د (آر) په ډول د دې نوم او اسم په اول کې ښکاره ده.

په يوه بل ماخذ کې د ارکوانا په باب داسې راغلي دي.

ارتاکوانا يا ارتاکانا داريه د خلکو شاهي ښار او د اوسني هرات په خوا کې پروت دي.

دا ښار د هرات د واکمنانو مرکز او هستوګنځي ؤ، اسکندر هم کله چې دلته راغی د ارتاکوانا ښار يې ډېر مستحکم ښار وموند. ده هرات ته ارته کوانا وويل.

دا شاهي ښار د هرات د اوسني ارګ په محل کې موقعيت درلود چې بيا وروسته يې د اختيارالدين د قلعه په نامه شهرت پيدا کړ او دا کلا د ملك فخرالدين کرت په زمانه کې بنا شوې ده.

د تيمور په زمانه کې د ده په حکم دا کلا ويجاړه شوه خو وروسته دوباره ودانه کړی شوه.

که څه هم د ارتاکانا د کلا څخه په مختلفو مدارکو او آثارو کې په تکراري ډول تقريباً عين مطلب ذکر شوي دي. نو دا ټول په دې خبره دلالت کوي چې د ارتاکوانا د کلا په باب ټول تقريباً متفقانه نظر او عقيده لري.

## د هرات د ارتاکانا د کلا پر ځای د اختيارالدين کلا او د هغې تاريخي پيښې:

د مخه وويل شو چې د هرات د ارتاکانا د کلا پر ځای باندې د هرات د اختيارالدين کلا جوړه شوې ده د آريانا مجلې شپږمه ګڼه په دې باب په تفصيل سره ليکي:

[۱] آريانا مجله، ۱۷ ګڼه، ۱۳۲۳، مخ ۲۳

د هرات اوسني ارګ چې د هرات شمالي خواته موقعيت لري پخوا د اختيارالدين په قلعه مشهور ؤ دا کلا د ملك فخرالدين کرت (۷۰۵ - ۷۰۶ هجري قمري) د زماني له بناوو څخه ده.

بار تولد وايي: د توشك په عقيده د (ارتاکوان) يعنې ارتاکانا (پخواني بومي پايتخت) د هرات د اوسني ارګ پر ځای موقعت درلود چې وروسته د ملك فخرالدين کرت (۱۳ - ۱۴م) د پاچاهي د سلسلې په وخت کې د اختيارالدين په نوم مشهوره شوه.

د ملك فخرالدين په زمانه کې دوه تنه د اختيارالدين په نومونو ياديدل چې يو يې اختيارالدين بيشه يا پيشه او بل يې اختيارالدين محمد هارون ؤ چې د ده هم عصره مؤرخ سيف هروي ده ته (ليث وغا او غيث سخا) خطاب کاوه. او ملك فخرالدين د خپل مرګ په وخت کې وصيت وکړ او د امان کوه قلعه (چې په تېر بحث کې تري يادونه وشوه) ساتنه يې نوموړي ته وسپارله دا کلا شايد دې دواړو ته منسوبه وي او وروسته د اختيارالدين په کلا مشهوره شوې ده. [1]

په دې يادونه کې د (امان کوه قلعه) څخه ذکر راغی او د امان کوه کلا هماغه د هرات کهندز او يا امکلچه يا اشکلچه وه چې څېړنه پرې وشوه، پوښتنه داسې رامنځ ته کيږي چې د هرات کهندز يعنې دغه د امان کوه قلعه د اختيارالدين تر کلا د مخه موجوده وه او يا دا چې د اختيار الدين کلا ته يې د امان کوه قلعه هم ويله چې دا موضوع هم يو څه تامل غواړي.

د اختيارالدين کلا بالخاصه د ملك فخرالدين په زمانه کې د ډېرو آبادو حصارونو څخه شمېرل کېدله د ډېر متانت او ټينګښت له مخې چې يې درلود، عمومي خزانې، حربي آلات او ادوات او داسې دولتي ذخيرې په دې کلا کې خوندي ساتل کېدلې.[2]

روضات الجنات في اوصاف مدينه هرات د دې کلا په باب توصيفي معلومات لري چې د غلو او اغراق څخه ډك هم دي لکه چې وايي:

قلعه محروسه معموره اختيارالدين که در جانب شمال اين بلده جنت مثال سربه اوج قلال قلاع افلاك کشيده و دنلان هاي شرفات بروجش که با کوتوال قلعه هفتم زبان يکي دارد نور مايده در جنب ديوار استوارش معراج نه پايه. گردون پست آمده و حارسان بروج او را ساکنان قعه قلعه نما زير دست گشته، جاسوس خيال را انديشه راه بردن بوي محال ودهاق دوهم را تو هم رسيدن به کنگره فلك فرسايش عين خيال.

هيچ فکر دقيق غرقاب خندق عميقش را پا ياب نکرده و هيچ پادشاه شديد البطن عظيم القدر بر فتح باب او کامياب نگشته.

[1] آريانا مجله. ۶ گڼه. ۱۳۲۳. ۱۴ مخ

[2] اريانا مجله. گڼه ۱۳۲۳. مخ ۱۴

بلندي با روي او به مرتبه اي كه پاسبانش اگر به كنگره برايد از اسپ شير فلك در خطر بود و ژرفي خندقش به حيثيتي كه اگر در جنبش سبزه دمد از تعرض گاه و زمين امان نيابد از پهناي خندقش عقاب نيك پرواز نتواند گذشت و مرغ بر كنگره اش تواند رسيد از شدت حرارت افتاب نتواند نشست قلعه افلاك را از رشك رفعت خ تريز خاك بر سر و دايره ديوار چون كوه قافش را با منطقه البروج دست تعصب در كمر و غيره ...۱

د پورتنيو ستاينو له مخې جوتيږي چې دې له برمې ډكې كلا، لوړې كنگرې، جگ برجونه پاخه ديوالونه باري سورور او ژور خندقونه درلودل او د استحكامي تاسيساتو له مخې يوه ډېره مهم مستحكم كلا وه

په كال ۷۰۶ هجري د صفري په مياشت كې چې د هرات د فتنې او قساوت كال ؤ د دې كلا ساتنه او سرپرستي جمال الدين محمد سام چې يو رشيد، سربښندونكي او وطنپال افغان سردار ؤ په غاړه وه مغولي دانشمند بهادر د دې كال په صفره كې د محمد سام د اتباعو له خوا په همدې كلا كې ووژل شو دا وه چې دا كلا چا و نه نيولاى شوه خو په يوه تير روايت يې يوازې حصار ورته وران كړ....

خو كله چې په ۹۳۲ هجري كې د مغولو امپراطور بابر هرات ته تللي و، دغه وخت د اختيار الدين كلا په باله قورغان يادېدله (باله قورغان كلمې تركي كلمې دي او د بالاحصار معنا وې لري.

او بابر هم په خپل تذكره كې ليكلي ؤ د اختيار الدين كلا اوس په باله قورغان مشهوره ده.۲

يعنې دې كلا ته د خپل استحكامي خصوصيت په وجه بالاحصار هم ويل شوي دي.

## د هرات اسكندريه:

د اسكندريه چې سكندريه اريه باندې مشهوره ده د هريرود په حوزه كې يعنې په هرات كې جوړه شوې ده او ډېر امكان لري هغه وخت چې د هرات د وگړو مقاومتونه وځپل شول د اسكندريه د اورتاكانا د استحكامي كلا پر ځاى او يا د هغې په نژدې ساحه كې به آباده شوې وي.

د اسكندريه زموږ په خاوره كې لومړنى سكندريه بلل كيږي چې د بنا تاريخ يې ۳۳۰ ق. ميلادي سره سمون خوري.

كله چې مقدوني سكندر د هرات اورتاكانا د خلكو د مقاومت سره مخامخ كيږي او تلفات وركوي او بيا وروسته هغه تسخيروي په همدې شان مغولي لښكرې د اختيار الدين د كلا د اوسيدونكيو د سخت مقاومت سره مخامخ كيږي او تلفات وركوي او بيا وروسته هغه كلا نيسي او د اوسيدونكو سره مغولي وحشتناك ريكارد ټينگوي. يعنې پوره (۱۵۵۱) كاله تر منځه موده كې د ارتاكانا د كلا پيښې او د

---

۱ معين الدين محمد زمچي اسفزاري، روضات الجنات في اوصاف مدينه الهرات. ۱۳۳۸، ص ۳۷

۲ آريانا مجله، ۶ گڼه، ۱۳۲۳، مخ ۱۴

اختيارالدين د کلا پيښې واقع شوي دي چې د تصادف له مخې د دواړه پيښې په متناوب او يو ډول منځ ته راغلي دي چې د دې په باب معلومات ورکول به بې مورده نه وي.

احمد علي کهزاد د ارتاکانا د کلا په باب پيښې چې د سکندر د حملې په وخت کې واقع شوي دي داسې بيانوي:

هغه وخت چې د مقدوني سکندر سپاهيان (۳۳۰ ق. ميلادي) په پسرلي کې له لويديز هريرود د سيند اريوس سمسوري وادۍ ته راپورته شولې هغه ودان ښار چې په دې زمانه کې د هريرود د حوزې مرکز ؤ او په يوناني منابعو کې ورته اورتاکانه ويل کېده يوه کلا وه ډېره زياته پخه او مستحکمه چې هغه اريامترو پوليس ياد آريا د ولايت مرکز په صفت هم ياد شوې ده.

په دې کې هيڅ شك نشته دي چې په دې زمانه کې د افغانستان خاوره د هخامنشي د امپراطورۍ يوه برخه وه څنګه چې "ساتي بزراني" له يوې خوا په هرات کې دا ټينګه کلا درلودله او د بلې خوا نه د هرې (اري) خلك پر ده راټول شوي وو نو د پوځي پلان له مخې په تکتيکي توګه يې وپتيله چې د سکندر سره په لومړي ټکر کې يوناني سپاهيانو ته په تسلمېدو حاضر شي. دا ؤ کله چې د سکندر سپاهيان له هرې خوا نه راورسيدل، د هغه ځاى اوسېدونکو ور سره هيڅ ډول نښته و نه کړه او سکندر په دې فکر چې خلك ورته بې جګړې تسليم شوي دي نو يې خپل پوځي سلاکار (اناکزيپوس) د هرات د کلا د ساتنې د پاره وګماره او پخپله يې له هغه ځايه حرکت وکړ، سکندر لا فراه ته رسيدلى نه ؤ چې برزان د خپلو خلکو سره قيام وکړ او د سکندر نوموړي مشاور يې وواژه سکندر چې له پېښې څخه خبر شو نو بېرته هرات ته راستون شو.

برزان د خپلو خلکو سره که د کلا په د ننه کې وو او که د کلا د باندې وو مدافعې ته ودرېدل. خو څنګه چې د دوئ شمېر کم و نو چې په محاصره کې راغلل، د هرات د دغه مېړنې سردار بل ډول مقاومت طرح کړ هغه دا ؤ چې د خپلو خلکو سره له کلا راووتل او هرات ته نژدې هغه غره ته يې پناه يوړله چې په ګڼو ځنګلونو باندې پټ ؤ. دې پيښې سکندر ډېر ناراحت کړ او له فاره يې ځنګل ته اور واچاوو او په دې توګه د هرات خلك جبري تسليمي ته غاړه کيښوده، دغه کلا يې نه يوازې ورانه نه کړه بلکې د يوناني منابعو په قول چې د هرې حوزې ته د دوئ د رسيدلو په وخت کې يې هلته د يوه ښار حيثيت درلود او د دې ورته (ارته ګوانا) چې همدغه د اورتاکانا کلا وه په افغانستان کې (د لومړني سکندر يې ښار) دغه ښار لا ودان کړ چې د هرې په سکندريه مشهوره ده.

د مقدوني سکندر د دغه غميزې څخه ۱۵۵۱ کلونه وروسته (۶۱۸ هجري ۱۲۲۱ ق. ميلادي کې کله چې مغولي وحشتناك طوفان د هرې حوزې ته راورسيدنو د چنګيز زوى تولى خان د خپل پلار د امر سره سم په دغه کلا بريد وکړ، دا وخت ملك شمس الدين محمد جوزجاني د خوارزم پاچا، سلطان جلال الدين

منکبرنی له خوا يې په هرات باندې حکومت کاوه.

د هرات د تاريخنامې او روضه الصفا د ليکنو په اساس د تولی خان په مقابل کې له (۹۰ – ۱۰۰) زرو جنګي ميړنو د ښار د مدافعې او مقابلې د پاره جګړې ته چمتو شول، څه رنګه چې چنګيز او زامنو يې د افغانستان د کلاګانو په جګړو کې زيات تلفات ليدلي وو نو يې دې ته ترجيح ورکړه چې د جګړې د مخه د سولې د استازو په واسطهٔ په آرامۍ سره د هرات کلاګانې او ښارونه هم ونيسي مګر شمس الدين تسليمي و نه منله او هغه دوه استازي چې ورته راليږلي شوي وو هم ووژل دا وه چې د دواړو خواوو تر منځه د کلا شاوخوا ته سخته جګړه ونښتله. هراتيانو او ملك جوزجاني په پوره شجاعت او قدرت سره، يوره يوه اونۍ وجنګيدل تر څو چې اتمه ورځ په ملك شمس الدين باندې د دښمن غشي ولګيد او په شهادت ورسيد او د ښار مقاومت هم مات شو خو بيا هم کلا مقاومت کاوه. د تاتاري شهزاده د تولی خان د وعد او وعيد په ساس د کلا د دروازه بېرته شوي او تاتاري سپاهيانو د زرو تنو په شاوخوا کې چې زيات شمېر يې د جګړې کار کوونکي وو او د حل و عقد ارباب وو ووژل شول.

په همدې شان د سکندر د هجوم په وخت کې هراتيان په جبري توګه تسليم شول او بيا يې طغيان وکړ او د سکندر مشاور او د هرات حکمران اناکزيپوس يې وواژه.

په ۶۱۸ هجري کې يې هم لکه چې د مخه ترينه يادونه وشوه وروسته تر دې چې له مجبوريته تسليم شول خو ډېر ژر يې د هرات د مقرر شوي حکمران او کوتوال يعنې ملك ابوبکر مکتاي پر ضد راپورته شول. هغه او د هغه ملګري يې ووژل او د هغه پر ځای د فيروز کوه د ملکانو څخه يو تن چې په اصل کې سبزواری ؤ او په هرات کې اوسيد د شهيد ملك جوزجاني پر ځای د خپل ملك په توګه ودراوه او بې له ځنډه يې د ښار د ټينګښت او د چنګيزي سپاهيانو سره د مقابلې تعبيه وکړه. په کوم ډول چې ۱۵۵۱ کاله د مخه سکندر د سبزوار او فراه له سيمو څخه بېرته هرات ته راستون شو او اورتاکانا يې محاصره کړه او وروسته د هراتيانو او يونانيانو تر منځه سخته جګړه ونښتله په همدې ترتيب کله چې چنګيز د هرات د خلکو د طغيان او سرکشي څخه خبر شو نو د سکندر غوندې په پوره قهر او غضب يې يو لوی لښکر چې شمېر يې ۸۰ زرو تنو ته رسيده د (ايلچيګدای نويان) خپل دوهم زوی په سرکردګي هرات ته وګمارل تر څو چې د هغوی مقاومت وځپي.

او لکه څنګه چې د سکندر په مقابل کې د هراتيانو مقاومت ډېر زيات سخت ؤ نو د دوئ دوهمه مقابله هم دا ايلچيګدای نويان په وړاندې څو څو ځله تر هغې سخته وه او ډېره وخت دوام يې وکړ. د اختيارالدين کلا د اوو مياشتو د پاره په محاصره کې پاتې شوه تر څو چې بيا هم په اجباري ډول د ۶۱۹ په جمادي الاول کې د هرات ښار تسليم کړی شو او تاتاري خونخوارو سپاهيانو تر څو چې يې وکولای و يې وژل. ويې سوزول او لوټ يې کړل ډېرې سختې ضربې د پريکونې هلاکت حکم درلود. د يوه روايت له

مخې د هرات په ښار کې له ۴۰ تنو څخه زیات څوك ژوندي پاتې نه شول. پېښې بیا هم تکراري شوي، لکه څنګه چې سکندر هلته (سکندریه اري) ودانه کړه د چنګیز تر مړینې وروسته د ده د دریم زوی (اوګتای قاآن) د سلطنت په وخت کې د هرات ښار تر ۶۴ هجري نه وروسته بیا ودان شو.[1]

څه رنګه چې په یوه بل روایت کې د هرات پر ښار د چنګیزي لښکر په هجوم کې د یاد شوي جریان په مقایسه یو څه تفصیلي معلومات شته دي نو دا دی د حسن تکرار په توګه د دغې واقعې جریان په ځانګړې ډول وړاندې کیږي.

د هرات ښار په ۱۲۲۱ هجري د مغلو تر هجوم لاندې راغی او د ملك شمس الدین جوزجاني په مشرۍ چې د هغه ښار حاکم ؤ په پوره میړانه یې د ښار څخه دفاع کوله. خو د مغولي تولی خان له لاسه په شهادت ورسید او د ښار ۲۲ زره پوځي مدافعین هم شهیدان شول د هرات خلکو بیا خپل مشران وټاکل او سوګند یې وخوړ چې د ښار څخه به مدافعه کوي چنګیز چې د دې فیصلې څخه خبر شو نو د تولی خان پر ځای یې ایلچیګلدای د ۸۰ زرو عسکرو او ۵۰ زرو حشري کسانو (ایلجاریانو) سره په هرات ورمارش کړل د هرات خلکو پوره شپږ میاشتې او ۱۷ ورځې قهرمانانه دفاع وکړه تر څو چې په ۱۱۲۱ کې چنګیزي لښکر د (برج خاکستر) څخه د هرات ښار ته نفوذ وکړ او په یوه ورځ کې یې ټول ښاریان مړه کړل.

قاضي منهاج سراج جوزجاني وایي چې دا وخت دا هرات په ښار کې ۶۰۰ زره اوسیدونکي وو او په اطراف کې یې دوه میلیونه تنه چې ۴۰۰ زره تنه ترې په دې جنګ کې مړه شوي نو موړي ښار ته اور واچول شو.

وروسته معلومه شوه چې د هرات د ټول نفوس څخه یوازې ۱۶ تنه (په تیر روایت کې ۴۰ تنه) چې ځانونه یې د جوماتونو په ګنبدو کې پټ کړي وو ژوندي پاتې شوي وو چې اشرف الدین جفرتان خطیب هم په دې ډله کې شامل ؤ.

تر دې فاجعې وروسته د هرات د ښار مخروبي دومره دوام و نه کړ او ګتای جنګیز زوی هغه سا له سره ودان کړ او د کرت امیرانو هم د هغه ښار په جوړولو لاس پورې کړ چې بدبختانه ګو د تیمور یو ځل بیا په ۱۳۸۱ د اختیارالدین د کلا د ننی او بهرني دیوالونه وران کړل مګر د ده د زوی شاهرخ مرزا په وخت کې ۱۴۱۵ میلادي د هرات ښار بیا له سره جوړ او خپل رونق یې تر لاسه کړ.[2]

بیا وروسته دراني احمد شاه د هرات کلا په ټینګوالي او استحکام کې کوښښ وکړ ځکه چې د هرات کلا د مځکې پر مخ د ډیرو مستحکمو کلاګانو څخه ده چې لوړتیا او متانت یې دومره ؤ چې د یوه

---

۱ افغانستان در پرتو تاریخ، ۶۹ – ۷۱ مخونه

۲ افغانستان در مسیر تاریخ، ص ۲۲۰

مؤرخ په قول د اختيارالدين کلا د شمال خواته د اسمان لورته سر هسک کړی ؤ. ۱

د حسن مقطع په توگه بايد ووېل شي د هرات د ښار بنا د نړۍ له اوو گونو عجايبو څخه ده او د دې روايت په ترڅ کې دا خبره هم تصريح شوې ده چې د هرات د بارو او ديوالونو په جوړولو کې درو تنو برخه اخستلې ده.

۱- د هرات ښار داخلي ديوال د سياوش کيکاوس له خوا.

۲- د هرات د ښار خارجي ديوال د مقدوني سکندر له خوا.

۳- د هرات د ښار مدور برجونه د البيروني او دار ابن دارا په واسطه ۲



۱ آريانا مجله، ۲ گڼه، ۱۳۶۲، مخ ۱۲۰

۲ آريانا مجله، ۹ گڼه، ۱۳۲۸، مخ ۱۲

- محمد اکبر شورماچ، جغرافيايي عمومي افغانستان، ۱۳۵۰، ص۲۸۳



# ۵- غزني

**(عروس البلاد)**

زموږ د هېواد د تاريخي، پرتمينو، مدنيت پالونکو، د علم او فرهنګ او د شاعرانو د ستر کانون څخه يو هم لرغوني غزني دي چې د مؤرخانو او محققانو له خوا ورته د زيات ښکليتوب، ودانيو او د بدبي له کبله عروس البلاد يا د آسيا د ناوې لقب ورکړ شوي دي.

د غزني لرغوني ښار د تاريخ په پړاوونو کې د پاچاهانو او امپراطورانو اداري، سياسي، فرهنګي او پوځي مهم مرکز ګرځيدلي او د ستراتيژيکي او تجارتي زيات اهميت لرونکي پاتې شوي او بالاحصار يې نه ماتيدونکې کلا بلل شوې ده.

## د تاريخي غزني موقعيت:

غزني د افغانستان په ختيځ کې يو ښار دی (اصلاً په جنوب لويديز کې) چې د کابل د جنوب لويديز په ۹۰ ميلي /۱۴۵ کيلومرۍ د شرقي طول البلد په ۳۳ درجو او ۴۴ دقيقو او شمالي عرض البلد په ۶۸ درجو او ۲۸ (۱۸) دقيقو په منځ کې د سمندر له تل څخه ۷۲۸۰ فتو/ ۲۲۲۰ مترو په اندازه لوړوالي لري.

په يوه سند کې د دې ځای موقعيت داسې ښودل شوي دي:

خالص افغانستان دوې برخې لري:

- د نورخاته (مشرق) برخې.
- د نور پریواته (مغرب) برخې.

د نورخاته توته کې د کابل، غزني هغه کندي شاملي دي چې د هغوئ په منځ کې جلال آباد پروت دي.[1]

## په تاریخي آثارو کې غزني او د هغه د تسمیه وجه:

غزني په تاریخي آثارو او مرحلو کې په غزني گزنیك، غزنه (جزنه)، غزنین، غزنو، گازاکه "هو-سي-نا"، کنژك، گنجك او داسې نورو باندې یاد شوي دي.

د غزني ښار چې د افغانستان په زړه کې نن ورځ د کابل -کندهار په منځ کې د یوې کندوالې او کوچني ښار غوندې پروت دي د خپل لرغوني عظمت او برم څخه پرته له یو څو خرابو نورو څه نه لري. مگر د عربو او فارس مؤرخانو پخوا تر دې چې د غوري سلطان علاوالدین جهانسوز په لاس، د دولسمې میلادي پیړۍ په نیمایي کې، لوټ او وسوزول شو، یو ډېر آباد او معمور ښار ؤ.

د دې ښار په باب لیکلي دي:

هېوان تسنگ چیني زایر له غزني څخه یې کتنه کړې او هغه ته یې (هو-سي-نا) ویلي دي نومړې سیاح د ده د مربوطاتو (تسو، کوچا) یا (تساو- کیوتا) یعنې زابلستان څخه بحث کړی دی. د دې مملکت مساحت یې تقریباً ۷ زره لي او د هغه (زابلستان) پایتخت یې هو-سي-نا چې د تخمین له مخې ۳۰ لي پراختیا لري د خپل بحث لاندې نیولي دي.

دی لیکي چې دا ښار د یوې مستحکمې کلا په شکل په یوه سرسبزه او حاصلخیزه سیمه کې پروت دي او لومړني عالم چې د (هو،سي،نا) موقعیت یې په همدې غزني کې تثبیت کړي موسیو (سن مارتن) دي.

اصطخري غزني په لسمه میلادي کې د هغې سیمې د ډېرو شتمنو ښارونو څخه گڼلی او د هند د مال التجارې له مهمو مرکزونو څخه یې شمېرلی دی.

د دې ښار پخواني نوم (گانزاك- Gonzak) ؤ شاید چې دا نوم د لهجې او تلفظ د ډېر لږ اختلاف سره د (گنژك- Gonjac)، (گنجك) د ایران د سرحد په وروستی برخه (اترو پاتین- Atropatene) کې واقع دي د (گنژه - Gonza)، (گنژ-گنج) د کلمې خزانه مشتق کېدای شي او دا فرضیه تر مودو پورې څېړنې لاندې نه ده نیول شوې او د گزن Gaza (Gzn) کلمه هم د خزانې معنا ورکوي، له دې خبرې دا څرگندېږي چې گنز کلمه په پارتي کې په (گزن - Gazn) او په سندي کې په گزن – Gazn اوښتي ده.

[1] میجر بویلي ژباړه، منشي احمد خان، د افغانستان تاریخ، طبع ۱۹۳۰م، ص۷
- مجله آریانا، ۹ گڼه، ۱۳۲۳، ۲۴ – ۲۵ مخونه

او د (ګانزاك-Ganzak) کلمه لکه چې توقع کيدله د حلقي لومړيو تورو په نسبت د سندي د کلمې د شکل سره ښه ورته والي لري او دا شباهت هماغه شي دي چې د (ګاوا - Gava) د سندي په کلمه کې چې د هغې عربي تلفظ او تحريف (کي - Qay) يعني (ګي- Gay) دي ليدل کيږي.

د غزني زيات شهرت د دې سبب شوي چې د غزنه (جزنه) کله چې د عربو مؤرخينو په منځ کې يې عموميت پيدا کړ او هغه يې د ګزکه د ښار په باره کې چې په (اتروپاس) کې پروت دي او هغه هم مرکزيت درلود استعمال کړی دی.

غزنه د مؤرخانو په ليکنو کې د ډېر لږ اختلاف سره لکه مقدسي چې په عربي ژبه کې غزنين د تثنيې د جمع شکل دي –او همدا شان د غزني د کلمې شکل چې بايد د ګزينګ - Gyznik له کلمې څخه منځ ته راغلي دي. استعمال شوي دي

د پورتني ليکنې له مخې د کرزکه د ښار سره د غزنه د نوم بشپړ مشابهت او يووالي چې بطليموس هغه د اتروپاس په سيمه کې واقع بولي، کوم مشکل نه پريږدي او حتی نوم او محل يې هم ور سره پوره مطابقت کوي، نو څکه د غزنه کلمه د لومړي څل د پاره په دوهمه ميلادي پيړۍ کې او د دوهم څل لپاره په پنځمه ميلادي پيړۍ کې ياده شوي او د ۷-۲ پيړيو په منځ کې د (ز) او (د) د تورو ترتيب (nz) ګډ وډ شوي او د (ز)، (ن) –(zn) په شکل اوښتي دي نو د هندي بې اهميته ښار ګزوس کلمه چې (نونوس- Nonnos) او (اتين دو بيزانس) پرته له دې چې د هغې موقعيت تثبيت کړي د غزنه د ښار په مورد کې يې له هغې يادونه کړې د غزنه د نوم سره سمه رابطه او ارزش نه لري ۱

بيا هم د غزني لرغوني تاريخ تاريك دي، څينې ورته ګازاکه لکه چې بطليموس يې يادونه کوي او د يونانيانو د ګازموس سره مطابقت بولي خو په دې باب قطعي دليل نه لري او لکه چې د مخه وويل شو هيوان تسانګ هغه ته (هو،سي،نا) وايي چې غزنه د (تساوکن تو) پايتخت ؤ او ډېره پراختيا يې درلودله، او د بودا آئين هم په اومه ميلادي پيړۍ کې په غزني کې په تمامه معنا رونق او څلا درلودله ۲

په وروستني تحليل کې د غزني د کلمې اصلي شکل بايد د ګنزك او ګنز (ګنج) په معنا وي په (ز) باندې د (ن) اړول د آريايي ژبو له بيلګو څخه دي. او دا اشتقاق چې غزني تر اسلام نه د مخه په تيرو زمانو کې د زابلستان د شاوخوا سيمو مرکز ؤ، د غزني سره د موازي نومونو د (ن) په (زير) چې نن ورځ استعماليږي او غزنيني د (ن) په زير د لرغوني غزنين او غزنيك په شکل سره يو ځای کيږي. مقدسي او د حدود العالم نامعلوم مؤلف ۴ هجري يا ۱۰ ميلادي-قمري په وروستيو کې راوړي او ياقوت حموي هم وايي چې دا شکل سم دي.

۱ آريانا مجله، ۱۲ ګڼه، ۱۳۲۳. مخونه ۱۱ – ۱۳ –د علي احمد نعيمي د (نام غزني) مقالې ژباړه، ليکوال بن و نسيت.
۲ آريانا مجله، ۹ ګڼه، ۱۳۲۳، ۲۴ مخ

د غزني د نوم ډېره پخوانۍ يادونه په دوهمه ميلادي پيړۍ کې هلته ليدل شوې چې بطليموس (گنزکه) د پارو پاميزاد په خاوره کې ... د کابل په شمال کې ښيي.

هيون تسنگ د چين بودايي سياح (په اومه ميلادي پيړۍ کې) هغه په (هوك ليك،نه) کې گزينك يادوي او هغه د زابلستان د (تسو -کيو-تو) د مستقلې واکمنۍ لوی ښار بولي د وروستنيو پلټنو په نتيجه کې هلته د بودايي ديانت او مدنيت د موجوديت پته دلته ولگېدله د بودايي آئين ځو محلونه او د بودا ځو پيکرونه د مځکې له لاندې څخه را ايستل شوي دي.[1]

## غزني په تاريخي آثارو کې

غزني د ونديدا د لومړي باب په ترتيب د اوستايي ۱۶ ټوټو مځکو په فهرست کې او يا په بل عبارت د اوستا ديارلسمه ټوټه مځکه د گخره (ککري) او يا که منطقه ده چې د غزني څخه عبارت ده.

د ارمستر دغه ځای يا په خراسان او يا په غزني کې بولي.[2]

ښاغلي غبار په خپل پورتني اثر کې ليکي:

زموږ د خاورې د لرغوني او پريمانو نعمتونو لرونکو ښارونو څخه يو هم غزني دی. چې په مکرر ډول د خراسان، عربو او د چين په کلاسيکو جغرافيايي او تاريخي کتابونو کې ترې يادونې شوي دي.

-اصطخري ليکي:

د بلخ په ټولو سيمو کې تر غزني بل هيڅ ولايت شتمن او تجارتي ښار نشته دی، د دې په حکم چې گوندي هندوستان دی (پورتني اثر ۲۱۹ مخ).

-ابن حوقل وايي:

غزني د ثروت او تجارت له پلوه ډېر زيات اهميت لري او دا ځکه چې د هند په خوله کې پروت دی، اما دا ښار په ۳۵۵ هجري کې چې سبکتگين حاجب هغه ځای خپل لښکرگاه کړه نو رانسکور شو (هماغه اثر ۲۹۳ مخ).

- محمد ابن احمد طوسي د عجايب المخلوقات په کتاب کې د غزني د عظمت په هکله وايي:

د غزني متاع، جلغوزه، مربي او نور ته (شادو) او لالاس زيات شهرت لري په دې ښار کې ۱۲ زره حمامه شته او ډېر لرغوني ښار دی. چې دوې برخې لري:

د ښار په منځ کې يو لوی غر دی چې دا د سلطان محمود بن سبکتگين پلازمينه ده. او تر ده وروسته غزني ملك خسرو ته ورسيد چې د ده خور يې کېده، له دې ځايه تر لهاور (لاهور) ۱۶۰ فرسنگ او تر دې ځايه پورې هم د اسلام حد دی.

---

۱ بيهقي، ص ۲۶۱

۲ غبار، جغرافياي تاريخي افغانستان. ۱۳۶۸، ص۳۳۵

په غزني کې يو محل دي چې (شوله) ورته وايي او هلته په يوه ميدان کې يوه نيزه ښخه ده (تفصيل يې وروسته راځي.)

- د تقويم البلدان په کتاب کې د غزني حدود او ثغور ښودل شوي دي.

- مهبلي وايي: غزني د بست څخه ۴۰ فرسخه مسافه لري.

- صاحب اللباب وايي:

بلق يوه ناحيه ده د غزني له ناحيې څخه.

- او همو وايي: چې غزني د هند پيل دي.

- ابو المجد موصلي په مزيل الايتاب کې ليکي:

غزني د خراسان په څنډه کې د هند لومړني ښار دي د خراسان او هند تر منځه لکه يو سرحد دی او ساړه يې سخت دي (۵۴۳ مخ.)

پروفيسور بوسورت په اسلامي دايرة المعارف کې د غزني تر نامـــــه لاندې ليکي: چې په حقيقت کې يې په خپله ليکنه کې د تير بحث د هيوان تسنګ او بطليمـــــوس د ځينو برخو په تاييد ليکلي دي:

د غزني د کلمې معنا بايد ګنزك د کنز او ګنج په معنا دي او دا اشتقاق ښيي چې غزني تر اسلام څخه په مخکنيو دورو کې د زابلستان د سيمو د مرکز او شاوخوا څخه ؤ. د دې ښار ډېر پخواني نوم په دوهمه ميلادي پيړۍ کې چېرته ليدل شوي دي. چې بطليموس ګنزګه د پارو پاميزاد ۱۱۰۰ استاد يا، د کابل په شمال کې ښيي....

په نورو زمانو کې چې غزني هر ډول نوم او نښان درلود، خو په خاصه توګه په (۴ هجري/ ۱۰ ميلادي) چې د سامانيانو دوره وه او دلته د غزني تاريخ روښانه کيږي لکه چې په ۳۶۶ هجري/ ۹۷۷ ق. ميلادي کې چې د سامانيانو دوره او دلته د غزني تاريخ روښانه کيږي لکه چې ۳۶۶ هـ/ ۹۷۷ ميلادي يو شمېر پاچاهان د سبکتګين په نوم چې قدرت ته ورسيدل د دې سلسلې د پاچاهي سره د غزني بنسټ هم کيښودل شو.

د يادونې وړ ده چې (بومباجي- A. Bombachi) د شرق او غرب په ايطالوي نشراتو کې (۷ – ۱۹۷۵) رشکي دي چې د غزني ښار د بطليموس او هيوان تسنګ د ښار يو دي جغرافيه ليکونکي (۴ هجري/ ۱۰ ميلادي) تاکيد کوي چې غزني يو ښار دي د هند او غزني د تګ و راتګ د لارو سوداګران هلته اطراق کوي يعنې تم کيږي دا ځکه چې هلته ورته هر ډول اسوده ګي او وسايل او استانتياوې برابري وي (بيقهي ۲۶۱ مخ)

وايي چې په پخوانيو زمانو کې غزنين ډېر لوی ښار او زيات اوږد او سور ور مملکت ؤ لويې

دروازې، پراخې او زیاتې اضافي سیمې یې درلودلې او د سلطان محمود سبکتګین تخت ګاه (پلازمینه) وه.

د غزني بار د پخو خښتو څخه جوړ شوی ؤ.

د غزني د میدان په سر کې (لکه چې د مخه ورته اشاره وشوه) یوه درې ښاخي نیزه پر مځکه باندې نصب شوې وه او داسې ویل کیږي چې دا د سلطان محمود سبکتګین نیزه ده او د سلطان سنجر تر زمانې پورې موجوده وه.

سلطان سنجر وغوښتل چې دا نیزه له غزني څخه له ځانه سره یوسي، خو هیڅ یوه چارپای هغه یونه وړلای شوه.[1]

غزني د غزنوي پاچاهانو تر دورې پورې شهرت او عمومیت نه درلود، الپتګین غزني، (لاویك) نامي ته ورکړ، د ده تر مړینې وروسته (لاویك) خپل زوی اسحق له غزني څخه وویسته او بالاخره سبکتګین په ۲۶۶ هجري د غزني مالك شو غزني د سلطان محمود غزنوی په دوره کې مجلل قصرونه، مدرسې او جوماتونه او یو هسې مدنیت درلود چې هیڅ ځای ور سره سیالي کولای نه شوه.

د غزني منارونه چې وروسته ترې یوازې خرابې پاتې شوې د غزني د عمارت عظمت ښیي. دا ښکلي او قشنګ ښار چې ګویا د آسیا ناوې وه د سلطان علاوالدین جهانسوز له لاسه وسوځول شوه او د خاورو سره خاورې شوه او پوره اوه ورځې او اوه شپې پرې د اور لمبې بلې وې.

همدا شان د ارسلان په وخت کې د یو سخت تندر اور، غزني وسوزاوه، د ګوډ تیمور په وخت کې (۸۰۴ هجري) چې یې دا ښار ونیو، د سلطان محمود او سلطان مسعود د مقبرو او دوو مینارو نور څه وجود نه درلود.

کله چې انګریزانو غزني د خپل لاس لاندې راووست (الن بورد) د سلطان محمود د مقبرې دروازې په دې ګومان چې ګویا د سومنات دروازه ده په ۱۸۴۲ میلادي له خپل ځایه راوایستله او له ځان سره یې هند ته یووړله، اما تر نن ورځې اثبات نه شوه چې دغه د سومنات دروازه وه.

خو په حقیقت کې د محمود غزنوي د مقبرې اصلي دروازه وه. او دا ځکه چې د دغې دروازې د هندي صنعت هیڅ ډول نښه و نه لیدل شوه.

د صندلو د دروازې مشهوره کیسه چې د خلکو په منځ کې زیات شهرت لري همدا موضوع ده.

غزني له ډېره پخوا څخه یو تجارتي ښار دی.

اصطخري د غزني په متعلق وایي چې په دې سیمه کې هیڅ یو ښار د سوداګرو د زیاتوالي او د مال التجارې د ډېروالي له حیثه د غزني ښار ته رسیدلای نه شي.

---

[1] اسفزاري، روضات الجنات في اوصاف المدینه هرات، ۸۹۹، ۳۶۰ - ۳۱۶ مخونه

غزني خپله سابقه له لاسه ورکړي او اوس د افغانستان د دوهمې درجې ښارونو څخه دي.[1] دافغانستان دايرة المعارف د غزني د معرفت په بحث کې ليکلي دي:

د هېواد په اداري جوړښت کې غزني د ولايت په مفهوم يو ولايت دي چې د کابل جنوب غربي خواته د شرقي طول البلد د ۶۷ او ۶۸ درجو، ۳۰. ۴۲ دقيقو او ۲۷. ۳۶ ثانيو او شمالي عرض البلد د ۳۳ درجې، ۱۹ او ۴۴ دقيقې او ۱۴ او ۴۵ ثانيې تر منځ پروت دي.

د غزني مشهور زوړ ښار د کابل په جنوب غربي خوا کې ۱۳۵ کيلو متره لېرې پروت دي غزني د سمندر له مخ نه ۲۲۲۰ متره جګوالي لري. د شرقي طول البلد ۶۸ درجې، ۱۸ دقيقې او د شمالي عرض البلد د ۳۴ درجې، ۴۴ دقيقې موقعيت لري.[2]

## د غزني کلا، ماڼۍ بالاحصارونه او منارونه:

د غزني ښار په کلا سيك سبك جوړ شوي دي چې په يوه اوچته غونډۍ باندې پروت دی او يوه مضبوطه کلا او ديوال ورنه راچاپير شوي دي، چې يوه پخه او مضبوطه جنګي کلا ده. د ښار نه چاپيره د کلا په غاړو کې پاخه او کلك برجونه موجود دي چې د ښار د بچاو په وخت کــــې ورنه کار اخيستل کيږي.

دغه شان د ښار نه چاپير د پخواني لوی خندك نښې نښانې هم شته چې په پخوانيو زمانو کې د ښار د محاصرې په وخت کې له اوبو نه ډکېده او د دښمن د چپاو او يرغل مخه يې بندوله د غزني پخواني ښار درو خواوو ته يعنې په شمالي غربي، او جنوب غربي اړخونو کې درې دروازې درلودلې چې د بهلول بازار او کنك په نومونو يادېږي.[3]

په يوه بل روايت غزني د هېواد د نورو لرغونو ښارونو په شان مستحکمه کلا، بالاحصار او ماڼۍ درلودله د غزني د ښار په منځ کې يوه مستحکمه کلا (نوی بالاحصار) دي د پاچاهانو د ماڼۍ او بارو درلودونکي يو ښار (مدينه) دي. يو شمېر دروازې او بازارونه لري، د هغه په ځينو برخو کې کورونه او نور بازارونه هم شته دي.

کلا او مدينه د يعقوب او عمرو بن ليث صفاري په وخت کې بيا له سره جوړه شوه د ايطالوي لرغون پيژندونکيو ورستنيو پلټنو وښودله چې د رتبګانو (منصبدارانو) دېر لوړ منزلونه د ښار په ختيزو تپو کې چې د سلطان د روضې په لاره کې موقعيت لري. په همدې ځای کې د خښتو دوه منارونه دي چې د دريم مسعود او بهرامشاه د وروکي بنا شوي دي.

---

[1] آريانا مجله، ۹ ګڼه، ۱۳۲۳، ۲۵ مخ

[2] آريانا دايره المعارف، ۷ ټ، ۱۳۵۵، ص ۶۱۸

[3] پورتنی اثر، ۶۱۹

د بيهقي تاريخ وايي:

چې محمود په "افغان شال" کې يوه ماڼۍ درلودله، باغ صد هزاره او د فيروزي ماڼۍ او هغه قصر درلود چې بيا همالته ښخ شو.

د ده زوی مسعود په ۴۲۷ هجري/۱۰۳۵ ميلادي کې وپتيبيله چې يوه نوی او له برمه ډکه ماڼۍ آباده کړي چې د ده د ذوق او سليقې سره برابره طرح شوي وه.

د دې ماڼۍ ساختمان او تزئيناتي مواد له هنده راوړل شوي وو.

د دې ماڼۍ په تزئيناتو کې د هغو هندي ښکلو مجسمو څخه استفاده شوي وه چې د جنګ د يادګارونو څخه شمېرل کيدلي او سلطان محمود د خپلو جنګونو ۴۰۹ هجري/۱۰۱۸ ميلادي کې له قنوج او مترا څخه راوړې وې.

همدا شان مسعود په غزني کې د عروس الفلك په نوم يو جامع جومات جوړ کړ چې د دې جومات سره مدرسه او يوه کتابخانه متصله پرته وه. په دې کتابتون کې هغه کتابونه موجود وو چې د خراسان او غرب څخه يې راوړي وو.

(د تاريخ عيني او تاريخ يميني ۳ – ۲۹، ۳۰ مخونه په حواله)

يو بل تعمير چې د يادونې وړ دي هغه د سلطان محمود فيلخانه ده چې زر سره فيلان پکې ځاييدل او د هغه د ساتونکو د پاره کوټې هم ودانې شوي وي.

د ښار د شمال په څو ميلۍ کې د سلطان د بند د اوبو لګولو تاسيسات تر اوسه پورې موجود دي ۱

د غزني د جنوب لويديز په درې کيلومترۍ کې د روضې د کلي او د سلطان محمود د آرامګاه په باغ کې درست د يوه ارت او پراخ دښت په منځ کې چې هماغه دښت مشهور شاه بهار يعنې لوی معبد دي او د غزنويانو د زمانې پورې اړه لري. ۲

(غزنه در دو اخير) په کتاب کې د غزني ښار او د هغه بالاحصار او د زير زمينو په باب داسې معلومات وړاندې شوي دي.

د غزني ښار د کلا بندۍ په شرايطو کې د ډاډمنې دفاع په خاطر تر مځکې لاندې تاسيسات درلودل چې پرته د ښار له عمالو او اعتمادي کسانو او اعتباري وګړو بـــــل چاته د ورننوتلو اجازه نه وه. د غزني بالاحصار د تنګو او تاريکو بازارونو کوڅو او زير زمينيــــــو درلودلونکی و او د محاصرې په حالاتو کې ترې ښه استفاده کيدله که څه هم څو پلا يې د توپونو ګولۍ خوړلي او د يرغلګرانو د هجومونو له امله يې زيات زيانــــونه ليدلــــــسي وو، خو بيا هم تاريخي نښې نښانې او لوړنې

۱ آريانا مجله، ۲ ګڼه، ۱۳۵۶، ۶۶ – ۷۰ مخونه

۲ افغانستان در پرتو تاريخ، ۱۳۶۴، ص ۱۰۶

ساختمان يې خراب او ويجاړ شوي نه ؤ.[1]

د غزني بالاحصار يو عمومي معبر درلود او په واقعيت کې د کابل -کندهار د شاهراه د څارنې او ترصد په غرض د يوې غونډۍ د پاسه جوړ شوي ؤ او دا ځای د غزنوي پاچاهانو تر عصره د مخه د معبر د ساتونکو د قرارګاه په توګه موجود و. چې د سلطنتي مقر د پاره دومره مناسب نه ؤ او د وروستنيو پېړيو څخه څرګنديږي چې يو وخت د افغاني پاچاهانو او آمرانو څخه کوم يو د غزني په بالاحصار کې هستوګنه غوره کړې ده.

(پورتنی اثر ۵۴ مخ).

نو دا ده چې د غزني بالاحصار د شاهي ارګ حيثيت درلود.

مقدسي د غزني د ښار نقشه لکه څنګه چې د سبکتګين په زمانه کې وه په لاس راکوي او ليکي:

يوه کلا د ښار په منځ کې (نوی بالاحصار) د پاچاهانو د ماڼيو سره، د بارو او څلورو دروازو سره او څو بازارونه پکې موجود وو (۲) مګر په يو تير روايت کې دا دروازې درې ښودل شوي چې د شمالي، غربي، او جنوب غربي دروازو څخه عبارت وي خو د شرق خواته کومه دروازه پکې نه ده ښودلې، او ممکن دا شرقي دروازه څلورمه دروازه وي چې مقدسي ورته اشاره کړې ده.

د پورتنيو څرګندونو څخه جوته ده چې د غزني ښار لکه کابل دوه بالاحصارونه درلودل چې يو يې لکه د مخه ورته اشاره وشوه نوي بالاحصار ؤ چې د ښار په منځ کې يې موقعيت درلود او د ۵۱۰ هجري /۱۱۱۷ ميلادي او ۵۲۹ هجري / ۱۱۳۵ ميلادي کلونو د هغو مصيبتونو له امله چې په هېواد کې او بيا په غزني کې پېښ شول د غزني دغه ښکلي او تاريخي ښار د علاوالدين حسين غوري د دوو ورونو د کسات اخستلو په نامه وسوزول شو او وران شو. او دی هم د جهانسوز نوم ته پرې منسوب شو. خو بيا هم پوهيدای شو چې دغه ښار دوباره بهبود پيدا کړ نن ورځ د غزني ښار هغه ښار دي چې د کابل- کندهار د لوی واټ پر سر موقعيت لري. د ګرديز -ميدان، ارګون او نو چې لاري دلته سره يو ځای او چارراهي کې يې موقعيت پيدا کړي دي.[3]

که د تير بحث تاريخي پېښو او واقعيتونو ته ور وګرزو د غزني ښار که څه هم زيات تاريخي قدامت لري څه د سوداګرانو د سوداګرۍ د مرکز په حيث او څه د بودايي آئين د مرکزيت په حيث، خو بيا هم د غزني د ښار د عظمت او ترقي عروج ډېره کمه موده رانيوله او هغه يوازې د غزنوي پاچاهانو او په تېره بيا د سلطان محمود او سلطان مسعود په زمانه کې وه.

---

۱ غزنه، در دو قرن اخير، ۱۳۵۶، ۱۵۳ مخ

۲ جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ۲۹۶

۳ آريانا مجله، ۲ ګڼه، ۱۳۵۶، ۶۶ – ۷۰ مخونه. اسلامي دايرة المعارف، ۱۰۴۹م، ۱۰۵ مخ په حواله

په دا وروستيو وختونو يعنې په ۱۳۲۴ هجري قمري - ۱۳۲۵ هجري قمري کې کله چې امير حبيب الله خان او ور سره ملګرو عکاسانو د هيات سره لکه رحمت الله خان، عبدالصمد خان، محمد صادق خان، او محمد رحيم خان په واسطه د غزني ښار ته لاړ او د هغه عکاسي وشوه او ځينې عکسونه يې په سراج الاخبار کې کليشه شوي وو. د هغه د لومړني وضعيت او څرنګوالي ښه ښکارندوی دي.

په ۱۳۱۰ - ۱۳۱۱ هجري شمسي هلته يوه عسکري قشله هم په نووو نظامي اصولو او تعميراتي سبک سره ودانه شوه او پخوا د سياحانو او سيلانيانو د ډېرې پاملرنې وړ وه.[1]



۱ غلام جيلاني، غزني در دو قرن اخير، ص ۱۵۳



# ٦- ننګرهار

## (د باغونو او ګلونو ښار)

ننګرهار يا ننګنهار د ګلوهار، د ميوو او ګلونو ښار ، د سمسورتيا او باغونو ښار د وړانګو او د تقدس د صفتونو ښار، د رودونو او غرونو ښار، زموږ د هېواد په لرغوني تاريخ کې له خاص تاريخي، فرهنګي، سياسي، پوځي او ستراتيژيکي اهميت څخه برخورداره ښار، چې د تاريخ په بېلابېلو مرحلو کې د هميشه د پاره له بلخه تر هنده د تجارتي کاروانونو لار، د بهرنيو سياحانو د زيارتونو محل، د پاچاهانو او امپراطورانو د پوره پاملرنې وړ سيمه پاتې شوې ده.

که د بودايي مدنيت د ستر مرکزيت له مخې (او که د کو شانشاهانو د ژمنې لاژمينې د مقام له پلوه پوره مهمه تاريخي سيمه ده د دې تر څنګه د مغولي پاچاهانو او نورو راوروسته پاچاهانو په نزد هم د پوره اهميت وړ ګرزيدلې ده چې نه يوازې د دوئ اداري مرکز بلکې په زړه پورې تفريح ځايونه او هستوګنځي هم ګرزيدلې ده.

تاريخي مدارك په محقق ډول ښيي چې د افغانستان خاوره د جغرافيايي موقعيت له مخې د نړۍ د لويې وچې (آسيا) او نورو وچو په يوه څلور لارې کې پرته ده چې د ډېرو پخوانيو زمانو راهيسې يې همدا حساس خصوصيت ساتلي دي.

تاريخي جغرافيايي نومونه او اعلامونو چې د غرونو، رودونو، ښارونو او علاقو پورې ارتباط لري

وخت په وخت د يوه هېواد جغرافيايي څرنګوالي معرفي کوي.

د «ويد» او «اوستا» له دورو څخه نيولي بيا تر يوناني، بودايي، کوشاني او اسلامي بيلابيلو دورو پورې په دغو اعلامو او نومونو کې د دې دورو خاطرې او يادګارونه باقي پاتې دي.

د افغانستان په شرقي سمت کې د کابل د سيند له چينو څخه نيولي د هغه مصب «د رودونو د تويېدنې محل» يعنې اباسين پورې يوه پراخه سيمه پرته ده چې د ويدې دورو څخه راوروسته د تاريخ په مختلفو دورو کې د ګنداهار په نوم يادېدله (۱) چې دلته په ګندهارا بحث کول او رډه څېړنه غواړي او مورږ د اصلي موضوع له ساحې څخه لېرې باسي، د دغه ګندهارا په زړه کې يوه سيمه ده چې هغه ته ننګهار ويل کېده او اوسني ننګرهار تقريباً د جغرافيايي کم و کيف سره د افغانستان د شرقي سمت سيمې احتوا کوي.

يا په بل قول د ننګرهار حوزه چې تر اسلام نه د مخه «د نګاراهارا» يا «ناګاراهارا» په نامه ياده شوي او نن د ننګرهار په نوم يادېږي د هډې «هيليو» په شمول د لرغوني ګنداهارا زړه تشکيلوي د تاريخي اسنادو له مخې نګاراهارا د «راجه اشوك» له وخته د دوهمې قمري ميلادي نه راوروسته شهرت پيدا کړي دي. ۲

بايد په صراحت سره وويل شي کومې موضوع چې په مکرره او مکرره توګه يې «نګاراهارا» د مؤرخانو د پاملرنې وړ وګرزوله او په زياته اندازه ترې په تاريخي واقعاتو او آثارو کې يادونې وشوې هغه په «نګاراهارا» کې د بودا د آئين او ګريکوبودا د صنعت ستر مرکزيت ؤ.

## د نګاراهارا موقعيت:

د پورتنيو څرګندونو په تاييد او استناد د نګاراهارا يو څه مشخص موقعيت د افغانستان ختيزه سيمه د کابل د سيند له منابعو څخه بيا تر هغه ځايه چې اباسين ته په اټك کې ور تويېږي، له ويدې زمانې څخه تر ډېرو پېړيو پورې په ګندهارا يادېدله او د ګندهارا په منځ کې يوه علاقه ده چې ننګرهار يې باله. دغه علاقه اوس هم په هماغه نامه مسمی ده، په يوه بل روايت د ګندهارا په مشهوره دره کې چې د کابل د ناوې د مسير سراسري برخه يې رانيولې ده نګاراهارا چې نن يې ننګرهار تلفظ کوي د هغې منځنۍ برخه يا په بل عبارت د هغه زړه تشکيلوي لکه چې د ګريکو بوديك ارت او صنعت د مدرسې پورې په ارتباط کې د ګنداهارا پيژندنه ضروري ده، همدغه شان د نګاراهارا هم يوه مهمه خبره ده. ۳

هيرودت يوناني معروف ګرځندوی په خپلو ياداشتونو کې د يوه مملکت څخه د پکتيا په نامه خبرې کوي او وايي چې د دې مملکت او سيدونکي په څلورو کورنيو ويشل شوي چې يوه کورنۍ يې د

---

۱ افغانستان در پرتو تاريخ، کهزاد، ۱۳۴۶

۲ کابل مجله، ګڼه ۲، ۱۳۵۲ کال مخ ۴۳

۳ تاريخ افغانستان ج۲، ميجر بريلي، منشي احمدجان ژباړه، ۳۶۷ مخ

ګندهاري په نامه مشهوره ده (چې هستوګنځي يې ګندهارا دي) دغه کورنۍ تر میلاد ده ځلور پیړۍ د مخه په کوم محل کې چې د کونړ او کابل سیندونه سره یو ځای شوي، میشته شولو (د جلال آباد په اوسني خوش ګنبد کې)، او له جنوب څخه يې شمال خواته اقتدار او نفوذ وموند.

ښاغلي غبار د مرحوم کهزاد له قوله لیکي: چې د دوئ لومړنی هستوګنځي کونړ او اوسنی يې کامه، ګوشته، باجوړ، بونیر، مهابن او نورې سیمې دي چې له جنوب څخه د شمال پورې د (دوما) غرونو تر لمنو پورې رسېده.

د دوماه غر ختیز او لویدیز پلو د سوات د سیندونو د سرچینو او پنجکوړې سره پروت دي دادیکان (د کونړ په تاجیکو باندې چې بې استناده معرفي شوي دي) د دغه پکتیا، د پکتیانو یوه څانګه ده (۱) بابر په خپل تزک کې د لینکاو (ننګرهار) یا (نیکار) تومان ته په اشارې سره وایي چې د لغمانونو حدود پنځه تومان دي او له دې جملې څخه یې دوه بلوکه دي. چې یو يې د دره نور بلوك او بل يې د کونړ بلوك دي.

او طبیعي ده چې دا نور پنځه تومانونه يې د ننګرهار نورې سیمې رانیسي عین مطلب په یو څه صراحت سره په همدې اثر کې داسې راغلي دي:

بابر په خپل تزك کې وايي: چې د لمکاناتو د قلمرو په حدودو کې پنځه تومانونه او دوه بلوکونه شامل دي چې له دې پنځه تومانونو څخه يې یو تومان د (نیکاو) یا (نیکار) یعنې د ننګرهار تومان دي. او د دوه بلاکونه يې یو د نور درې بلوك او دوهم د کونړ د درې بلوك. ۲

بلوك د یوې سیمې چې څو کلي لري او تومان بیا تر دې لویو هستوګنځیو او کلیو ته ویل کېږي

## د نګاراهارا سیمه، وسعت او څلور خواوې:

په یو شمېر تاریخي مدارکو او ماخذو کې په تکرار سره د نګاراهارا موقعیت. د سیمې پراختیا او څلور خواوې ښودل شوي دي (تاریخ افغانستان ۲ ج) او (افغانستان در پرتو تاریخ) دواړه په دې باب متفقاً داسې څرګندونې لري لکه چې چیني زایر هیوان تسنګ نګاراهارا څخه لیدنه وکړه نو د دې سیمې په باره کې لیکي:

د دې اوږدوالي ۲۵۰ – ۲۶۰ لي چې تقریباً پنځوس میله قید شوي دي، نوموړي زیاتوي چې د دې علاقې څلور خواوې د لوړو او صعب العبور غرونو سلسلو احاطه کړي او پایتخت يې ۲۰ لي یعنې ۵ – ۶ میلو په اندازه پراختیا لري، دلته پاچا موجود نه ؤ، ځکه چې دا د کاپیسا مربوط یو ولایت ؤ (۳) په یوه

---

۱ کابل مجله، ۵ ګنه، ۱۳۳۹، ۱۸ مخ د محمد ګلاب ننګرهاري مقاله

۲ آریانا مجله، ۲ ګنه، ۱۳۶۲، ۲۵ مخ

۳ افغانستان در پرتو تاریخ، ج۲، ۳۶۱

بل سند کې د نګاراهارا دغه پراختیا او حدود تایید او لیکل شوي دي:

چیني زایر هیوان تسنګ نګاراهارا (نه، ګه، لو،هو) لیکي: چې یوه سیمه ده، د لغمان جنوب ختیز کې او د ننني جلال آباد له ناحیې څخه عبارت ده، د نګاراهارا پراختیا له لویدیزه تر ختیزه ۱۰۰ میله (۶۰۰ لي) او د شمال نه جنوب ته ۲۴ میله (۲۵۰ لي) چې (تفاوت یې یوازې په پیل کې موجود دي.)

په لویدیز کې یې جګدلك، په ختیز کې یې د خیبر دره، په شمال کې یې د کابل سیند او په جنوب کې یې سپین غر پروت دي.۱

د کابل مجلې د محمد ګلاب ننګرهاري د (ننګرهار) تر سرلیك لاندې په لیکنه کې داسې راغلي دي:

هیوان تسنګ له ختیز نه لویدیز ته د ننګرهار د سمې اوږدوالي ۱۲۰ میله (۶۰۰ لي) پسور یې له شمال نه د سهیل په لور ۵۰ (۲۶۰ لي) ښودلي دي.

کونړ، لغمان په ننګرهار کې نه شمېرې او په کامه کې یې هم شك ګني. ۲

دا قول بیا هم د تیرو ارقامو سره تفاوت لري، چې دا تفاوت یې بیا هم په میل کې څرګند دي چیني زایرین فاهیین او هیوان تسنګ د خپل مسافرت په ترڅ کې د (ناکي-لو،هو) له سیمې څخه تیر شوي دي. چې د دې قلمرو له ډېرو مهمو ښارونو څخه یو هم (ناګاراهارا) دي چې د اوسني ننګرهار په شکل د هډې او جلال آباد سیمې رانیسي.۳

سمیع الله تازه به خپل اثر (ریشه هاي تاریخي و فرهنګي نورستان) کې د ننګرهار په اړوند لیکي د ننګرهار حوزه چې د اسلام نه د مخه د نګاراهارا په نوم یاده شوي او نن د ننګرهار په نوم یادیږي، د هډې (هیلو) په شمول د لرغونې ګندهارا زړه تشکیلوي، ننګرهار او هډه چې د ډیرې نژدې لارې څخه د لغمان یا لرغوني لمپاکا څخه پنځلس کیلو متره فاصله لري.

د کوشانیانو د امپراطورې په تاریخ کې د ده څلور خواوې داسې ښودل شوي دي:

- دا ښار د جنوب له خوا د سپین غره، د غرونو په سلسله د شمال له خوا د کاشموند د غرونو (د دره نور شمال ختیز ته) په سلسله چې د ننګرهار د رود (کابل سیند) هغې خوا ته لیرې سلسلې وجود لري چې نورستان د ننګرهار شمالي ګوښو څخه بیلوي.

- شرقاً سپین غر، د غرونو (کامدیش- **Kamdesh**) د غرونو په لړۍ او آزاد سرحد.

- د لویدیز له خوا د سروبي له ناوې سره متصل دي.

او د اتنو ګرافي له مخې ویلای شو چې هډه د ننګرهار سره د ګندهارا د ډېرو لویو مرکزونو

۱ محمد عثمان صدقي، نګاهي بر کابلشاهان، ۱۳۵۷، ص ۲۳

۲ کابل مجله، ۴۸۹ ګڼه، ۱۳۳۹، ۶ مخ

۳ تاریخ افغانستان، ج۲، ص ۳۶۱

څخه شمېرل کیږي ۱

د پورتینو څرګندونو له مخې دا موضوع پوره صراحت لري، چې د کوشانیانو په وخت کې چې کوم پورتني حدود نګاراهارا درلودل او بیا په را وروستو وختونو کې هم کونړ لغمان او شینواري د ننګرهار په تشکیل کې د لوی ننګرهار په نامه یو ولایت شو . پورتنی تاریخي سوابق لري

## د ننګرهار د تسمیې وجه او نګاراهارا په تاریخي اسنادو کې:

د ننګرهار کلمه تر اسلام نه د مخه ماخذ کې د لومړي ځل د پاره (ناکاراهارا - **Nakarahara**) یا (ناګاراهارا - **Nagarahara**) لیدل شوي ده.

دوه تنه چینایي سیاحان (شي فاهبین) او (هیوان څانګ - هیوان تسانګ) هډې او اوسني جلال آباد ته راورسیدل نو له دې سیمې څخه بحث کوي او د (ناګار) یا (نګر) په نوم یې یادوي. د ده له خبرو دا جوتیږي چې ناګار یا نګرد (نګاراهارا) یا (نګره هاره) مرکز او له مهمو ښارونو او مرکزونو څخه ؤ.

نومړي د نګر د پراختیا له یادونې وروسته زیاتوي:

دا سیمه پاچا نه لري، د کاپیسا مربوط یو ولایت ؤ، د دې سیمې دانې، حبوبات ډېر زیات حاصل ورکوي هوا یې توده، خلك یې زړه ور، خوش خویه، خوش مشربه نسبتاً بډای او په بودایي مذهب دي. د نورو ادیانو منونکي پکې کم دي، بودایي معبدونه او آبدات پکې ډېر او لمانځونکي یې ګڼ دي. خو سره د دې هم له بودایي معبدونه پرته، نور لمانځونکي پکې هم تر سلو رسیږي. ۲

په دې کې شك نشته چې د (ناګار) یا (نګر) سیمه د هیوان تسنګ د یادونې له مخې هماغه د (ننګر) سیمه ده چې د (هار) د کلمې په زیادښت (لاحقي) چې د ښار معنا ورکوي. او مرکز ته یې نګاراهارا او ننګرهار وایه چې وروسته د خلکو په ذهنونو کې د ننګرهار په شکل ثبت شو ۳

د نګراهارا نوم د لومړي ځل د پاره د (راجه اوك) له وخته یعنې د دوهمې میلادي پیړۍ ـ سحه، رمـاـې راهیسې مشهور شوي دي (د رشتین صاحب له قوله - کابل مجله، ۲ګڼه. ۱۳۵ - ۴۳ سح)

باید وویل شي چې دا نقل قول په تکراري ډول بیا هم راوړل شوي دي

د نګارا را نوم په (پورساها) کې په تکرار سره یاد شوي دي او په هغه کتیبه کې چې د بهار څخه تر لاسه شوي یوه سیمه یې د نګاراهارا په نوم یاده کړي چې نن ورته ننګهار یا ننګرهار وایي او په سراج الاخبار کې هم په دې نوم ترې یادونه شوې ده. ۴

---

۱ سمیع الله. تازه. ریشه هاي تاریخي و فرهنګي نورستان. ۱۳۴۷، ص۴۳

۲ پښتو آریانا دایره المعارف، ټ۷، ۱۳۵۵، ۱۰۹ مخ

۳ افغانستان در پرتو تاریخ، ۲۸۲ مخ

۴ نګاهي بر کابلشاهان. ص ۲۳

ننگهار (د جلال آباد وادي پخواني نوم) د بيليو په قول د سانسکريت له ژبې يوه سوچه کلمه او د (نوبهار) يعنې نه معبده) له لفظ څخه اخيستل شوې ده. او خلاصه دا ده چې (بروتوا) او د ده نه مخکې همقطار (مسيو گودار) په ۱۹۲۳ ميلادي له دې وادي څخه په زرگونو مجسمې کشفي کړي چې د گريکو بودا د صنعت د عروج بيلگې ښيي او بيا هغه کيندنې چې د کوهدامن او بگرام په ناوو کې تر سره شوي دا مطلب په اثبات رسوي چې دغه آثار په ټوله معنا د گندارا د گريکو بودا د صنعت نماينده گي کوي لکه چې د مخه وويل شو په گندارا کې د مجسمې د جوړولو مکتب د دې بې شمېرو آثارو مخزن شمېرل کيږي. ۱

د حيات افغاني په قول د ننگهار يا ننگرهار د تسميې وجه د (نوبهار) يعنې (نهو نهرونو) يا (نهه درو) څخه اخيستل شوي دي او د(نونهار) کلمه د زيات استعمال په وجه او د پښتو ژبې د غلط استعمال په سبب په ننگهار مشهور شو. ۲ په لسمه پيړۍ کې دې ښار ته (ننگهار) ويل کېده چې پخواني نوم ې نگارارا يا نگاراهارا دي (واترز) گومان کوي چې (نگارا) يا (نگرکوټ) چې البيروني ترې يادونه کړې ده او د کابلشاهانو شجره پکې ده. خو البيروني و نه شو کولای چې هغه وگوري نو دا ده چې د (نگارا) د نگرکوټ سره يو و نه گڼل شي. حال دا چې (ننگرکوټ يا لنگر کنډ) په نگاراهارا کې نه، بلکې په چغسراي کې د ننگر ښار په نوم موجود ؤ او پورتنۍ ادعا سمه ده.

که محلي افسانو ته وکتل شي نو خلك وايي چې (ننگر) په کونړ کې د يو باچا نوم و، په پخوا زمانو کې دوه ورونه وو، يو پکل (پگهل) نوميده او بل (ننگر) نوميده، اغلباً دا دواړه شهزاده گان (شادري) چې د معلوماتو له قراره په چغسراي کې يې د چغان غونډۍ په لمنه کې چې اوس يې د پيچ د دري په خوله کې آثار ليدل کيږي. د پلار، واکوالی (حکومت) مرکز ؤ او د (ننگر کنډ) په نوم ياديده کوم وخت چې د واکوالی وار دوئ ته راورسيد، ننگر له پگهل څخه خپه شو او (ناکي) ته راغی او هلته يې د ځان پاره د حکومت مرکز جوړ کړ، وروسته بيا دغه مرکز چې ښار به ؤ او د ننگرهار په نامه (د ده پخواني ښار ننگرښار) ننگرهار وباله شو.

د هار کلمه د ودانۍ او ښار په معنا د نورو پخوانيو کلمو سره يو ځای شوی ليدل کيږي لکه کندهار، چپلهار او نور. ننگرهار چې اغلباً په لومړي سر کې د ښار نوم به ؤ وروسته د علاقې او ورپسې د يوې سيمې نوم وگرزيد. د سلطان پگهل او ننگر (په نامه په خلکو کې) تر اوسه حکايات او روايات شته دي، چې زموږ ليکوالو په دې باب په کالنيو او مجلو کې ليکنې کړې دي.

په يوه بل تاريخي سند کې پورتنۍ افسانه په تاييدي شکل داسې راغلې ده:

---

۱ غبار، جغرافياي تاريخي افغانستان، ۱۳۶۸، ص۵۲

۲ محمد حيات خان، حيات افغاني، ۳۸ مخ

که څېړنه هغه فولکلوري کیسې ته چې د کونړ په دره کې او د چغسرای په سیمه کې د خلکو له خاطراتو څخه هیره شوې نه ده غوږ ونیسو داسې وايي:

یو پاچا د ننګرشاه په نوم یعنې د ننګر د سیمې شاه اوس هم د عامو خلکو د ژبو پر سر دی نو له همدې کبله د ننګرهار د تسمیې د تاریخي مؤخذ څخه عامه فرهنګ ته ور دخیل شوي او عامه فرهنګ ته د یوې کلمې ور داخلیدل د هغې کلمې د معنا د پوخوالي او ژورتیا منتهي ښیي.

د ننګر مرکزیو ښار ؤ چې هغه ته یې (ننګرښار) یا (ننګرشار) وایه چې ننګرهار بیا د ننګرشار معادل دی او د دغه ننګرهار مرکزیو لوی ښار ؤ چې پراخه ساحه یې درلودله.[1]

ښاغلي سمیع الله تازه هم پورتنۍ محلي کیسه په یوه بل شکل داسې وړاندې کوي:

که څېړنه پورتنیو قولونو ته مراجعه وشي نو دا نتیجه ترې اخیستل کیږي چې د ننګرهار تسمیه د هډې یا نګاراهارا، د نېور او یا د نورو ښارونو په نسبت دومره تاریخي قدامت نه لري او د دې سیمې تاریخي سابقه هغه وخت را شروع کیږي چې د کونړ د چغسرای څخه ننګرشاه لکه چې د مخه په محلي کیسو کې یې نقل وشو د دې سیمې د (ناکي) ښار ته راغی او د خپل حکومت مرکز په توګه یې وټاکه او کله چې یې ورور پګهل په کونړ کې مړ شو نو ده لغمان او پیښور ونیو، خپل حکومت ته یې پراختیا ورکړه. دلته کوم اداري مرکز نه ؤ او نه کوم پاچا ځکه چې دا سیمه د بګرام، کاپیسا پورې تړلې وه، مګر په همدې وخت کې ننګرشار (چغسرای) مستقله واکمنی درلوده او پاچا موجود و، او د ننګرهار په نسبت یې شهرت او مرکزیت زیات اهمیت درلود.[2]

زه دلته د پورتنۍ نقل د څو شکلونو د سم او واقعي شکل وړاندې کول نه غواړم ځکه چې د چغسرای د معرفي په لړ کې به په دې باب زما نظریه وړاندې شي، خو دلته دا تصحیح ضروري بریښي چې وویل شي او هغه د سلطان پګهل او ننګرشاه تر منځه اړیکي دي او محترم عبدالخالق اخلاص په دې هکله لیکي:

اصلاً د ننګر د سیمې پاچا ننګرشاه ؤ چې بودایي مذهبي ؤ. وروسته مغولي دوو شهزاده ګانو سلطان پګهل او بهرامشاه د ده په ښار حمله وکړه او د ده د لور چې (بې نظیر) نومیده، د نوموړو شهزاده ګانو سره د مراودې له لارې او تعهد له مخې د پلار سره خیانت وکړ او د ښار د نیولو حکمت یعنې د زیر زمیني د (غار) هغه خوله یې ورته وښودله چې د اسمار سیند ته ور وتلې او ټول اکمالات یې ترې کیدل. تر څو چې پر ننګرشاه غالب شول او ښار یې ورځنی ونیو، ډېر قتل و قتال یې وکړ حتی نوموړي شهزاده

---

۱ افغانستان در پرتو تاریخ، ص ۲۸۲

۲ ریشه هاي تاریخي و فرهنګي نورستان، ص ۶۳

ګي یې په پوره رسوایي او قبیحانه ډول ووژله.[1]

خو په دې روایت کې دا موضوع نه ده تصریح شوې چې د مغولي فاتحو شهزاده ګانو له خوا په دغه عام قتل کې د ننګرشاه سرنوشت څنګه شو؟ په دې باب د پورتینو نقلونو د متونو څخه په حدس وهلو ممکن ننګرشاه له هغې پیښې نجات موندلی او ناکې ته یې پناه راوړي وي او بیا کله چې چغتایي شهزاده ګانو په کونړ کې د وچکالي په وجه ننګرشار چې دوئ په چغان سرای مسمی کړ چترال ته لاړل او هلته د چترال د مهترانو د سلسلې سره شول، نو دا وخت ننګرشاه د دې فرصت تر لاسه کړ چې په ناکې کې خپله واکمني ټینګه او پراختیا ورته ورکړي.

د دې اوږده بحث چې په محلي کیسو ولاړ ؤ مطلب دا دی چې د ننګرهار د نوم د تسمیې وجه د نورو ژبپوهنې او تاریخي ریښو تر څنګه د دغسې روایاتو څخه هم راپیدا شوي او منطقي مدلل توب هم لري.

ښاغلي صدیق الله رښتین د ننګرهار د تسمیې د وجه په باب د ژبپوهنې له مخې لیکي:

«هار» په پښتو کې چې یوه اریایي ژبه ده او د سانسکریت سره ډېر نژدیوالی لري دا «هار» د ډیروالي او زیاتوالي په معنا زیات رواج لري لکه چغهار، غرهار، شرهار او داسې نورو کلمو کې له دې امله ننګرهار ته د لفظ د ترجمې په اساس د ښارونو مجتمع ویلای شو. برسېره پر دې د هار کلمه له «زار او سار» سره د ترادف په لحاظ هم د زیاتوالي معنا ورکوي، په هند او سند کې د «هـ» بدلون په «س» او همدارنګه «سار» په زار د «س» په بدلون په «ز» سره واضح او د تردد نه لیرې دي نو موړي په بله برخه کې داسې توجیه وړاندې کوي.

د «هارا» کلمه د «وارا» سره مترادفه ده، په پښتو کې د «هـ» بدلون په «واو» سره معمول دي لکه «لاهو» «لاوو» او «وارا» چې د ټینګ او محکم ځای نوم دي چې «یاما» پاچا په بلخ کې ودان کړي ؤ.

له دې څېړنې څخه «واړا» هم په وزیرستان کې د دقت وړ خبره ده.

په نګاراهارا کې د «نګار» سابقه د فارسي د «نګار» سره ارتباط لري، له دې کبله د دې کلمې ریښې په پښتو او فارسي کې شته ځکه چې دواړه اریایي ژبې دي او په ډېرو ځایونو کې سره ګډون لري. د نګار چې معنا یې سینګار، نقش، تصویر، بت او معشوقه ده هم د «نږور» انځور کلمې چې لومړي یې د بت په څېر ښکل کیږي او وروستي د نقش په معنا دي د نګار کلمې ته نژدې او ورته دي.

څه رنګه چې ننګرهار د بودیزم له خپریدونه راوروسته د ارت او ښکلو هنرونو مرکز شو او پردې بر علاوه د هډې ښار د هغه مدنیت د ښکلو هنرونو په موزیم بدل شو، لیرې نه ده چې د نګاراهارا نوم په دې دلالت کوي چې د ښکلو صنعتونو او مجسمو د ساتونکي په حیث اینبودل شوي دي چې په دې ډول یې معنا داسې نګارستان سره مترادفه ده.

---

[1] کابل مجله، ۱۳۱۸، ۹۱ - ۹۴ مخونه

د «نګین» کلمه هم د ښکلیتوب افاده کوي او اصلي ماده یې په سانسکریت کې «نګ» په خاص ډول تر نظر ونیول شي.

ځینې مؤرخین او لرغون پیژندونکي ننګرهار «انه معبدونه» ښیي.

او که دا کلمه له «نوګار» څخه راوتلې دي هغه هم د «نهو غرونو» معنا ورکوي ځکه چې نهه رودونه د ځان سره نهه غرونه هم لري.[1]

ښاغلي پوهاند رښتین په دې ځیړنه کې د کونړ د ننګر پاچا کیسه هم په تاییدي او عین محتوا را نقل کړې ده.

باید وویل شي چې د بودایي مدنیت او فرهنګ نه د مخه د ننګرهار د ښار نوم معلوم نه دي او یوازې په حدود العالم کې د ګنداهارا په نوم د افغانستان په یو لوی ولایت کې ننګرهار شامل کیږي حدود العالم دي سیمې ته «بینهار» وایي او د ښارونو په ۵۰ فقره کې لیکي:

"نینهار جائیست، بادشاه او مسلماني نمایدو زن بسیار دارد. از مسلمانان و از افغانان و از هندوستان بیش از سي و دیگر مردم بت پرستند و اندروی سه بت است بزرگ. ص۳۹۹"

مګر په حدود العالم باندې د مینورسکي د حواشي په ۹۴ مخ کې د نینهار ښار ته داسې توضیح ورکړ شوې ده:

په «نینهار» ښه تلفظ شوي دي او هغه ځای دي چې «ننهار» د لغمان د رود وروستنۍ برخې په شمالي څنده کې پروت دي. دا نوم بې له شکه د جلال اباد پورې تعلق لري نوموړي د «ماك کریګور» د یادونې په حواله وایي هغه سیمه چې د جلال آباد د نایب الحکومه تر قیادت لاندې ده دا د کابل د سیند ناوه ده، ننګهار په پښتو ژبه «نه روده» او یا نهه رودګي دي. او په هغه ناوه دا نوم اطلاقیږي چې دا رودګي ترې تیریږي.

په بابرنامه کې «المنسکي» «۱۶۱» مخ ننګنهار او ډېر سم یې ننګرهار راغلي دي.

او د یوه اثر له قوله په نینهار کې درې بته د لیکونکي نظر تاییدوي.

## د نګاراهارا ښارونه او رودونه

۱- اویا ناپور «د باغستان ښار»: او یا ناپور چې د باغستان ښار ورته وایي د نګاراهارا د سیمې یو ښار دي او د باغستان ښار یې توصیفي نوم دي او د باغونو په ښار باندې هم یاد شوي دي او پوره یقیني ده چې دا ښار د ګلونو سیمه ده.

۲- ناکي «ناقي» ښار: د نګاراهارا یو بل ښار په پخواني ماخذ کې د «ناکي» په نوم یاد شوي دي چې موقعیت یې ځینې مدققین د ناقي په شیئه کې لر څه د اوسني جلال آباد لویدیز ته ښیي او ویل کیږي

[1] کابل مجله، لومړی ګڼه ۱۳۳۹، مخونه ۷ - ۹

چې د ناکي په نامه د دغه ښار نوم (شيله ناکي) تر اوسه پورې ساتلي دي.

ناکي هغه خوړ دي چې د جلال آباد د احاطې په لويديز کې د سپين غره څخه د کابل سيند تـه راوتلي دي او د بابرو علاقه له ژيړانو او بختان (ښنتان) له کليو څخه جلا کوي.

۳- د (پاوماپور) ښار (د نيلوفر د ګلانو ښار): که څه هم دا ښار پـه مؤخذ کې د ناکي د معرفي پـه ترڅ کې او پادماپور ښودل شوي دي او تقريباً همدا د ناکي ښار به وي خو پـه تشريحي ډول د دې ښار معرفي يو څه جلا بيلګې لري نو ممکن همدا د ناکي ښار دي او يا ممکن بل ښار وي. خو کـه د نګاراهارا جلا ښار يې وبولو نو د ده په باب داسې معلومات وړاندې شوي دي:

(پاوماپور) ښار ته د (نيلوفر د ګلانو ښار) نوم ورکول شوي دي.

نيلوفر په بودايي کلتور کې د تقدس جنبه لري، نو دغه ښار تـه د تبرک د ښار پـه سترګه کتل کيږي ځينو چيناي مؤخذونو دغه ښار د ګلانو د ښار په نامه ستايلي دي. چې تلفظ يې (هو، شي، شنګ) دي، داسې معلوميږي چې د ګلانو ښار يا د نيلوفر د ګلونو ښار د دغـه ښار توصيفي نومونه دي چې دې ښار ورباندې شهرت موندلي دي.[1]

ناکي يا پاوماپور هغه ښار دي چې ننګرشاه ورته لـه کونړه مهاجرت وکړ او دلتـه يې د جلا واکمنۍ بنسټ کيښود.

۴- د وي پانکارا پور ښار: دا ښار په بودايي مؤخذونو کې چې موقعيت يې پـه نګاراهارا کې ښودل شوي دي، د (ويپانکارابودا) په نوم هم يادې شوي چې هغه ته (دي پـاواتي) هم وايي او معنا يې شعله، وړانګه او نور دي.[2]

پـه يـو بـل روايـت د (وي پانکـارا بـودا) ښـار چـې پـورتنۍ معنـا افـاده کـوي د (ژنـد) يـا (زنـد) او (ماتمازرتشت) تقدس لري[3] او دا په دې دلالت کوي چې دې ښار مذهبي بڼه درلودلـه د پورتنيو ښـارونو تـر څنګه د يو شمېر نورو ښارونو لکه (درون ته) (درونته)، سلطان پور، هډه (هيلو) سرخرود (دنپور)، چيلپار (چپلهار) څخه هم يادونه شوې ده.

لکه چې د دې ښارونو او بودايي مرکزونو په متعلق داسې اشارات وړاندې شوي دي.

د ننګرهار سيمه چې د خپل مرکز (ننګرهار) د (ايراشهر) يعنې خدايي ښار پـه شکل يې زيات شهرت درلود او د افغانستان شرقي ولايت يې رانيوه او هغه سيمه ده چې په دغه ښار کې متعدد ښارونه موجود وو. او د هر ښار وداني يو بودايي مرکز ؤ.

داستوپو او معبدونو له نقطه نظره يې زيات شـهرت درلـود. او هر يـوې پـه ښکلو او مجللو صفتونو

[1] افغانستان در پرتو تاريخ، ۲۸۲ مخ

[2] همدغه اثر، ۲۸۲ مخ

یادیده چې په (درون ته)، سلطان پور، هډه، د سرخرود او چپلهار او په نورو علاقو کې د معبدونو د خرابو زیات موجودیت، پورتنی ادعا ثبوت دي.[1]

۵- هډه (هیلیو): کومه موضوع چې د ننګرهار تاریخي سابقې ته خاص اهمیت ورکړي دي هغه هم په هده کې د بودایي مذهب د مرکزیت تشکیلیدل او د ګریکو بودا د صنعت پراحیدل دي.

که د هډې لغوي معنا وڅیړل شي نو هډه د هډ څخه جوړه شوي کلمه ده چې اوس هم په پښتو کې هډ - هډوکي یعني استخوان په معنا دي. دغه ځای په هډه ځکه شهرت لري چې وايي دلته د بودا د کوپړۍ هډوکي ساتل شوي ؤ.

چینایي زایرینو د هډې څخه لیدنې او کتنې کړي او هغه یې (هیلیو) او (نارهیلو) بللې ده لکه چې وايي:

د ننګهار د لویو او مشهورو ښارونو څخه یو هم هډه ده. چې چیني زایر هېوان تسنګ د اومې پیړۍ په لومړي نیمایي کې هغه په نارهیلو یاده کړې ده.

کنګهم انګلیسي عالم په دې خیال ؤ چې د هډې اوسني نوم د سانسکریت له کلمې څخه اخیستل شوي دي چې هډې ته هډونکي وايي، دا ځکه چې د بودا د کوپړۍ (جمجمه) هډوکي د هغه ښار په یوه استوپه کې په امانتي ډول ایښودل شوي دي.[2]

د همدې اثر په یوه برخه کې لکه چې د مخه تر ې د نګاراهارا د ښارونو په بحث کې یادونه وشوه د بودایي مرکزونو څخه یو هم هډه ده.

ښاغلي محمد اسحق ابراهیمي د خپل اثر (مراکز مهم آئین بودایي در افغانستان) کې د هډې په باب مفصلاً بحث کړي دي چې لنډیز یې دلته وړاندې کیږي.

هډه په افغانستان کې د بودایي آئین د ډېرو مهمو مرکزونو څخه یو لوی مرکز دي چې په خپل نوع کې د افغانستان ډېر ستر او ډېر مهم معبدونه دلته وجود لري. چې د تاریخي سختو چپاولګریو او تندو بادونو او د آفتناکو حوادثو با وجود چې تر اومې پیړۍ پورې پر نګارهارا باندې تیر شول بیا هم د هډې بودایي معبدونو دومره زیان و نه لیده لکه چې فاهیان په پنځمه میلادي پیړۍ کې او هیوان تسنګ په اومه میلادي پیړۍ کې افغانستان ته سفر کړي ؤ. او د نورو بودایي مرکزونو څخه یې د کتنې په ترڅ کې د نګاراهارا په سیمه کې د هډې څخه هم لیدنه کړې او په دې باب یې خپل مشاهدات لیکلي دي.

د ده له کتنو او یادداشتونو څخه جوتیږي چې یو وخت هډه چې نو موړي لیدلې وه د افغانستان د بودایي آئین د بهترینو مرکزونو څخه شمېرل کیدله لکه چې لیکي:

[1] افغانستان در پرتو تاریخ، ص ۲۸۱
[2] همدغه اثر

د دې ځای زیات شمېر روحانیون او زایرین له منځه تللي، ستوپې او کنډري یې په متروك شکل باقي پاتې دي. خو د دې سره بیا هم د هډې ځینې معبدونه له آفتونو څخه په امان پاتې دي (هنر قدیم افغانستان ۷۴ مخ په حوال) که څه هم د تاریخ پوهانو مطالعات او لیکنې په تیره بیا د اسلام د مبین دین راهیسې د هډې بودایي تاسسات تر ډېرو کلونو پورې د خاورینو ډېر یو لاندې پراته وو، خو په دې راوروسته کلونو کې د کورنیو او بهرنیو پوهانو د علمي او لرغون پېژندنې پلټنو او څېړنو په ترڅ کې چې په هډې کې تر سره شول، هډه د یوه تاریخي موزیم او د ګریکو بودیزم د هنري آثارو د مهم مرکز په توګه راڅرګند شو او د لرغوني جهان هنري شهکارونه په دې ښکلي او تاریخي هنري موزیم کې د پوهانو او څېړونکو د استفادې د پاره کېښودل شول. ۱

د هډې په نوو کیندنو کې یو زیات شمېر بیلابیل مسکوکات او کتیبې شاملې دي چې د باختر د مسکوکاتو په نوم هم نومول شوي دي.

یو سیاح (مارتن برګر) د هډې څخه د کتنې پر مهال دیرش دانې سکې له دې حوزې څخه راټولې کړې وې، ځینې یې یوناني او طلایي ډوله وې.

د هډې له ۱۰ نمبر ستوپې څخه یو شمېر نورې مختلفې سکې کشفې شوې چې څلور سکې یې د (بیزانس) د دورې پورې او نورې یې (تیودوسو) (۴۰۵ – ۴۵۰)، ریالو (۴۵۰ – ۷۵۷)، اولیو (۴۵۷ – ۴۷۴) پورې تعلق درلود.

نژدې ۱۹۰ دانې سکې یې چې د کوم ساساني پاچا پورې مربوط وې، د یوې بلې ستوپې څخه په ۱۸۷۹ میلادي کشف شوې سیمو سیون یو شمېر مسکوکات د تبرکاتو له قطي نه تر لاسه کړل، ۱۰ دانې کدفیزیوس او ۶ دانې د کنیشکا پورې مربوطې دي. د یوې سکې پر مخ باندې د بودا شکل د یوناني لیکنې سره سم مجسم کیږي.

د سیمو سیون (۱۸۷۹) میلادي د څرګندونې له مخې یوه دانه شاید (هولشکا) پورې مربوط وي او درې دانې رومي سکې هم تر لاسه شوې.

د ... شه) د لیکنې له مخې په هډه کې یو لوښي کشف شوي دي چې اطراف یې خروشتي رسم الخط درلود

د هډې د نوي مرحلې په کیندنو کې د بودا لومړنی مجسمه (د ګریکو بودیك د هنر مربوط) هم لاس ته راغلې ده.

بیا په را وروسته کیندنو کې چې د بهرنیو او کورنیو پوهانو له خوا (۱۹۶۶ میلادي – ۱۹۶۷ میلادي) په شتر تپه کې تر سره شوې په هډه کې یو نوي عمراني ستوکي او د اومو خښتو تر نیمایي طرز

---

۱. ... مد اسحق. ابراهیمي، مراکز مهم آئین بودایي در افغانستان، ص۴

او د مسکوکاتو يوه خزانه کشف شوه. ۱

د لرغون پېژندونکو او پوهانو له خوا په هډه کې د بيلابيلو مرحلو د کيندنو نتيجې ډېرې ګټورې او ډېر زيات تاريخي آثار چې د ګريکو بوديك د ارت پورې يې اړه درلوده تر لاسه شوه چې په دې ګرد و بحث کول د دې ليکنې اصلي موضوع نه ده او صرف نظر ترې کيږي.

لنډه دا چې هډه بودايي مدنيت (ګريکو بوديك هنر) له مهم او لوی مرکزيت سربېره د کوشانيانو په دوره کې د اداري مرکز ګرزيدلي ؤ لکه چې د کوشانشاهانو د ژمنيو پلازمينو په جمله کې، د پيښور او د هغه د متعلق بګرام او د تاکسيلا غوندې دا هم د هغوئ يو مهم ژمني پايتخت ؤ.

۶- د نيپور (د نيبور). د نيپور د ننګرهار يوه سمسوره سيمه ده چې د محمد ظهير الدين بابر په زمانه کې يې زيات شهرت درلود.

په ځينو روايتونو کې راغلي دي چې لغمان يو بل مرکز درلود، چې بابري تزك او يا مغولي دورې شاهي مؤخذ هغه په ادينه پور ياد کړي دي. او دا چې ځينې دينپور په لغمان کې واقع بولي سمه نه ده. دا ځکه چې پخپله بابر په خپل تزك کې دغه اشتباه داسې رفع کوي او وايي:

په جنوب کې مې په يوه لوړ ځای کې د يوې کلا تاداو کيښود (۹۱۴ هجري قمري) او دا ځای چارباغ ؤ او هغه مې د باغ وفا په نوم ياد کړ. څرنګه په لغمان کې هم چارباغ شته دي نو خلکو ګومان کاوه چې باغ وفا دلته جوړ شوي دي. او د دې باغ په انتساب ادينه پور هم په لغمان کې پروت دي حال دا چې د لغمان چارباغ څخه پرته يو بل چارباغ په سرخرود کې هم شته دي.

د نيپور حتی د بابر د عصر نه د مخه يوازې دا روغه شان (هر صنف او ډله د کلي د دلباشي څخه لويه، پخوا د ښار سردسته او د ساتونکو مشر، فرهنګ عميد ص۴۸۰) نه بلکې د ټول ننګرهار د ښار د ساتونکي او د محل رييس ؤ، چې لغمان او جلال آباد دواړه يې احتوا کول. لکه څنګه چې جلال آباد د مشرقي ولايت مرکز او لغمان د هغه د مربوطاتو څخه دي له ۴۰۰ کلونو څخه زيات وړاندې دينبور د ننګرهار په زړه کې د يوه مرکز حيثيت درلود.

د دينبور موقعيت موسيو فوشه په خپله جغرافيايي نقشه (ج۱ – ص۳۱) کې له بلخه تر تکسيلا پورې په اثر کې د (نملې) شمالي ته او يا د نملی او سلطان پور تر منځه د سرخرود، د رود خانې په غاړه ښودلي دي او د بابري تزك نص هم دا نظريه تاييدوي. ځکه هلته دا خبره تصريح شوې ده، که چارباغ يا باغ وفا د رود خانې په غاړه پراته وو. او رود خانه د ادينه د کلا او مانۍ تر منځه چې خامخا په نوموړي باغ کې ودان شوي ؤ بهيده او دا رود خانه سرخرود دي (يعنې سرخرود د ادينه د کلا او باغ په منځ کې تير شوي ؤ) ادينه پور په شمالي غاړو او باغ (وفا چارباغ) د هغه په جنوبي غاړه کې پروت ؤ.

۱ مراکز مهم بودايي در افغانستان، له ۴۹ مخ نه د مخه

د باغ وفا موقعیت اوس باغباني یا باغواني تاکلای شو. ځینې نورو تصور کړي دي که باغ وفا د سرخرود په چارباغ کې واقع دي نو باغ صفا چې هغه هم د بابر د لاس طرح ده په لغمان کې به وي او دا محضي اشتباه ده څکه چې د آئین اکبري په ۱۹۲ مخ کې بیخي څرګنده ده چې وایي د جلال آباد په نزد کې باغ صفا یو فردوس مکان یادګار دي ادینه پورته نژدې باغ صفا هم د هغه آګاه باچا له اثارو څخه دي.

د سرخرود په چارباغ کې د باغ وفا موقعیت چې د بابر د مسافرتونو د یوه منزل له مخې د کابل څخه د هند په لور هم ثابتیدلای شي.۱

خو د حدود العالم د تعلیقاتو او حواشي ۵۵ فقره چې د نبور ته وقف شوې ده داسې څرګندونې لري دینور د (بیروزه) په مقابل کې د رود په غاړه پروت دي او په دې کې د ټول خراسان د سوداګرانو ځای دي او پکې بتخانې دي او په دې دواړه ښارونو کې مسلمانان سوداګر اوسیږي او دا دواړه ښارونه ودان او له نعمتونو څخه ډک دي.۲

د نیوریا دنپور د لغمان په مقابل کې پروت دي. په دې توګه د هغه د موقعیت محل د کابل د رود ښۍ خواته دي، په شاهنامه کې دا نوم د (دنیر) په شکل راغلي دي.

دنبور د شرقي طول البلد ۲۵ دقیقو او ۹۶ درجو او شمالي عرض البلد ۴۵ دقیقو او ۳۳ درجو په منځ کې واقع دي.

په هر حال دنبور باید دینپوروي چې په بابرنامه کې د (لمنسکی چاپ ۱۶۱ مخ کې د یاد شوي شکل سره مطابقت لري.

د دې د پاره چې موضوع ښه څرګنده شوي وي. دلته د میرمن بیورج د ژباړنې هغه برخه چې دا ادینپور په متعلق ده را نقل کیږي.

د کابل هیواد ختیز ته لمغانات پراته دي، تر ده لوی (یا په عامه اصطلاح) ننګنهار دي د ده دا روغه په ادینه پور کې هستوګنه لري، ادینپور ۱۳ فرسخه له کابل نه ختیز ته په فاصل کې پروت دي. دا فاصله د البیروني (راهنامه هند ص۱۰۱) هم تاییدوي له ویهنده تر پیښوره ۱۴ فرسخه له هغه ځایه تر دنپور ۱۵ فرسخه او له هغه ځایه تر کابله ۱۲ فرسخه او له هغه ځایه تر غزني ۱۷ فرسخه فاصله ده.

د ادینه پور (دنیپور) لاره ډېره خرابه ده. سرخرود (د سور رود چې او به یې سرې دي) د ادینه پور له جنوب څخه تیریږي په یوه لوړ ځای کې یې کلا بنا شوې ده او د (۴۰ – ۵۰) قاري مسافې ۱۳۰۰ فټو په اندازه مخامخ مخ څوړي لري، دا کلا له هغه غره نه چې شمال ته پروت دي لیرې ده. دا غر د ننګنهار او لغمان تر منځه غر دی.

۱ از سروبي تا اسمار، کهزاد

۲ حدود العالم، حواشي و تعلیقات، ۳۷۹ او افغانستان در پرتو تاریخ، ص۲۸۱

په نتیجه کې د نیپور لکه چې ورته اشاره وشوه د سره رود شمال ته واقع دي.
سرخرود د کابل د سیند د ښي خوا څانګه ده او د دې رودخانې په ښکتنۍ برخه کې د باران له دهانې څخه ۵۴ د پاسه اوښه د پاسه له جلال آباد سره یو ځای کیږي د نیپور او نیمور هماغه د سانسکریت ادینه پور دی او دا کلمه زیاتره په «دنپور» تلفظ کیږي. (۱) زموږ خبره تاییدوي او د دنپور ضبط بیخي سم دي او ادینه پور ناسم دي.
محترم استاد پوهاند رشاد هم پورتنۍ نظریه تاییدوي.
۷- جلال آباد: د ننګرهار په متعلق په تاریخي اسنادو کې همیشه د نګاراهارا د یوې سیمې د دنپور په نوم یادونه شوې ده چې دا لوستونکو ته فکر پیدا کوي چې ګوندي د دینه به مراد د جلال آباد ښار وي حال دا چې د دنپور په باب تیر بحث بیخي څرګنده کړه چې دنپور د جلال اباد ښار نه، بلکې یو جلا ښار دي چې د مخه پرې بحث وشو.
د موضوع په تیر بحث کې دا هم وښودل شوه چې نګاراهارا د یو شمیر ښارګوټو مجتمع ده او که د جلال آباد اوسني موقعیت وکتل شي نو څرګندیږي که چیرته هډه نه وای نو بې له شکه به له همدې ښاره تاریخي یادونې شوي وای او یا د هغو ښارونو څخه چې نګاراهارا ته منسوب وو. خو خبره دا ده چې په هغه وخت کې د جلال اباد ښار هیڅ موجود نه ؤ او ډېر وروسته تاسیس شو او چې کله دا ښار رامنځ ته شو او عمومیت یې پیدا کړنو په تاریخي اسنادو کې یې هم یادونې راغلي لکه چې وایي:
د ننګرهار د مهمو ښارونو څخه یو هم جلال آباد دي. دا ښار د هغې لارې پر سر واقع دي چې له کابل څخه هند ته ځي. د ګندهار د (مشرقي سمت) د ولایت مرکز دي.
د بحر له سطحې څخه ۱۹۵۰ متره ارتفاع لري، د کابل د سیند د جنوب غرب په یوه جلګه کې پروت دي د کابل له ښاره ۹۶/ ۱۴۰ کیلو متره میله مسافه لري.
د جلال آباد ښار یو هغسې ښار دي چې د باغونو او عمارتونو له پلوه شهرت لري او د دې باغونو او عمارتونو د جوړولو کار له پخوا زمانې څخه یوه عنعنه ګرزیدلې ده. وایي چې د لومړي ځل د پاره په دې محل کې د ښار جوړولو مفکوره د بابر سره پیدا شوه (۸۵۴ هجري قمري) دا ده چې د یوه ښار د جوړولو د پاره یې دا ځای انتخاب کړ، مګر ویې نه کړای شو چې ودانۍ پکې تاسیس کړي او یوازې ځینې باغونه یې پکې جوړ کړل.
مګر تر دې وروسته جلال الدین اکبر (۹۶۳ هجري قمري/ ۱۵۶۰ میلادي) د دې ښار بنسټ کیښود.
د جلال آباد جلګه تقریباً د ۸۰ میلو په اوږدوالي او ۳۵ میلو په پسور پراختیا درلودله او په دې وخت کې د کابل سیند شمال ته د لغمان او د کابل رود په جنوب کې د ننګنهار په شمول ساحه پرته ده.

۱ حدود العالم، ص ۹۳

دا ښار د لغمان او کونړ د ناوو په مدخل کې پروت دی.

د امیر حبیب الله خان د سلطنت په دوره کې د دې ښار سمسورتیا او ودانۍ ډېرې زیاتې شوې او د باغونو او عمارتونو یو ښار شو. خو بدبختانه د ۱۳۰۸ هجري شمسي د کورنۍ اړو دوړ په نتیجه کې چې د شاه امان الله په خلاف رامنځ ته شو دا ښکلي ښار پخپله د افغاني باغیانو او باغیانو له خوا سوزول شوی او وران شو.[۱]

په یوه بل اثر کې تقریباً په مشابهت سره د دې ښار په باب داسې یادونې شوې دي:

جلال آباد د بابر پاچا له خوا تاسیس شوی دی خو د جلال آباد د نوم د انتساب له مخې دا خبره سمه نه ده، مګر اوسنی جلال آباد د هند د مغولي پاچا جلال الدین اکبر په زمانه کې ودان او د جلال الدین د نوم په ارتباط ورباندې د جلال آباد یعنې د جلال کوټ نوم ورباندې کېښود. خو دې وروستني نومونې دومره رواج پیدا نه کړ.

## نګاراهارا ښار د یوې پخې کلا په حیث:

د ځینو مؤرخانو په عقیده چې وایي (نګار) یوه مستحکمه کلا وه، کومه چې د حکمران قرارګاه شمېرل کېږي چې د کاپیسا د پاچا له خوا تاکل کېده (تاریخ افغانستان، ټ۲، ۳۶۲ مخ). خو پورتني موضوع په یوه بل روایت کې بیا داسې تصریح شوې ده.

د (نا-کا-لوهو) کلیمه نوم کېښودل شو (۱۵۰۷ میلادي)

دې ښار په ۱۸۳۴ میلادي د افغان-انګلیس په لومړنۍ جګړه کې صدمه ولیدله او وروسته په ۱۸۴۲ میلادي د یوې کلکې زلزلې له امله ورته سخت زیان ورسید او تر نیمایي زیاتره برخه یې ویجاړه شوه او بیا په ۱۳۰۷ هجري شمسي د کورني اړو دوړ (په تیر روایت ۱۳۰۸) له کبله د هغې ځینې عصري ودانۍ او باغونه وسوزول شول.[۲]

او بیا وروسته کله چې محمد ګل مومند د مشرقي د سمت تنظیمه رییس ؤ د جلال آباد د نوم پر ځای یې د جلال کوټ نوم کېښود چیني زایرین دا نوم داسې تجزیه کوي:

(ناکار) یعنې (ناګار) (نچه) (لوهو) یعنې کوټ او قلعه چې جمله معنا یې مستحکمه کلا کېږي او له دې څخه (ناګ کوت یا نګر کوټ جوړیږي.

او البیروني هم د کابلشاهي په سلسله کې د نګر کوتي یادونه کړې ده. خو د ځینو په قول دا یادونه وارد نه ده (پورتنی اثر، ۳۶۳ مخ). او که تیرو محلي کیسو ته ور وګرزو نو نګر کوټ هم سم دي چې هماغه ننګر کوټ افاده کولای شي.

---

۱ آریانا مجله، ۶ ګڼه، ۱۳۲۳، ۴۳ مخ

۲ پښتو آریانا دایره المعارف، ۵ ټ، ۱۳۵۴، ۳۹۰ – ۳۹۱ مخونه

د نګريا نګار د کلمو په متعلق هم يو لړ نظر يې وړاندې شوي دي، ځينو هغه محضي ښار ترجمه کړي او ځينو په هغې کې د (نګ) يا (نګ) کلمې تر کتنې لاندې نيولي دي چې د سانسکريت له (ناګا) څخه راوتلي ده او د لمر، مار، غر او فيل معناوې لري.[1]

او که دغه اصطلاح دلته مهمه وبلل شي نو نګاراهارا هم د لوړو غرونو په منځ کې موقعيت لري ځکه رودونه هلته موجود دي لکه شي چې دغسې غرونه موجود وي.

د ښاغلي محمد ګلاب ننګرهاري له قوله په يوه روايت کې (ناګار) ټينګه کلا او همدا راز (نا، کا، لو، هو) هم دغه معنا ورکوي.

ناکا د ناګار يعنې د کلا او لوهو د ټينګې معنا ورکوي.

(نګر کوټ) او (ناګ کوټ) دوه کلمې دي چې اوس هم شته دي. د (ناکالو هو) او (ناګار) غوندې دي. د (نګر) او (نګار) تر منځه هم اختلاف شته ځينې نګر د ښار په معنا راوړي او بعضو د (نګ)، (نك) ته توجيه کوي چې د سانسکريت له (ناګای) نه اخيستل شوي او د مار، غر، لمر او دښتې معنا ورکوي او که (نګر) د غره په معنا شي هم د غرجستان معنا ورکوي.[2]

## د نګاراهارا نهه رودونه:

لکه چې د مخه پر حدود العالم د مينورسکي د حواشي او تعليقاتو په بحث کې وويل شو هغه سيمه چې د جلال آباد د نايب الحکومه تر قيادت لاندې وه. دا د کابل د سيند ناوه وه او غالباً يې په ننګرهار يا ننګنهار يادوي چې لومړی کلمه د د وهمې بدلې ده.

ننګنهار په پښتو ژبه (نهه روده) يا (نهه رودګي) دي او په هغه ناوه دا نوم اطلاق کيږي چې دا رودګي ترې تيريږي.[3]

دا نهه رودونه چې د (نهو رودونو ننګرهار) اصطلاح پرې تر اوسه پورې لا هېره شوې نه ده د ننګرهار د غلجايي حصارك څخه د شينوارو د نازيانو د خورا شرقي برخي، تورخم او ډکې پورې اته رودونه کېدل او د کابل سيند ور پورې غاړې د کامې سره نهه ردوه ننګرهار بشپړيده.

---

[1] تاريخ افغانستان، ج ۲، ص ۳۶۴

[2] کابل مجله، لومړی ګڼه، ۱۳۳۹، ۷ مخ

[3] حدود العالم، ۹۴ مخ



# ۷- زرنج

**(مدينة العذرا)**

زمونږ د لرغوني هېواد د لرغوني سيستان لرغوني مرکز زرنج د هغې زرخيزي، حاصلخيزۍ او مردخيزۍ سيمې يو لرغوني ښار دی چېرته چې ريګونه پښې کوي په لاره درومي، چېرته چې پراخو او اوږدو دښتو لمنې غوړولې دي، چېرته چې د تپو او پشتيو څخه پرته هيڅ غر نه ښکاري چېرته چې بادونه توپان کوي او په ډېر شدت سره بې وزر والوزي، چېرته چې مځکه خپله مځکه په نس ور ننباسي، چېرته چې کال و سر يوازې دوه موسمه وي، چېرته چې ځپانده سيندونه بهيږي او چېرته چې د دغسې عجايبو او غرايبو څخه د ډکې سيمې مرکز، کوم چې د هرې ډېرې لاندې يې زښته زياتې تاريخي، مجلل او له دبدبې ډک قصرونه او ښکلې ودانۍ رنګې بنګې پرتې دي، هلته چې هره ماسه او شګه حماسه زيږونکې کاين بلل شوې دي نو د دغسې بډاى او په خزانو معمورې خاورې يو ښار زرنج دی. هغه زرنج چې د هيڅ تيرې کوونکې ځواک او حاکمانو لاس پرې نه بريده او د دې ګردو صفاتو او مشخصاتو له امله ورته په مجموع کې د پيغلې ښار يا مدينه العذرا لقب ورکړ شوی ؤ.

## د زرنج د ښار موقعيت او «رام شارستان»:

پخوا تر دې چې د زرنج د ښار د موقعيت په تثبيتولو خبرې وشي په مقدماتي ډول ضروري ده چې د

«رام شارستان» په باب معلومات ولرو. دا د شارستان رام هغه محل دي چې د زرنج ښار نه د مخه د سیستان مرکز ؤ، او د دې ښار د منځه تللو په نتیجه کې ترې د هغه او سیدونکي یوې بلې سیمې ته وکوچیدل او هلته یې د زرنج د ښار بنسټ کیښود او د زرنج ښار یې جوړ کړ.

## رام شارستان:

دا ښار چې په رام شارستان مشهور دي د عربو د پخوانیو جغرافیه لیکونکو له قوله ننی زرنج د زرنجیانا «درنگیانا» د ولایت پایتخت ؤ او د هغه د بناکیدو د مخه په لرغونو زمانو کې د دې ولایت مرکز رام شارستان ؤ. چې د ابره شهریار په نوم هم یادیده. بالاخره دا لرغوني ښار په څلورمه هجري/ لسمه میلادي پیړۍ کې د طبیعي آفاتو یعنې د ریگونو د کوچونو له کبله د خاورو لاندې او په کنډوالو بدل شو لکه په پورتني پیړۍ کې د دې ښار د کورونو او ودانیو د خرابو ښنې ښنانې لیدل کیدلې.

په یوه بل روایت د دې لرغوني پایتخت موقعیت په ناڅرگند او مبهم ډول د زرنج د ښار په درې منزلې کې ښودل شوي دي چې په پخوانیو زمانو کې هغه یو لوی رود چې د هیرمند له سیند څخه رابیل شوي دي او به یې دلته راتللي او بیا یې د خپل چاپیریال ځمکې خړوبولې، تر څو چې د دې سیند د تړلو په واسطه او به پورته لاړې او یو لوی بند جوړ شو او ناڅاپه دا ښار بې اوبو شو ځمکې یې لا مزروع او او سیدونکي ترې په یوواري وکوچیدل او اوسني زرنج یې جوړ کړ. ۱

اصطخري د سیستان په بحث کې وایي: د کرمان او سیستان تر منځه لویې بناگانې دي پخوا دلته یو ښار ؤ چې هغه ته یې رام شارستان وایه او وایي چې د سیستان اوبه په دې شارستان کې تیریدې د رام شهرستان خلك راپورته شول او هلته یې د زرنج ښار بنا کړ. ۲

## د زرنج د ښار موقعیت:

که د تاریخي واقعیتونو په رڼا کې وویل شي د زرنج د ښار د موقعیت تثبیتول او ټاکل ډیر گران دي چې په یوه وخت کې «د آسیا د غلي انبار» او «د خراسان بصره» یادیده او اوس هغه نوم بیخي د فراموشی کندي ته لویدلي دي.

مگر بیا هم د زرنج د ښار د موقعیت په ټاکلو کې د پخوانیو مؤرخانو آثار پوره مرسته کوي لکه چې د عربو د جغرافیه لیکونکو په قول دا ښار د هلمند د رودخانې ښي خواته موقعیت درلود، یعنې د زرنج د جنوب په یوه منزلی کې، د هلمند سیند ته یو بند جوړ شوي چې لوی او کوچني نهرونه لکه سنارود، باش رود، نهر میله، نهر شعبه، نهر طعام «د زرنج د ښار د طعام دروازې ته منسوب دي» دې ښار ته تلل.

---

۱ آریانا مجله ۸ گڼه، ۱۳۲۳، ۴۲ – ۴۷ مخونه

۲ جغرافیاي تاریخي افغانستان، میر غلام محمد غبار، ص۲۷۹

په همدې ډول په شمال کې يې يو بل رود چې د نيشك (اوسنی خاشرود) په نوم يادېږي تيرېده. او په دې ترتيب زرنج د دې دوو رودونو په منځ کې پروت ؤ، يعنې د هلمند رود يې په جنوب کې او خاشرود يې په شمال کې بهيده د دې دواړو رود خانو په منځ کې هغه ځای چې (نادعلي) ورته وايي يو لوی تلي دي چې په اطراف کې يې زياتې خرابې ليدلی کيږي او سړي حتی د پخوانيو لويو برجونو په کتلو د ډېر ليرې تير مهال د شان او شوکت په ياد کې اچوي.

که چېرته دا کنډوالې د يوه ښار بقاياوې وي او د منځنيو پيړيو ښار او د زرنج اصلي مرکز او يا پخواني زرنګ يا زرنګا، يې وبولو نو په يقين سره ويل کيدای شي چې په دې ځای کې د زرنج ښار پروت ؤ او تاريخي متون هم په دې خبره شهادت ورکوي. ١

يوه بله پته چې په يوه تاريخي روايت کې د زرنج د ښار د موقعيت په باب ورکړ شوې ده.

هغه تر اسلام راوروسته د ربيع بن زياد د سيستان فتح کولو واقعه ده. وايي چې د هجرت په ديرشمه ربيع بن زياد د سيستان د نيولو په نيت د يو لوی لښکر سره د کرمان د مرکز (سبيرجان) نه راوخوځيد د پهره ښارونه (اوسني ايرانشهر) او جالق چې د لارې پر سر يې پراته وو، فتح شول خالق کې ربيع بن زياد د هغه ځای د مهتر څخه پوښتنه وکړه چې د سيستان لار ور وښيي، هغه ورته وويل:

کله چې د هيرمند له روده پورې وځې نو مخې ته به دې ريګ او شګې راشي او چې له ريګ څخه تېر شې، سنګريزه به وګورې او هلته به يوه کلا او کلي ښکاره شي. ٢

پورتنی آدرس په ځرګنده توګه ښيي چې زرنج د هلمند د رود ښي خواته پروت دي او هغه ريګونه او کاړونه (سنګريزې) چې تر اوسه پورې د هيرمند رود خواته له چاربرجك څخه تر ناد علي پورې تر سترګو کيږي د زرنج د ښاريو بل دليل دي.

نوموړي زرنج د تيمروز او ناد علي په محل کې پروت دي او دا به محضي اشتباه وي که چېرته د سيستان د دې تاريخي او با عظمته ښار موقعيت د مستر (تيت) د قول په پيروي په زاهدان کې وګڼل شي.

لسترنج هم د نقشې له مخې د دې ښار موقعيت د ناد علي په همدې محل کې تثبيت کړي او ټاکلي دي. چې د لاش او جوين څخه د ناد علي په شمال کې دي. او د فتح کلا يې په جنوب کې پرته ده او له هغه ځايه تر حصار طاق (اوسنی سارتار) يو لړ خرابې سره نښتې پرتې دي چې د هغوئ يوه برخه او حتی ټولې خرابې همدا د زرنج ښار دي.

هنري ماکماهون چې په ١٩٠٣ – ١٩٠٥ ميلادي کې يې په سيستان کې پلټنې تر سره کړي نو يې په

١ محمد اعظم سيستاني، سيستان سرزمين ماسه ها و حماسه ها، ټ٢، ١٣۶۶، ١۶٧ – ١۶٨ مخونه

٢ مؤلف نامعلوم، تاريخ سيستان، (۴۴۵ – ٧٢۵ حدودو کې) ملك الشعرا بهار په تصحيح ص ٨٠ مخ

خپل ډېر علمي او ګټور رپوټ کې چې د سیستان په باب یې لیکلي دي داسې وایي:

په هیڅ یوه مملکت کې داسې خرابي او کنډوالې نه دي لیدلي شوي تر څو چې د سړي د سترګو دید لګیږي دا خرابي تر نظره کیږي او دا ټولې خرابي د زرنج ښار دي.

(هنري ساوج لندر) چې په ۱۹۰۱ میلادي کې یې سیستان په ټوله معنا لیدلي دي او د ده نظر د لرغون پیژندنې په برخه کې زیات اعتبار لري، عقیده لري چې دا خرابي د یوه ښار خرابي دي او هغه هم د زرنګ مهم ښار دی. ۱

نوموړي د دې خرابو او ړدوالي له ۸۰ - ۹۰ میلو حساب کړي چې په لومړي سر کې له مبالغې ډك انکار منونکي دي، مګر نوموړي تیروتلي نه دي او دا ځکه چې د فتح د کلا څخه تر جوینه او له نیشك څخه تر پخواني زاهدان او تراکو پورې یوه آباده سیمه او یو زیات شمېر ښارګوټي شته چې د زرنج پورې مربوط دي نو ویل کیدای شي چې زرنج د فتح د کلا نه ترجوینه او له نیشك څخه تر پخواني زاهدان او تراکو تر منځه سیمه کې پروت دی. ۲

## د زرنج د تسمیې وجه، بنا او تاریخي موقف:

لکه څرنګه چې تاریخي معلومات ښیي او لکه چې د سیستان د تاریخ له متن څخه جوتیږي د اتمې هجري پیړۍ په وروستیو کې او ممکن د غزنویانو د دورې په اواخرو کې (هجري لسمه پیړۍ) کې د زرنج نوم په تاریخي آثارو کې له استعمال څخه لویدلي ؤ یعنې تر دې وروسته د زرنج نوم په تاریخي واقعاتو کې نه دي ذکر شوي او دا ځکه چې اسلامي جغرافیه لیکونکو د غزنویانو څخه په راوروستو پیړیو کې د زرنج تلفظ فقط د سیستان ښار یا (مدینه سجستان) په نوم پیژانده او کله چې دا ښار (په ۷۸۵هـ/۱۳۸۳م) د ګوډ تیمور په لاس د خاورو سره خاورې شو ، نو زرنج دا وخت د سیستان نوم درلود.

د سیستان په تاریخ کې په یو شمېر مواردو کې د سیستان د کلمې د استفادې د پاره (د زرنج د ښار مفهوم) کارول شوي دي. ۳

هغه وخت چې د سیستان د کرسۍ یعنې زرنج پر ځای د (قصبې) کلمه استعمال شوې ده له دې ډول یادونو څخه په ۴۲۱ هجري کې د سیستان د عامل په حیث د (فوشنجي عزیز) د ټاکلو په مناسبت چې د سلطان مسعود له خوا د سیستان د عیارانو سره یې له خشونت او سختګیرې څخه کار اخیست تاریخ سیستان د زرنج د قصبې مفهوم داسې استعمالوي:

... سر هنګان را باز ګرفت و بتازیانه بزد و نقیبان را ګردن بزد و دونیم کرد و کاري به سیاست فرو

۱ سیستان سرزمین ماسه ها و حماسه، ج۲، ص ۱۶۸ - ۱۶۹

۲ پورتني اثر، ص ۱۷

۳ جغرافیاي تاریخي سرزمین خلافت شرقي، لسترنج، ۳۸۵ مخ

گرفت و مصادره بستند و بسيار از سرهنگان قصبه (زرنج) و مهتران روستاها را باز داشتند.[1]

د زرنج ښار چې د سيستان د ډېرو لرغونو او مهمو ښارونو څخه او په موقعيت يې د مخه بحث وشو د مؤرخانو په قول لومړي پړی د (اسکايې ها) نوم اينبودل شوي دي.

کلاسيکو ليکوالانو دا د (زرنگ) په نامه پيژانده او بنسټ اينبودونکي يې د سيستان د ملي افسانې پهلوان رستم بولي.

يونانيانو دا ښار د (درنگ) په نوم ياد کړی دی. او عربو هغه په (زرنج) معرب کړي دي.

د زرنج ښار نه يوازې تر اسلام نه د مخه دوره کې د دبدبې او لوړ مقام درلودونکي ؤ بلکې په منځنی پيړۍ کې هم د سيستان د ډېرو مهمو ښارونو څخه شمېرل کېده.

د سيستان صفاري پاچاهانو د زرنج د مخ په زياتښت ترقي او آبادۍ ته خاصه توجه کوله او د پخوا په شان يې د سيستان پلازمينه انتخاب کړې وه.

د زرنج د ښار خرابې اوس د ناد علي د جهان آباد د کلي او زاهدان تر منځه ليدل کيدای شي.[2]

په يوه بل روايت د زرنج د بنا کونکي په باب ويل شوي دي:

د اسلام مؤرخين او جغرافيه ليکونکي د زرنج د ښار په هکله بيلابيل روايتونه لري، اسلامي طوسي په (گرشا سب نامه) کې د دې ښار بنا گرشا تسب د آريانا د ملي پهلوانانو د سلسلې سره او د رستم لوی نيکه ته نسبت ورکوي.[3]

د اسدي طوسي هم عصري د سيستان د تاريخ مؤلف د گرشا سپ نامې تر تصنيف لس کاله د مخه د اسدي غوندی داسې نقل کوي او داسې ښکاري چې د دواړو مؤخذ عجايب البلدان د ابو المزيد بلخي تصنيف دي.

د سيستان تاريخ عين متن په دې عبارت دي:

"اما بنا کردن سيستان (شارستان) بر دست گرشا سپ بن اثرت، بن شهر، سم، بن کورنگ، بن بيلاسپ (شيد اسپ) بن تور، بن جمشيد الملك. آن روز بود که گرشاسپ دانايان جهان را گرد کرده بود که من شهری بنا خواهم کرد. بدين روزگار که ضحاك، همه جهان همی ويران کند و آزاده گان جهان را همی کشد و از جهان به جادوی همی بر کند تا مردمان عالم را سامه (جای امن) باشد که او را بر شهری که من کرده باشم فرمان نباشد. اما چنان خواهم که نيکو نگاه کنيد و از هفت و چهار و دوازده (ده) بنگريد و

---

[1] پورتني اثر، ۱۷۷ مخ
[2] البلدان، ۲۲ مخ
[3] سيستان سرزمين ماسه ها و حماسه، ج۲، ۱۶۱ مخ

حساب کنید (عدد ده به جاي دوازده از خاطري درست خواهد بود که عدد طالع است." ١

حمد الله مستوفي په نزهت القلوب کې چې په ٧۴٠ هجري کې یې تالیف کړي دي د پورتني موضوع په تایید لیکي: گرشاسپ د سیستان ښار جوړ کړ او نوم یې پرې زرنج کېښود او د (ریگ روان) په لاره د زره بحیرې ته نژدې یې یو لوی بند جوړ کړ چې ښار د ریگ روان له ضرره په امان وساتلای شي.

## مدینة العذرا (پیغله ښار):

زرنج ته د هغه ډېر محکموالي او نه تسخیریدونکي ښار په وجه (مدینة العذرا) یا (پیغله ښار) لقب ورکړ شوي چې دلیل یې داسې ارائه شوي دي.

د خراسان سیستان او منځنۍ آسیا پخواني ښارونه په نه تسلیمیدونکو پخو کلاګانو، خندقونو او بارو مجهز وو او خلکو کولای شول چې تر ډېرې مودې پورې د مهاجمانو او فاتحانو په مقابل کې مقاومت او دفاع وکړي. او دښمن و نه شي کولای چې هغه فتح کړي، دروازې یې ورته بېرته کړي، اوسیدونکو یې وځپي. نو ځکه په عربي ژبه کې چې د (عذرا) معنا په دري دوشیزه او په پښتو پیغله چې باکره وي، دا ډول صفت مستحکمو او پخو ښارونو او کلاګانو ته ورکول کیږي.

د سیستان تاریخ (۴۴۵ – ۷۲۵) شاوخوا چې د سیستان او د هغه د سترو عظمتونو، ډېر قوي شاهد دی او د زرنج د شارستان څخه د هغه د نعمتونو او پریمانیو څخه چې یو وخت ورته د نیمروز د هیواد (مدینه العذرا) قایم ښار ویل کېده. ٢

که د زرنج د ښار د دې توصیفي ترکیب مفهوم ته یو څه وضاحت ورکړ شي. نو دې ښار ته له دې امله (پیغله ښار) ویل کېده چې د هغه په نیولو او خپلولو هیڅوک قادر نه ؤ او د هغه حریم د پیغلې د بکارت حیثیت درلود چې په عربي ورته افتضاض ویل کیږي د دې د پاره چې د زرنج د تسمیې د وجې په متعلق یو هر اړخیز او تقریباً بشپړ او مدلل مجموعي انځور وړاندې شوي وي. نو د ښاغلي محمد اعظم سیستاني په هغه لیکنه او څېړنه استناد کیږي چې په خپل کتاب سیستان سرزمین ماسه ها و حماسیه کې یې وړاندې کړي دي.

سیستان چې د عربو په پخوانیو منابعو کې سجستان نومول شوي دي د (ساکا) د قبیلې په انتساب د سکستان له کلمې څخه مشتق شوي دي.

سیستان په منځنۍ پیړۍ کې د (نیمروز) په نوم ونومول شو.

ځیني محققان نیمروز د (ناف زمین) په معنی ضبط کړي او وایي کله چې لمر نیمروز ته راورسیږي نو د مځکې ټوله نیمه کره روښانه کیږي، نو ځکه نیمروز د پراخه او ځلیدونکي افق په خاطر د مځکې

١ همدغه اثر ص ١۶١ - ١۶٢

٢ همدغه اثر، ١٧١ مخ

«نصف النهار» د نقطې په حیث په هغه زمانه کې چې بطلیموس د خالدات ټاپو د زمکې نصف النهار پیشنهاد کړي نه ؤ د اوستا د عصر د اریانانو له خوا ومنل شو. [1]

په اوستا کې معمولاً د آریانا مشهوري او مهمې سیمې د سیندونو او رودخانو په نومو چې د دې له منځه تیریدلي نومول شوي دي لکه هیتومند - هلمند، فرادانا - فراه، هراواتي - ارغنداب، الرخد، کندهار او نور...

تر میلاده شپږ پیړۍ د مخه د هخامنشیانو په وخت کې لومړي داریوش د جمشید د تخت په ډبرینو کتیبو کې دا سیمه د هغې په بومي نوم چې هلته د «ساکیانو» د مهاجرت څخه د مخه یې درلود «زرنما» ورته ویل کېده لکه چې د بهستون او د جمشید د تخت په کتیبو کې د هخامنشي د قلمرو د دریو شرقي ایالتونو څخه د «پارثو» یعني خراسان، «زرنگا» یعني سیستان، هریوه د هرات» یو ځای نومونه اخیستل شوي دي. د نقش رستم په کتیبه کې د هخامنشي د نورو شرقي ایالتونو سره یو ځای لکه بلخ، سغد او خوارزم او رخج «قندهار» سره نومونه یاد شوي دي.

ایراني دانشمند مرحوم بهار معتقد دي چې د «زرنگ» لفظ د سیستان او زاولستان د ېر پخواني نوم دي او د داریوش په کتیبه کې «زرنگا» راغلي دي او د زرنگ د ښار نوم هم له دې نه اخیستل شوي دي.

باید وویل شي چې مؤرخانو په ځینو برخو کې زرنج د سیستان په مفهوم او سیستان د زرنج په مفهوم کارولي دي او دا ځکه چې تر دې وخته پورې د دې دواړو تفکیک دومره موجود نه ؤ.

یوناني کلاسیک مؤرخین او جغرافیه لیکونکي هر یوه په خپلو اثارو کې له دې ایالت څخه یادونې کړي دي لکه چې ۲۵ پیړۍ د مخه یوناني کلاسیک مؤرخ هیرودت له دې سیمې او د هغې د خلکو څخه د «سارنگا» او «زرنگا» په نوم یادونه کړې ده.

له میلاده ۱۵۰ کاله د مخه یوناني مشهور جغرافیه پوه بطلیموس د دې ایالت له اوسیدونکو څخه د درانجې په نوم او د ده هم عصره «اریان» د زرنگ خلک د «زرنجي» او «درانجي» په نومونو یاد کړي دي. [2]

د کوچنۍ آسیا مؤرخ او جغرافیه دان «ایسیدورخاراکسي» دا سیمه د «رانگیانا یا درانجیانا» په نوم یاده کړي او له نن څخه دوه زره کاله د مخه یو بل یوناني جغرافیه لیکونکي «سترابون» دې سیمې ته «درانجیانا» او خلک یې ورته «درانج» ویلي دي.

«پلیني» هم د دې ځای اوسیدونکي د زرنجي په نوم نومولي او د «زرنگا» کلمه د دې لیکوالو له خوا زرنجي قوم او ملیت ته نسبت ورکړي شوي دي. [3]

---

۱ پورتني اثر، ۱۲۵ مخ
۲ تاریخ افغانستان، ټ۱، ۱۶ مخ
۳ سیستان سرزمین ماسه ها و حماسه ها، ټ۲، ۱۲۷ مخ

«اومستد» د شيکاګو د پوهنتون د شرق د تاريخ استاد د هخامنشي د شهنشاهي په تاريخ کې ليکي چې د «هريوه» هرات په جنوب کې د «اتيمندروس» هيرمند د رود په غاړه د زرنګ يا د رنګيانا او يا «زرانګه په با بلي متن کې» شته دي «دا و مستد د پورتني تاريخ، ۴۳ مخ.»

دا يادونې هر يوه په خپل خپل ځاى څرګندوي چې زرنګ يا زرې نګا د سيستان د پر پخواني نوم ؤ او د هغه د مدنيت زانګو «زرنګ په اسلامي عصر کې په زرنج معرب شو.

د لغت د علم پوهان او محققان د دې کلمې د ريښې په ارتباط داسې عقيده لري چې د دې ښار نوم چې د سيستان د ايالت نوم هم ؤ اصل يې په اوستا کې د زريا او زريه چې معنا يې سيند او هامون دي او د درياب تر څنګه راغلې ده چې لومړى برخه يې دريا له دريه پخواني پارسي څخه اخيستل شوي دي.

«بورنوف» وايي چې د «زرنګا» کلمه چې د زرنګې قوم ته اطلاقيږي هم د زرانګه له همدې کلمې څخه اخيستل شوي ده.

نو «زريا، زرايو او زرانګه» چې په اوستا کې د دريا په معنى ده او دريه هم په پخواني فرس «هخامنشي د دورې ژبه» کې په همدې معنا او درياب په پهلوي کې او دريا په نني درې کې يو دي او مراد ترې د زره درياب «سړ يې رود دي» او د زرنګ نوم له دې سينده اخيستل شوي دي. او ورو ورو د زره د سيند «سيستان هامون» د اوسيدونکو په مورد کې هم وکارول شو.[1]

استاد داود پور د زرنګ د کلمې په تفسير کې ليکي: «زرنګ يعنې ابي او دريايي مملکت» څکه چې دا نوم د زره د سيند په مناسبت دې سيمې ته ورکړ شوي دي. هغه کلمه چې زرنګ ترې مشتق شوې ده په اوستا کې د «زريه» راغلي چې د رود معنى لري او په همدې معنى د هخامنشي په فرس کې «دريه» ضبط شوي او د فارسي دريا لغت هم له دې ريښې څخه دي چې د اريايي د پخوانيو لهجو د اختلاف له کبله دال او ذال په يو بل اوښتي او حتى د ذال توري په زې معجمه او د اواز د شباهت له مخې يې بدلون موندلي دي او کلاسيک ليکوالان دا نوم د سارنګي او زرنګي او «درنګي او درنګيانا» او زرنګ په شکلونو ضبط کړي دي، چې سم صورت يې زرنګ دي. او دا ذال په ټولو ضبط ارجحيت لري.

د زرنج په باب که د پورتينو څرګندونو څخه تير شو هغه کلمه چې نن د دې سيمې پخواني نوم ياديږي هماغه د زره کلمه ده د زره د درياچې «هامون» نوم دي. چې همدا اوس د مشهور سربند د نوم دوهم جزء «ګود زره» يې تشکيل کړي دي.

د سيستان د تاريخ نامعلوم مؤلف د زرنګ د تسميې د وجې په مورد کې روايتونه لري چې زياتره افسانو او فولکلور ته ورته دي. لکه چې ليکي: زرنګ يې هغه ځاى ته وايه چې زال زر د هغې زياتې ودانى، رودونه او کشتزارونه جوړ کړي لکه چې ذالق العتيق وايي:

[1] د افغانستان تاريخ، ټ۱، کهزاد، ۱۶ مخ

«اندر پيش زره وزالق الحديث که معرب کرده اند، آن زال کهن است و زال نو او را مردمان سيستان «ازورنگ» خواندندی زيرا که موی راست بزر کشيده مانستی بسکو «بسکر، لشکر، عسکر، لشکرگاه هم مي توان خواند» را که او ساخته بود زرنگ گفتند. و بزرگان همه از بسکو ساختند، همه سيستان را بدون نام کردند و زرنگ خواندند.» (تاريخ سيستان ص۲۳) لکه چې پرې بحث وشو د زرنګ کلمه د اوستايي «ذريا» له مادې څخه د دريا او اوبو په معنا ده او څه رنګه چې اته مهمې او لويې رودخانې لکه هيرمند، ارغنداب، ارغستان، ترنک، فراه رود، خاشرود، هاروت رود، خوسپاس او د نورو اوبه په سيستان کې خالي کيږي او د ساحې له مخې د سيستان زياتره برخه لويې او ورې رودخانې تشکيلوي نو «زرنګا يا زرنګ د دې سيمې مسمی کول د عيني منطق سره برابر خبره ده.

او د زرنګ د پاره به بله هر د تسميې وجه او معنا غير موجه و نا مقبول وي.[1]

## زرنګ د مؤرخانو له نظره او د دې ښار ساختماني او استحکامي بيلګې او په دې ارتباط يوه تاريخي واقعه:

څرنګه چې د زرنج پراختيا او ارتوالی زيات ؤ او هم يو زيات شمېر عمارتونه يې درلودل او د دې تر څنګه لرغوني سابقه يې هم ډېرو پخوانيو زمانو ته رسيږي نو په هر اړخيز او مفصل ډول د دې ښار ساختماني مشخصات لکه څنګه چې يې درلودل ښودل کيداى نه شي او دا ځکه چې د سيستان په باب چې دا ښار يې يو وخت مرکز ؤ د مؤرخينو او ليکوالانو له خوا ډېر څه ليکل شوي دي چې د هر يو د معلوماتو له مخې په دې باب بحث کول ډېره اوږده خبره او ليکنه ايجابوي نو دا ده چې په لنډه توګه په دې هکله معلومات وړاندې کيږي.

تاريخ سيستان د زرنج د ښار د مشخصاتو په ارتباط داسې خرګندونې لري:

هغه څه چې د سيستان «زرنج» په ذات کې موجود دي په نورو ښارونو کې هغه نشته دي چې خلاصه يې په لاندني ډول ده:

۱- زرنج يو لوی او مستحکم شارستان لري، چې هغه هم د څو ښارونو څخه متشکل دي يعنې له نورو ښارونو څخه او «مدينه العذرا» ورته ويل کيدله دا ځکه چې هيڅوك هيڅکله هغه نيولای نه شي که هر څومره جنګي سړي وي او د وسلې په استعمال ښه پوهيږي او آن له وړوکتوب څخه يې د وسلې په استعمالولو کې مهارت پيدا کړي وي او د جګړې په فن کې يې ښه تعليم و تربيه ليدلې وي.

۲- او بل زرنج يو داسې ښار دي چې بادونه يې ژرندې ګرزوي او اوړه کوي، مګر په نورو ځايونو کې ژرندې د حيواناتو په واسطه ګرزي، يا په اوبو ګرزي او يا په لاسونو ګرزول کيږي او هم يې خلکو داسې

---

[1] سيستان سرزمين ماسه ها و حماسه ها ج۲، ص ۱۲۹

بادي ارهټونه جوړ کړي دي چې له کوهيو پرې اوبه راپورته کوي خپل باغونه او ځمکې پرې خړوبوي او د باد څخه ډېره ګټه اخلي.

۳- د دې ښار بل خصوصيت دا دي چې دا ښار په خپل ځان باندې ولاړ او خودکفا ښار دي او بل هيڅ يوه ښار ته احتياج نه لري، که چېرته په دې ښار کې کاروان تم شي دلته هر څه لکه ډول ډول نعمتونه، د لويانو د پاره جامونه؟ هغه چې د پاچاهانو او اهل مروت د پاره مناسب دي په دې ښار کې موندل کيداى شي.

په دې ښار کې د ژمي په موسم کې ميوې پيدا کيږي.

۴- او بل دې ښار ته په کښتيو کې له ليريو ځايونو څخه بارونه راوړي او له دې ځايه څخه يې کليو او نورو سيمو ته په حيواناتو نقلوي.

۵- د دې ښار د خصوصياتو څخه يو دا دى چې د سيستان ټول خلك علم دوست دي، او له دې ځايه يو زيات شمېر عالمان، فقيان او محدثين راپورته شوي دي چې د دوى کتابونه په شام او حرمين کې لوستل کيږي چې شمېر يې ډېر زيات دي.

۶- او بل زرنج يو داسې ښار دي چې هيڅ دښمن پرې تيرى نه شي کولاى او که چېرته پرې د تيرى په موقع کې ترې بيرته راستون نه شي نو هلاکيږي.

۷- او بله خبره دا ده چې په سيستان کې داسې لويې لويې ودانۍ آبادې دي چې په نور عالم کې نشته دي.

۸- بله دا ده چې په عالم کې د سيستان له ځمکې څخه ښه ځمکه نشته او همدا شان هيڅ چېرته د سيستان د غوښې په شان خوږه غوښه نشته دي.

۹- هيڅ چېرته د سيستان د خلکو غوندې ډوډۍ مار او ميلمه نواز خلك نشته دي لکه دوى چې پراخه مالګه او ډوډۍ لري.

۱۰- په سيستان کې چې يو پراخ ملك دي د هر ډول څخه د نعمتونو پريماني ده دومره تر څو پورې چې وو، ويې ليدل ويې خوړل او ور يې کړل. ۱

اصطخري د زرنج په باب وايي: تر زرنج بل لوى ښار نشته، دا ښار شارستان او ربض لري، د شارستان ګرد چاپير ديوال دي او د ربض خندق هم ديوال لري، او د خندق اوبه له خندق څخه راخوټيږي او نورې اوبه ور سره يو ځاى کيږي. ۲

د زرنج د ښار د ډېر محکموالي په باب يوه اندازه روايتونه شته دي چې په بيلابيلو تاريخي پيښو

۱ تاريخ سيستان، ص ۱۲ - ۱۳

۲ جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ۳۵۷

کې يې پوره انعکاس موندلی دي، لکه چې وايي:

د «آل ليث» د واکمنۍ په وخت کې چې زرنج په زيات شهرت او ډېر زيات ناز او تنعم سره ژوند کاوه او داسې ويل کيږي چې د دې وطن د نامتو پاچا امير خلف په وخت کې، حسين بن طاهر چې د گرديزي په قول د امير خلف خور يې او د يميني تاريخ د مؤلف په قول د ده له خپلوانو څخه ؤ د خراسان د امير ساماني نوح بن منصور (۳۶۹ هجري) د لوی لښکر سره د امير خلف په مقابل کې د جنگ د پاره او د زرنج ښار د نيولو په مقصد راغی.

د يميني تاريخ د ۵۴ مخ په حواله د خراسان امير پوره اوه کاله هلته پاتې شو او زرنج د هغه په مقابل کې په ميړانه کلکه دفاع وکړه، څه رنگه چې د خراسان لښکر د زرنج په محاصره کې پاتې راغی د امير خلف د پخواني دوست (ابو الحسن سيمجور) د سيستان د کار د پاره وگمارل شو او امير خلف ته يې د ننه پيغام واستاوه چې د خراسان امير ستا په خبره کې عاجز پاتې شو.

او دلته د خراسان اميران او لويان ستا په لاس ووژل شو، اوس يې زه راليږلی يم، نو زما او ستا د دوستی له مخې هغه څه مه کوه چې زه بېرته ستون شم.

امير خلف د سيمجور د دوستی په پاس او د خراسان د امير د زاري له مخې له جنگه لاس واخيست او د سولې له لارې د زرنج د ارگ له کلا څخه راښکته شو او طاق حصار ته لاړ. ۱

د پورتنی واقعوي مثال او نورو تاريخي مثالونو څخه جوتيږي چې يو وخت زرنج يو له برمه ډك او پخپل ذات قايم ښار ؤ او په جهان کې د يعقوب ليث او عمرو ليث له وخت راهيسې تر ده زښته زيات ودان ښار نه ؤ او پايتخت يې ورته وايه تر هغه وخته پورې چې امير خلف يې له سيستان څخه يووړ.....

کله چې د سيستان با فضله پاچا امير خلف له منځه لاړ نو د زرنج او سيستان ورځ هم وگرزيدله چې حکيم فرخي سيستاني په خپله يوه قصيده کې دا واقعه ډېره ښه بيان کړې ده.

وايي په ۳۹۳ هجري کې د سيستان خلك د امير خلف څخه د هغه ظلم له کبله چې د خپل زوی په حق کې يې کړې ؤ له ده ناراضي شول او د سلطان محمود د ملاتړ هوايي په سر کې وگرزيدله د همدغه کال د صفري په مياشت کې سلطان محمود د زرنج د خلکو په ملاتړ د طاق حصار او د زرنج په نيولو بريالي شو او د سيستان څخه د ستنيدلو په وخت کې يې امر کړې ؤ چې د سيستان د ښار باري سورې کړي چې فساد رامنځ ته نه کړي. يو کال لا تېر نه ؤ چې د سيستان عياران بوبکر عبد الله (ابوبکر بن عبد الله د امير خلف د لور له خوا لسمی) ۳۹۳ په جمادي الاخر کې د سيستان په پاچاهي وټاکل شو. او نوموړي دواره امر وکړ چې د بارو سورې دې بند کړی شي. د بارو د سوريو د بندولو کار لا پای ته نه ؤ رسيدلي چې سلطان محمود د ډېر قوي لښکر سره له هنده راستون شو او د هغه لښکر په اتفاق سره چې له غزني فراه

۱ تاريخ سيستان، ص ۳۳۷

او اوق (قلعه کاه) او د زره په مخکې (ننی بيش آب) د ده مرستې ته سيستان ته ورغلل او په زرنج يې جګړه پيل کړه، زرنج ډېر سخت مقاومت او دفاع کوله چې ناڅاپه له عيارانو څخه يو تن (ابوالحسن کهتر) د ماسخوتن لمانځه په وخت کې د طعام دروازه بېرته کړه او د محمود! محمود! چغې يې ووهلې دا وه چې د محمود مريان ښار ته راننوتل او په دې ډول سره يې د ښار په سوزولو، لوټولو، ورانولو او عامو وژلو پيل وکړ.۱

لکه چې د مخه وويل شو مؤرخان او اسلامي جغرافيه ليکونکو د زرنج په باب زيات معلومات ورکړي دي.

حدود العالم د سيستان په بحث کې ليکي: زرنج يوه ناحيه ده چې د هغې قصبې ته زرنج وايي، د حصار درلودونکي يو ښار دي او ګرد چاپېر ترې د اوبو خندق دي.۲

آريانا دايره المعارف د زرنج په متعلق داسې څرګندونې لري:

زرنج د سيستان پخوانی ښار او مرکز ؤ دا ښار په منځنی پېړۍ کې ډېر مهم او غوره موقف درلود په دېرشمه هجري کې ربيع بن زياد پرې حمله وکړه دا وخت زرنج ډېر مستحکم ؤ. ګرد چاپېر يې خندق درلود او پنځه او سپنيزې دروازې يې لرلې.

زرنج د افغانستان د ستر شهنشاه يعقوب ليث صفاري او د هغه د ورور عمرو ليث مانۍ وه عمرو ليث د ښار په درون (شارستان) کې د خپلې خزانې د پاره يو تعمير جوړ کړی ؤ چې هغه ته يې ارګ وايه. د زرنج بازارونو، عمارتونو او ښار پوره شهرت درلود، هغه ودانۍ چې دې دواړو افغاني پاچاهانو جوړې کړې دي د لسمې پېړۍ جغرافيه ليکونکي د هغه زياته ستاينه کوي په ۷۸۵ هجري / ۱۳۸۳ ميلادي ګوډ تيمور چې زرنج ونيوه، اهالي يې ورته عام قتل کړل او د ښار د ورانولو حکم يې وکړ د زرنج د ښار خرابې د ناد علي د شهرستان د زاهدان د کلي د هغه پل په اوږدو کې پرتې دي د هلمند د سيند څخه د پخوانيو ويالو سربندونه را اخيستل شوي وو، او د منځنيو پيړيو څخه را په دې خوا دا ښار بيخي وچ شوی ؤ.۳

يعقوبي د سيستان د بارو په مبحث کې ليکلي دي چې د سيستان له ناحيو څخه د بست ناحيه، د جوين ناحيه، د خشك ناحيه، د خواش ناحيه او د زرنج لويه ناحيه ده چې د رتبيل پاچا پايتخت دي او څلور فرسخه مساحت لري ګرد چاپېر ترې يو خندق دي او پنځه دروازې لري، رودخانه لري چې د ښار له منځه تيرېږي او هندمند (هيرمند) ورته وايي:۴

---

۱ همدغه اثر، ص ۳۵۷

۲ غبار، جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ۲۷۹

۳ آريانا مجله، ګڼه ۸، ۱۳۲۳، ص ۴۷ - ۴۸

۴ جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ۲۷۹

بلاذري د سجستان او کابل د ابادیو په مبحث کې چې زرنج هم د دې ودانیو څخه شمېرې او دا هغه وخت دې چې د عربو د لښکر دوهم ستون چې د افغانستان جنوب لویدیز ولایتونو باندې راتویې شول (د فتوح البلدان، قاهره، ۱۹۰ میلادي ۴۱ مخ په حواله.)

ابن هوقل د یعقوبي څخه یوه پیړۍ وروسته د زرنج د ښار د جغرافیوي وضعیت په باب مفصل معلومات ورکړي او وایي.

د سیستان د پر لوی ښار زرنج دي، چي یو ښار (شارستان) د حصن (قلعه ارگ، کهندژ) درلودونکي دي او د پر پراخه ربض لري چې هغه هم له نفوسو څخه ډکې لویې ودانۍ. دصفویانو د دورې دارالاماري او داسې نور ځایونه او قهوه خانې لري.

د ښار ربض هم د قلعه او بارو (حصار) درلودونکي دي چې گرد چاپیر ترې خندق ایستل شوي دي او د ویالو د اوبو زیاتښت هم په خندق کې تویېږي. ۱

په گرشاسب نامه کې راغلي دي:

چې گرشاسب د زرنج د ښار بنسټ کیښود، له خاورو یې ورته باره جوړه کړه او د دې په منځ کې یې یو لوړ دژ (کلا) ورته آباده کړه، د دژ گرد چاپیر یې یو خندق و ایسته چې اوبه پکې روانې دي او پنځه دروازې یې درلودلې.

د یمیني تاریخ لیکوال لکه چې مخکیني تاریخي پیښنه کې یې لیکلي دي وایي: چې د امیر خلف په وخت کې زرنج د اوو کالو د پاره د ساماني نوح بن منصور د لښکرو په مقابل کې قهرمانانه دفاع وکړه او د زرنج د کلا په هکله داسې توصیفي څرگندونې لري.

آن قلعه با فلك همراز، با فلك هم آواز بود، سطح او سمك سماك مي بود و دیده بان او زمزمه ملك مي شنود، و شهاب ازاوج شرف او سر می تاخت، و سحاب در حفیض او جامه ململ می بافت، ... پیراوان و خندقی عمیق بود، که اندیشه در مجاري آن به پایاب نمي رسید. و و هم را در مخالص آن پای به گل فرو مي شد، چون نهنگ سواره و پیاده را فرود می برد، و چون اجل بر خورد داشت ابقا نمی کرد.

## د زرنج عمومي ساختماني پلان:

یو کم شمېر هغه مدارك چې د اسلامي جغرافیه لیکونکو په اختیار کې یې قرار درلود د هغو له مخې ویل کیږي چې د زرنج ښار د هېواد دزیاترو پخوانیو ښارونو په شان لکه چې د منځنۍ آسیا په زیاترو سیمو کې هم معمول ؤ درې ډوله ودانۍ درلودلې:

۱- ارگ:

د ارگ مفهوم په زیاترو مواردو کې ورته کهندژ (زړه کلا) هم ویل شوي دي، دا د ښار په ډېره ودانه او

---

۱ سیستان سرزمین ماسه و حماسه ها، ج۲، ص ۱۷۹

مامونه برخه کې واقع ؤ او ګرد چاپېر ترې يو مستحکم حصار ؤ، امارتګاه، زندان او بيت المال (خزانه) په ارګ کې وو.

۲- شارستان:

چې په شهرستان هم افاده شوي يعنې پخپله ښار، چې په ماورالنهر کې ورته (اندرون) ويل کېده او د ارګ ګرد چاپيره پروت ؤ او د ښار مجلل او پرتمينه عمارتونه پکې پراته وو.

شارستان هم په حصار، يو شمېر دروازو او په خندق احاطه کېده.

امير ابوالفضل سيستاني د نيمروز د پاچاهانو د سلسلې سره په ۴۳۰ هجري د زرنج شارستان او د هغه باره نوی بنا کړه او په ۴۳۴ هجري کې يې د هغه د جوړولو کار بشپړ کړ.[۱]

۳- ربض:

ربض په دوو فتحو چې په ماورالنهر کې ورته (بيرون) ويل کېده د هغو کليو او آباديو څخه عبارت دي چې د شارستان په اطراف او خارج کې موجود وو.

ربض هم مستحکمه کلا او لوی خندق درلود.

د عيني تاريخ ليکوال، د زرنج د دې خندق څخه چې په سيستان کې يې ورته پاراګين وايه زياته ستاينه کړې ده.

روسي عالم او مستشرق بار تولد په عمومي صورت د شارستان تاريخ ته اشاره کړې او ليکي د لسمې هجري پيړۍ ليکوال (شخصي) نسبتاً زياتره اطلاعات د بخارا د نقشې په متعلق ښيي چې شارستان د ښار ډېره پخوانۍ ودانۍ وه چې د اشراف املاك د انحصاري سيادت په دوره کې بنا شوی ؤ او ربض د سوداګرو او صنعتګرانو محل او بازار ؤ، په هره اندازه چې د اشرافو او ملاکانو طبقه مخ په ښکته تلله او د سوداګرانو او کسبګرو طبقې ترقي کوله په هماغه اندازه له شارستانه ژوند ربض ته منتقل کېده.[۲]

## د زرنج ماڼۍ او نور عمارتونه:

- جامع جومات:

د زرنج د ډېرو لويو او له عجايبو څخه د ډکو ودانيو په جمله کې يو هم جامع جومات دي چې د ادينه په جومات مشهور دي.

(څرنګه چې ادينه د جمعې ورځ ته وايي نو ممکن په دغه جومات کې د جمعې عمومي لمونځ کېده او مطلب ترې هماغه جامع جومات دي.)

---

۱ تاريخ سيستان، ص ۳۶۵

۲ جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ۵۶ - ۵۷

## ارګ:

د سيستان تاريخ کې په تفصيل سره د سيستان د ښکينو او اوصاف په باب معلومات ورکړ شوي د (عبدالله بن مقفع) او قدامه بن جعفر بغدادي په حواله، يوناني سکندر د زرنج د ارګ باني بولي او ليکي:

کله چې (دارا) بن (داراب) ووژل شو او د ده لور (روشنك) رومي سکندر په نکاح کړه او د هند امنيت يې تامين کړ او سيستان ته لاړ هغې کلاته راورسيد چې کيخسرو جوړه کړي وه، د سيستان د قلعه (ممکن زرنج) شمال ته يوه بله کلا وه چې هغه ارد شير بابکان بنا کړې وه (په ظاهره سره د طاق کلا به وي) سکندر هلته اوه ورځې پاتې شو او د سيستان (سپهبد) يې ونازوه. هغه ته يې امر وکړ، چېرته چې د کلا څارونکي (ساتونکي) وو د يوه ځانګړي کلا کار يې شروع کړ او روشنك يې هلته پريښودله، او کله چې د هند د چارو څخه فارغ شو او هلته راغی هغه کلا نژدې جوړه وه، يوه مياشت يې هلته تېره کړه تر څو چې کلا بشپړه شوه دا وخت يې وويل: په کلا کې دې (اراك) داسې وي چې نه هغسې چې د مخه وه.

راك په رومي ژبه (پهره دار) ځای ته وايي او هغه د سيستان کلا ده چې ارګ ورته وايي او ذوالقرنين بنا کړې وه. دا نقل په څو کتابونو کې هم راغلي دي لکه چې اخبار سستان، سرملوك عجم د عبدالله بن المنقفع ابو الفرج قدامه بن جعفر بن القدامه البغدادي تاليف، (کتاب خراج) د مسالك او ممالك په باره کې چې د سيستان په هکله يې بحث کړی دی.

که څه هم دا روايات په افساني بنا دي خو د لرغون پژندنې نتيجې ښيي چې دا ټول يوازې افسانه او اسطوره نه ده، بلکې ځينې يې تاريخي واقعيتونه هم دي. ۱

## د ارګ دار الاماره:

تقريباً ټول مؤرخان او اسلامي جغرافيه ليکونکي چې د سيستان په متعلق يې څه ليکلي دي په دې خبره اتفاق لري چې دا محل يې د پاچاهانو پلازمينه ګڼلې وه.

ابن هوقل وايي: د نيشك او کرکويه د دروازو تر منځه د ښار په شمال ختيز کې يو لوی عمارت دی چې د عمرو ليث صفاري له هستوګنځيو څخه دی او ارګ يې ورته وايه او هلته د نوموړي خزانه ساتل کېدله. ۲

ياقوت حموي، اصطخري د ابن هوقل پورتني قول تاييدوي.

## د يعقوبي کوشك (ماڼی):

د جيهاني، اصطخري او ابن هوقل د څرګندونو له مخې دا ماڼی يعقوب ليث صفاري د صفاري

---

۱ سيستان سرزمين ماسه و حماسه ها، ج۲، ص ۱۴۳- ۱۴۴

۲ پورتني اثر، ص ۱۸۸

سلسلې مؤسس جوړه کړې ده.

ابن هوقل په دې مورد کې وایي: یعقوب لیث د جنوب لویدیځ دوو دروازو په منځ کې چې د فارس دروازې او د طعام دروازې په نومونو یادیدلې، په جنوب کې یوه ماڼۍ ودانه کړه چې د ښار د حاکم نوي مقر وگرزید او د عمرو لیث له ماڼۍ څخه دومره لېرې نه وه. دا ماڼۍ هم لکه د ښار د نورو ودانیو په شان تولـه لـه خښتو څخه جوړه شوې ده او طاقونه یې درلودل ځکه چې بشونه (تیران) او لرگي د لمده بل (رطوبت) له امله ورستیدل او موریانو یعنې چینجو پکې سوري کول (۱) اصطخري هم د ابن هوقل د پورتنۍ څرگندونې په تایید وایي:

دې ماڼۍ د سیستان د تاریخ په وینا خضره یا ستیزه (د حضور ځای) درلودله او دلته یې د خلکو عرضو داد ته غوږ نیوه.

## کوشك خلفي:

دا ماڼۍ هم په ظاهره کې د زرنج د ماڼیو او ودانیو څخه ده، د سیستان په تاریخ کې دا ماڼۍ د (گوشه لفي) په نوم یاده شوې او په دې کتاب کې (گوشه) د قصر په معنا ده او باید چې دا حلفي، خلفي وي یعنې هماغه امیر خلف د سیستان نامتو پاچا ته منسوبهٔ وي چې په ۳۵۲ هجري د ابو جعفر ممدوح رود کې پلار په دې ماڼۍ کې ووژل شو. ۲

## جوربندان:

زرنج ته نژدې په دې نوم یو ځای ؤ پخپله ربض کې چې ابراهیم بن حصین قوسي د سیستان امیر هلته اوسیده او دارالاماره یې د خپل زوی هستوگنځي ته ورکړې وه.

د ابراهیم خزانې هم دلته ساتل کېدلې او همدلته ابراهیم د ځان د پاره یو مجلل تعمیر جوړ کړ.

## داشن:

د زرنج په ربض کې شارستان نه بهر یو محل ؤ په ۳۶۰ هجري کې امیر خلف د ښار د تصرف په وخت کې هلته هستوگنه درلودله او داسې معلومېږي چې دې محل پوره شهرت درلود ځکه چې د زرنج په زیاترو پیښو کې د داشن یادونه شوې ده. ۳

## گاشن:

په زرنج کې په دې نوم یو ځای ؤ چې په ۴۳۴ هجري ه سلجوقیانو لښکر وروسته له هغې چې د کر

---

۱ جغرافیاي تاریخي سرزمین هاي خلافت شرقي، ترجمه عرفان، تهران ۱۳۳۸، ص ۱۰۳

۲ تاریخ سیستان ص ۳۲۶

۳ همدغه اثر، ۳۲۰ مخ

کوپه دروازه يې ونيوله او د هغه ځای خلك چې ګبر او مسلمانان وو، لوټ کړل ګاشن ته راغی او په دې ځای کې هم تر کشتار وروسته خلك لوټ کړل، جاشن د همدې نوم معرف دي او ابو اسحق جاشني د زرنج د دې محل ډېر زبردست عالم ؤ.

## حلف آباد (حلقا باد):

دا ځای زرنج ته نژدې يو محل ؤ چې د کوشك حلفي سره د مفهوم له مخې نژديوالي درلود دې محل د پوځي ځواکونو مرکز تشکيلاوه، په جنګي پيښنو کې د دې ښار ډېره يادونه شوې ده. او ممکن درست شکل يې خلف اباد وي. چې هماغه امير خلف ته يې نسبت کيږي. په دې سربيره د سيستان په تاريخ کې يو بل ځای د مينو حلف (ظاهر امينو خلف) هم راغلي دي او ممکن دا اوسني مينو وي چې د ناد علي ختيز ته نژدې موقعيت لري او يو بل محل هم د خوخ يا خوج په نوم د زرنج په ښار کې يا ور سره نښتي د سيستان په تاريخ کې ياد شوي دي. ١

## کرنګ او سر لشکر:

د سيار کوڅې ته نژدې د کرنګ په نوم په يو ښار کې او يا د شار سره نښتلي يو محل ؤ چې سلطان محمود د طاق د حصار تر نيولو وروسته هلته راښکته شو، ښار او ولايت يـې قبچې حاجب تـه تحويل کړ. ٢

د زرنج د ښار د ځايونو څخه يو هم سرلشکر ؤ چې تر هغه شاته پاراګين (خندق) ؤ او سيستاني خرڅي دا کليمه زر کاله د مخه ياده کړې ده.

## د زرنج د ښار کوڅې او سرايونه:

د زرنج ښار د پورتنيو مشهورو يادو شوو آبنيو او ساختمانونو سربېره يو شمېر کوڅې او سرايونه هم درلودل چې د هغو په متعلق تفصيلات په واك کې نشته او يوازې په نومونو اخيستلو يې بسنه کيږي.

د زرج کوڅې

- کوی زنان
- کوی رخ
- کوي فراه
- کوي ميار

١ سيستان سرزمين ماسه و حماسه ها، ټ ٢، ١٩٢ مخ

٢ پورتني اثر. ١٩٢ مخ

- کوی کوشه
- کوی سينګ

**د زرنج سرايونه:**

سرای بوالحسيني، سرای بايوسفي، سرای ارتاشي، سرای ابو جعفر قوسي، سرای امام فاخر بن معاذ چې دا وروستنی سرای د ۴۲۱ کال د روژې په مياشت کې د عيارانو له خوا چور شو او وسوزېده.

- سرای بهلول ابن معنګ، سرای ابراهيم قوسي او د ده زوی محمد بن ابراهيم قوسي سرای، سرای حمدان يحيی دا سرای په ۱۳۹ هجري د صالح بن نصر او ابراهيم قوسي چې د سيستان حکمران ؤ مصالح د سپاهيانو په واسطه چور شو او خلك د حيك بن مالك د سرای له بامه شارستان ته ور پورته شول او دروازې يې د صالح د طرفدارانو پر مخ ببرته کړې.[1]

**د زرنج باغونه:**

د زرنج ښار يو شمېر ښکلي او سمسور باغونه هم درلودل: لکه جيهاني چې وايي: د دې باغونو ساحه د فارس له دروازې څخه د مينا تر دروازې پورې ښبتي پرته ده.

او د دې باغونو څخه يې مشهور باغ د (ميمون باغ) ؤ چې د زرنګ په شارستان کې پروت ؤ.

**د زرنج د ښار بازارونه:**

زرنج يو شمېر بازارونه درلودل، اصطخري د ادينه د جومات ګرد چاپير د زرنج د ښار په ربض کې پنځه بازارونه ښيي چې ډېر معمور او د خلکو ګڼه ګونه پکې زياته وه چې يو بازار يې يعقوب ليث صفاري ته منسوب ؤ.

مګر ابن هوقل او يو شمېر نورو مؤرخانو دا بازار عمرو ليث، د صفاري پاچاهي د سلسلې دوهم پاچاته منسوبوي او وايي چې دا بازار په شارستان کې د فارس له دروازې څخه د ښار د ربض د فارس تر دروازې پورې د نيم فرسخ ۳ – ۴ کيلو متر اوږدوالي لرې چې د دې بازار ورځنی اجاره يو زر درهم چې د انګليسي (۴۰) پونډو سره معادل ده ښيي.[2]

د سيستان تاريخ له دې بازارونو بر علاوه درو نورو بازارونو نومونه اخلي چې يو يې بازار سراجان، بل يې نوي بازار دي چې د زرنج د نو شهر پورې مربوط ؤ او دريم يې د طعام د دروازې بازار ؤ.

همدا شان يو بل بازار هم ؤ چې سراسته يا پيراسته نوميده.

---

۱ د سيستان تاريخ، ۱۹۶ مخ

۲ جغرافياي تاريخي خلافت شرقي، ۳۶۱ مخ

باید وویل شي چې دا ټول بازارونه د جلا جلا تاریخي حوادثو په جریان کې لوټ شوي او سوزول شوي دي.[1]

## د زرنج دروازې:

د زرنج د دروازو په هکله په زیاتو تاریخي آثارو کې کوم چې د سیستان په باب لیکل شوي دي څرګندونې شوي دي.

لکه حدود العالم چې د مخه ورته هم اشاره شوې وایي: چې د زرنج ښار پنځه دروازې لري او ربض یې باره لري او باره یې هم ۱۳ دروازې لري چې پنځه یې د ښار د دروازو په نوم یادیږي خو دلته په یو څه تفصیل سره د دې دروازو په متعلق معلومات وړاندې کیږي.

ابن هوقل وایي:

د څلورمې هجري پیړۍ نامتو سیاح او جغرافیه لیکونکي چې د اصطخري سره یې دوستانه مناسبات او مکاتبات درلودل د زرنج په هکله مفصلاً داسې یادونه کوي: د شارستان او د هغه د ربض دروازې معرفي کوي چې دا دي دلته معرفي کیږي.

## د شارستان دروازې:

د زرنج شارستان پنځه دروازې لري چې پنځه واړه له اوسپنې څخه جوړې شوي دي دوه دروازې یې یوه د بلې په خوا کې ده چې دا دواړه د جنوب لوېدیځ په لوري بېرته کیږي او څه رنګه چې د فارس لاره له دې دروازو مبدا اخلي نو د فارس په دوو دروازو باندې شهرت لري. یوې ته یې نوې دروازه او بلې ته یې زړه دروازه وایي.

- دریمه د کرکویه دروازه ده چې د شمال په استقامت ده او د خراسان لار ترې تیریږي او د کرکویه له کبله چې ورته نژدې ده د کرکویه په دروازه مشهوره ده.
- څلورمه دروازه د نیشك دروازه ده چې د ختیز پر مخ بېرته کیږي او د بست د لارې په استقامت ده.
- پنځمه دروازه د شارستان د تګ راتګ خاصه دروازه ده چې د جنوب خواته یې مخ دی او د طعام د دروازې په نوم مشهوره ده او د کلیو لاره ورځنی پرانیستل کیږي.[2]

## د زرنج د ربض دروازې:

د زرنج د ښار ربض ۱۳ دروازې لري چې هغه اصطخري داسې ضبط او معرفي کړي دي:

- باب مینا (باب مینا د فارس په استقامت.

---

[1] تاریخ سیستان، ۱۹۶ مخ

[2] صورت الارض، ابن هوقل، ۱۵۲ مخ

- باب جرجان (باب گرگان) دا دروازه د فارس تر دروازې وروسته ده.
- باب شیرک.
- ورپسې باب (شتار اوق) (شتار او).
- تر دې وروسته باب شعیب.
- او ورپسې باب نوخیك (نوخیزك).
- بیا باب الکان (ظاهراً په (دراکان) وي دا ځکه چې د سیستان په تاریخ کې (دراکان) راغلې دي.
- ورپسې بیا باب استریس (ظاهراً باید اسپریس وي چې د آس ځغلولو د میدان په معنا دي.)
- بیا وروسته باب غتجره.
- او ورپسې باب بارستان.
د ابن هوقل له قوله د شهرستان دروازې او د اصطخري له قوله د ربض دروازې معرفي کیږي.
- ورپسې بیا باب روزگاران (رویگران)
- د سیستان په تاریخ کې یوه دروازه د نگران په نوم یاده شوې چې ښایي هماغه د رود گرام دروازه وي.
- د ریتان دا یوه نوې دروازه ده چې د سیستان تاریخ په حواله ښودل شوې ده.
- در حلواگران چې په ۳۹۶ هجري د سلطان محمود د مریانو له خوا وسوزول شوه.
او په یو بل روایت د ۶۶۲ هجري په شا و خوا کې ملك نصیر الحق والدین چې د سیستان حکمران دی د (طبق گران) په نوم هم له یوې دروازې څخه یادونه کوي.
لنډه دا چې بې له ابن هوقل او اصطخري څخه بل هیڅ یوه اسلامي جغرافیه لیکونکي پرته د زرنج د شارستان د پنځو اوسپنیزو دروازو څخه نورې دروازې نه دي توضیح کړې او یوازې همدومره یې ویلي دي که د زرنج ربض دیارلس دروازې درلودلې، مگر دی دواړو مؤرخانو د دغو دیارلسو دروازو نومونه هم اخستلي دي. ۱

## د زرنج د جنوب تاریخي ښارگوټي او ابنیې:

د دې د پاره چې د موضوع د اوږدوالي څخه صرف نظر شوي وي دا به کافي وي چې یوازې د دې ښارگوټو او ودانیو نومونه واخیستل شي.
- زامق (زالقان، زاهدان یا جالق): دا ښار د کرکویه د ښار د جنوب په پنځه میلي کې یو لوی کلي دي.
- هستیون: یو لوی کلي دي د زرنج په اطراف کې ظاهراً د هغه ښار په لویدیز او یا جنوب غرب کې.

۱ سیستان سرزمین ماسه و حماسه ها، ص ۱۸۵

- قلعه فتح: د زرنج د جنوب په ۶۵ کيلو مترۍ کې پروت دي.
- قلعه ترکو (قلعه تراکو يا تراخون) د سيستان د سرايان د بلوك څخه ده.
- سارتار (حصار طاق) يا شهر غلغله: په نيمروز کې د قلعه فتح د جنوب شرق په ۲۰ – ۲۵ کيلو مترۍ کې
- قلعه مادر پادشاه او قصر سنگر: د بارو د رود په لويديز او د نيمروز د چار برجك په ختيز کې.[1]

## د زرنج د سيمې ښارګوټي او ابنيې:

- قلعه هزار برج (به چهل برج مشهوره ده) د نيمروز د مرکز زرنج د ختيز په ۲۰ – ۲۵ کيلو مترۍ کې.
- قلعه نيشك (کده بلبلي) د زرنج په شرق کې.
- بتو: يو لوی کلي دي او د نيشك له مربوطاتو څخه دي.
- جوين (گوين)، د زرنج په شمال کې يو ښارګوټي دي.
- منبه: پخوا د سيستان يو لوی ښار ؤ.
- قلعه لاش، کوه سفيد يا کوه خواجه
- فرا (فراه) ۲

## د زرنج تخريب:

که چېرته د افغانستان د لرغوني تاريخ په اوږدو کې د آسيا د دې سيمې پس منظر ته وکتل شي، نو په يقين سره ليدل کيږي چې د دې هيواد په گام گام کې د نړۍ له عجايبو ډك عظمتونه او بې ساری شهکارونو ارزښتونه د خونخوارو فاتحانو او وحشي يرغلگرانو له خوا د دې خاورې کم اصلو خپل هېواد او خلکو ته خاينو عناصرو په بې شرمانه کومك هغه ټول د خاورو سره خاورې شوي دي او اوس د هغوی له منځه يوازې حيرانونکي خرابې او تاريخي روايات او توصيفي عبارات پاتې دي. چې يو د دې جملې ځايونو څخه د زرنج ښار دي.

د زرنج ښار څو پيړۍ په زښته زيات رونق، برم. آبادۍ، سنره و اوسيده او په ظاهره سره د ۶۱۹ هجري (۱۲۲۲) ميلادي کال د مغولو د فتنواو قساوتونو او د چنگيزي لښکرو له خوا د زيانونو سره مخامخ شو او بيا څه چې ترې سالم پاتې وو په ۷۶۴ هجري/۱۳۶۳ ميلادي د گوډ تيمور له خوا د هغه د پښې د ماتيدلو د کسات اخيستلو په قهر او غضب سره د آسيا د غلي انبار د هغه آبادۍ او حاصلخيزې ځمکې

---

۱ سيستان سرزمين ماسه ها و حماسه ها، ج۲، ص ۲۶۱

۲ پورتنی اثر، ص ۲۶۲.

او بندونه له يو سره د خاورو په کنډوالو بدل کړل. يعني ګوډ تيمور چې په همدې سيستان کې د سيستان دهقانانو ته ورته لښکر د مشر ملك (ممقتو) د غشي په واسطه ګوډ شو. د سيستان د بې ساري هستيو سره يې داسې معامله وکړه چې بيا يې د آبادۍ مخ و نه ليده او په نتيجه کې د افغانستان دا ډېره زياته آباده او له برمه ډکه سيمه په ريګزارو او کنډوالو بدله شوه.[1]

شاهرخ د تيمور زوی او د هغه جانشين سره د دې چې د هېواد لوړتيا او سمسورتيا سره يې مينه درلوده او غوښتل يې چې د پلار هر اړخيز مظالم او خرابکاری جبران کي بيا يې هم د پلار غوندی د سيستان لا محوه کولو ته بدی ووهلي او د سيستان شاهرګ (د رستم بند) يې وران کړ.

هو کې! زرنج هماغه ښار چې يو وخت د سيستان د پاچاهانو پلازمينه او د حکمرانانو کرسي وه. هغه زرنج چې يوه ورځ د خلافت د مقر د بغداد سره يې سيالي کوله او په شرق کې د آسيا د ډېرو ګڼ نفوسو ښارونو څخه و او د (البشاري) په قول د (عجايب البلاد عجم) څخه شمېرل کېده د دوو تنو آسيايي خونخوارو فاتحانو (چنګيز او تيمور) او دروانو ريګونو د هجوم له کبله چې د رستم د بند د ورانولو په نتيجه کې يوه هسې منظره ځانته نيولي وه چې د هغو په ليدلو ورته د انسان زړه راتله.

ګوډ تيمور او د ده جانشين شاهرخ د هيرمند د بندونو په ورانولو سره د سيستان شريانونه پرې کړل او د نيمروز (مدينة العذرا) يې د خپلې مور (هيرمند) په سپينو وينو کې ډوبه کړه او ويې وژله...

او د زرنج د مړينې په نتيجه کې نيمروز هم مړ شو او د ژوندانه د ارګ د کلا د غول پيکرو کنګرو شاوخوا کې ژوند هم چوپ شو.[2]

د نيمروز يو معاصر شاعر د زرنج د کنډوالو په ليدلو سره زيات متحسس شوي او د خپل تراژيدي احساس انځور يې په يوه مخمس کې ايستلي دي چې يوازې د هغه په لومړۍ برخه بسنه کيږي:

الهی عظمت دوران من کو؟
شکوه ارګ عاليشان من کو؟
جلال و عظمت شاهان من کو؟
بدل پروردم آن مردان من کو؟
ګرفتي يارب از من، جان من کو؟

## د زرنج نوی ښار:

د زرنج د نوي ښار نقشه د لرغوني زرنج د کنډوالو د جنوب په لس کيلو مترۍ کې د نيمروز د ولايت د

---

[1] پورتني اثر، ص ۲۱۷
[2] پورتني اثر، ۲۱۹ مخ

مرکز په توګه په ۱۳۴۴ شمسي د (جبرو کې په نوم بلوچي اصطلاح ده) سیمه کې طرح شوه او هلته دولتي عمارتونه، هوتل، کاروانسرایونه، بازارونه، حمام، جوماتْ، د ښوونځیو ځایونه، پارك، او په شمال کې یې هوایي ډګر په نظر کې ونیول شو او د ۱۳۵۸ کال د احصایې له مخې یې تقریباً اوه میلیونه نفوس درلود.۱



۲ پورتني اثر، ۲۲۰ مخ



# ۸- کاپيسا- بګرام

**(د هندوکش د لارو ور)**

کاپيسا-بګرام دوه داسې مفاهيم دي چې يو محل معرفي کوي، هر کله چې د کاپيسا څخه يادونه کيږي دواړه د سړي سترګو ته بګرام ودريږي او کله چې د بګرام څخه يادونه وشي، د کاپيسا د ساحې ماحول را د مخه کيږي. د دې دواړو نومونو تر منځه ډېر کم توپير شته دی، يو يې دا دی چې بګرام دوه محله معرفي کوي يعنې يو بګرام په پيښور کې هم شته دي، خو کاپسا کاپيسي بل محل ته انتساب نه لري.

بله موضوع چې کاپيسا او بګرام يو د بله مشخص کوي هغه دا ده چې د بګرام شاهي ښار د کاپيسې مرکز ښودلی شوی دی او دا ځکه چې په تاريخي اسنادو کې د کاپيسا د مملکت څخه يادونه شوې او بګرام د مملکت په نوم نه دی ياد شوی.

بل ټکی چې د کاپيسا او بګرام تر منځه تفاوت برجسته کوي هغه دا دي چې نننی بګرام د لرغوني کپيسا (کاپيسا) پر ځای موقعيت لري، په هر صورت د بګرام او کاپيسا (ښه پيژندنه به په راتلونکو بحثونو کې وشي او دلته همدا لنډه يادونه کافي ګڼل کيږي.

## د کاپیسا، بګرام حدود او موقعیت

د کابل په شمال کې یوه پراخه او سمسوره جلګه چې پر زراعتي او باغي ځمکو شخه مشتمله ده او دوه ضلعي یې د لویدیز له خوانه د پغمان غرونو او د شمال له خوا نه د پنجشیر غرونو احاطه کړې ده او دوه نورې ضلعې یې یو شمېر ګډوډ غرګوټو او غرونو چې مهم یې د صافي د غرونو ځانګې دي او تور رنګ لري رانیولې ده.

دا پراخه او سمسوره جلګه معمولاً په دوو نومونو یادیږي:

### - کوهدامن او کوهستان:

د دې دواړو سیمو تر منځه بیلونکي حد په مشترك ډول څلور خروشانه سیندونه لکه غوربند سالنګ، شتل او پنجشیر دي، چې دا څلور واړه سیندونه د دې سیمې له منځه تیریږي. هغه سیمې چې د دې رود خانو شمال یعنې په کیڼې غاړو کې موقعیت لري کوهستان او هغه چې په ښي خوا کې یا جنوبي غاړو کې پراخه پرته ده د کوهدامن، علاقه تشکیلوي دا ارت ډنډ لکه چې نن سرسبز، حاصلخیز او له نفوسه ډك دی په پخوانیو زمانو کې هم آباد، حاصلخیرز او له نفوس څخه ډك ؤ، خرابې، معبدونه او استوپې د تاریخي منابعو د شهادت سره په ګډه مدلل کوي چې د کوهدامن، کوهستان سیمه یوه ودانه او له نفوسو ډکه سیمه او هلته یو شمېر له برمه ډك ښارونه، کلي کلاګانې او معبدونه موجود وو.

د کوهدامن، کوهستان په ټولې پراخې جلګې کې چې کومې خرابې د ښار په خرابو شهادت ورکوي یو یې بګرام دي. ١

د کاپیسا د ښار اوږدوالي سل کیلو متره او سور یې ٥٠ کیلو متره ؤ.

د دې پراخې او سمسورې سیمې په منځ کې چې ګرد چاپیر ترې غرونه راتاو دي پخوا یو ښار موجود ؤ چې کاپسې (کاپیسا) یې ورته وایه.

په ترتیب سره د غوربند، شتل او بیا سالنګ او پنجشیر رودونه یو ځای کیږي او جریان پیدا کوي تر څو چې په یوه نقطه کې دا دواړه لوی ښاخونه سره ګډیږي او د همدې نقطې په مقابل کې یو شمېر خرابې پرتې دي چې نن ورته بګرام وایي او په پخوانیو زمانو کې یې په (کاپیسې) شهرت درلود. د تاریخي منابعو په استناد په ډېرو لیرو پخوانیو زمانو کې لکه د هخامنشیانو د دورې په لومړنیو کې او د سیروس په زمانه کې (٥ ق. میلادي) کې او حتی تر دې څخه ډېر پخوا دلته یوه پخه کلا او یا مستحکم حصار موجود ؤ چې اوسیدونکو یې د هخامنشي سیروس په مقابل کې مقاومت کړې ؤ فرانسوي پوهان له موسیو فوشه څخه نیولې تر موسیو هاکن پورې داسې ګومان کوي چې د بګرام د ودانیو پخوانی

١ کهزاد، افغانستان در پرتو تاریخ، ١٣۴۶، ص١۶٠

نقطه او د اوسنۍ آبادي هسته د عبدالله برج څخه عبارت ده چې د هغې کنډوالې د یوې لويې دايرې په شکل د پنجشير له سيند څخه د ۲۰ مترو په لوړوالي چې د دې سيند سره متصلې پرتې دي او بيا د ژوندانه د غوښتنو له مخې يې ارتفاع تقريباً ۵۰۰ مترو ته ور پورته شوه د بګرام د دښت په جنوبي څنډه کې د کاپيسې د ښار بنسټ کيښودل شو.

هغه خرابې چې نن ورځ د بګرام د ښار په نوم ليدل کيږي دوه نيم کيلو متره ساحه رانيسي او درو خواوو غرب، شرق او جنوب ته يې د يوه لوی ديوال آثار او شواهد ليدل کيږي چې د وخت په تيريدلو سره او د جوي حالاتو له امله اوس د يوې نرۍ او اوږدې تپې په شکل اوښتي دي او د کرنې ځمکې د آبادولو له امله يې آثار نه دي پاتې شوي موسيو هاکن د فرانسوي کيندنو د هيئت متوفی رئيس دا خرابې «د بګرام نوي شاهي ښار» بللي دي او دا هماغه ښار دي چې چينايي زاير هيوان تسنګ په ۶۳۲ ميلادي هغه د کاپيسې په نوم ياد کړي دي. ۱

آريانا دايرة المعارف د کاپيسا يعنې نننی بګرام حدود او موقعيت داسې تثبيت کړي دي، نننی بګرام د پخواني ښار په موقعيت کې دي.

د دې ښار د جوړېدو او پراختيا علت دا ؤ چې د يونانو باختري پاچاهانو د واکمنۍ ساحه جنوب او ختيز ته وغزيدله، بګرام د کاپيسا ښار د کابل په ۶۰ کيلو مترۍ کې پروت دي چې حدود يې په لاندني ډول دي:

- شمال خواته يې: د پنجشير رودخانه، کوه بچه، کوه پهلوان او کوهستان دي.
- لمر خاته يې: د باريکاب خاورينې غونډۍ چې په هغو کې د بودايانو ډيرې سمڅې کيندلې شوي دي.
- جنوب ته يې: د شيسي د غرونو ليکه ده چې د کابل د ناوې او کوهدامن تر منځه پرته ده.
- لمر لويدو ته يې: متفرقې کلاوې پرتې دي.

د کوه پهلوان په اوږدو کې د پنجشير د رودخانې د جنوب په دوو کيلو مترۍ کې د بګرام شاهي ښار موقعيت لري. ۲

## په تاريخي منابعو کې د کاپيسا - بګرام تسميه او نومونه:

۱ - کاپيسا:

چينايي زايرينو کاپيسا د «کي پيس»، کي - پيش»، «کي پن» په نامه او د يونان او روم جغرافيه ليکونکو د «کيپسا» په نامه ياد کړي دي.

---

۱ افغانستان در پرتو تاريخ، ص۱۷۱
۲ آريانا دايره المعارف، ټ۷، ۷۸۰ مخ

همدا شان په ځينو تاريخي آثارو کې کاپيسا د (کاپيسي) په نوم هم ياد شوي دي. لکه چې هيوان تسنګ (۶۳۲) دا ښار د کاپيسي په نوم ياد کړي دي.

۲- بګرام:

د بګرام ښار ځينو پوهانو (ويګرام) بللي چې (ګرام) په سانسکريت کې ښار ته وايي او د (وي) توری د تعريف او تفصيلي توصيفي توری دی او هغه ته افضليت ورکوي يعنې ويګرام (د بګرام) مهم ښار او مهم پايتخت کېږي.

ځينو مؤرخانو د بګرام ښار د خانانو او نجيبانو ښار، د خدای بڼ او د راهبانو کلي او نجيب کلي بللي دي. ۱

## د کاپيسا د ښار تاسيس او علت يې:

لکه چې د مخه يادونه وشوه (افغانستان در پرتو تاريخ) کې ويل شوي دي چې د هخامنشي سيروس په زمانه يعنې د هخامنشيانو د دورې په لومړيو کې (۵ ق. ميلادي) او حتی تر دې د مخه پخوا د بګرام په سيمه کې يوه پخه کلا او يا مستحکم ښار موجود ؤ چې اوسيدونکو يې د نوموړي سيرويس په مقال کې مقاومت کړی ؤ.

مګر د موسيو ګرشمن د عملي څيړنو له مخې څرګنده شوې ده چې د کاپيسي د ښار بنسټ د يونان باختري د سلطنت د عروج په دوره کې تر ميلاده دوه پيړۍ د مخه لومړۍ نيمايي کې ايښودل شوي دي او چې د هغوی له خوا د بکترا (بلخ) چې د هندوکش په شمال کې د سلطنت مرکز ؤ د سند د رود د ماورا برخو کې فتوحات وشول، نو يې د هندوکش د غرونو د سلسلو په جنوبي لمنو کې د يوه لوی ښار جوړولو ته يې ضرورت درلود، او دا کاپيسې د دې منځنی نقطې څخه د اجتماعي او سوق الجيشي له پلوه زښته زياته مناسبهٔ نقطه وه په نتيجه کې د دې سمسوري حوزې د رودخانې د مجرا په غاړه کې تر ميلاده دوه پيړۍ د مخه نيمايي کې د دې ښار تاداؤ کيښودل شو او نوی شاهي ښار رامنځ ته شو.

ښايي وويل شي چې لرغوني ښارونه زياتره د مستحکمو کلاګانو په شکل جوړيدل او د کاپيسې د ښار خرابې چې دوه نيمه کيلو متره احاطه لري او داسې ښيي چې د هغه وخت په مقتضی دايوارت ښار ؤ او د دې سره يې په اطراف کې، حصار، خندق او يو شمېر برجونو درلودل. د کاپيسا د حضار ديوال په خپله ښکتنۍ برخه کې د بر پلن ؤ او پسور يې له ۲۰ مترو څخه تيری کاوه.

د ښار په څلورو کونجونو کې او د هغه د دروازو تر څنګه پنډ برجونه موجود وو. او نورو ديوالونو يې حد په حد برامده ګۍ درلودلې، په داسې ترکيب سره چې د ښار د خندق غاړو ته د دښمن ور نژدې

---

۱ آريانا مجله، لومړۍ ګڼه، ۱۳۲۳، ۲۶ مخ

کیدل آسان کار نهٔ ۱

په یوه بل روایت سره د کاپیسا –بګرام د مستحکمې کلا بنسټ اینبودونکي مقدوني سکندر ښودل شوي دي.

## د کاپیسې –بګرام د ښار په ساختماني پلان کې د محلي او یوناني ښارونو جوړولو اساسات:

د تاریخ د متونونو په شهادت کاپیسا –بګرام په (۵ ق. میلادي او ۶ ق. میلادي) پیریو کې د سیرویس او داریوش هخامنشي د فتوحاتو په اثر وران شوي او ودان شوي دي.

د دې مستحکمې کلا بنسټ په عبدالله برج کې مقدوني سکندر اینبودلي او که داسې نه وي یونانو باختریان د دې ښار تاداو اینبودونکي به وي، مګر د لرغوني پېژندنې د مشاهداتو هغه حقایقو چې د بګرام په باب دي څرګنده کړه چې د دې ښار تاداؤ د دوهمې میلادي پیړۍ د مخه زمانو کې د یونانیانو له خوا اینبودل شوي دي.

د بګرام د ښار د خرابو کتنې د ښار جوړولو له نظره یوه ډېره په زړه پورې موضوع ده او دا کار پرته له کیندنو ممکن نه دي، مګر خوشبختانه دا کار په هغو کیندنو کې چې د دوهم نړیوال جنګ په کلونو کې فرانسوي لرغون پېژندونکي موسیو ګیر شیرمن له خوا تر سره شوي داسې نتیجې یې رامنځ ته کړي چې د هغو په رڼا کې د بګرام د ښار جوړولو پلان او تدافعي سیستم راڅرګند شو او داسې ښکاري چې د دې ښار ساختماني پلان د یوناني ښارونو په کلاسیك اساس ولاړ دی او د هغه په دفاعي سیستم کې د محلي اساساتو څخه کار اخیستل شوی دی. د نوموړي عالم د مطالعاتو په اساس د کاپیسې ښار په خپلو عمومي خطوطو کې د یوناني ښارونو په اصولو د (هیپودام) یعنې په مربع شکل جوړ شوي وو چې له یو بازو څخه بل بازو ته یوه جاده پرته وه او د ښار لویې برخې د جادې دواړو خواووته اچول شوي وي، نو په دې ترتیب (د کاپیسې –بګرام) ښار د پلان له مخې د (دیورا- او روپس) د ښار سره بشپړه ورته والي درلود او دا یو یوناني ښار ؤ او د هغه کنډوالي د امریکا د (یال) پوهنتون پوهانو په عربي آسیا کې کشف کړي ؤ. د بګرام او (دیورا) د ښارونو تر منځه د ښار جوړونې له نظره د یوناني سبك په اساس زیات ورته والي موجود دي.

موسیو ګیر شیمن د دې شباهت ځینې خواوې داسې څرګندوي:

- په دواړو ښارونو کې پوځي مرکز د رودخانې پر مجرا حاکمیت لري.
- په دواړو ښارونو کې د ښار اساسي دروازه او یا لوی مدخل په جنوبي بازو او مخ یې د جلګې

---

۱ افغانستان در پرتو تاریخ، ۱۷۳ مخ

خواته دي.

- د ښار اساسي جاده له دې يوې دروازې څخه پيل او په رودخانې پای ته رسيږي.

په دې کې شك نشته دي چې زياتره دا ورته والي د دې دوارو ښارونو د مشابه اراضي وضعې رامنځ ته کړي، خو د موسيو ګيرشمن په نظر د دې دوارو ښارونو جوړونکي د يوناني ښار جوړولو له اصولو خبرتيا درلودله او د دوارو ښارونو بنايي د يوناني ښار جوړولو په موازينو ايښودلې ده څه رنګه چې دا موضوع د (ديورا) د ښار په مورد کې ثابته ده نو کوم دليل نشته چې د کاپيسا -بګرام په مورد کې هم اصالت و نه لرلای شي.

بايد وويل شي چې د بګرام د ښار په تدافعي اصولو کې له ايراني نظرياتو څخه چې محلي رنګ يې ځانته نيولي دي هم استفاده شوې ده. مګر په يوناني ښار کې بيا داسې نه دي شوي.

د کاپيسا- ګرام د ښار د جنوبي بازو لوی ديوال د هغه سره نژدې برجونه په تېره بيا پنډ برجونه چې د ښار په کونجونو کې موجود دي د محلي تدافعي مفکورو څخه نماينده ګي کوي چې لرغوني سوابق لري. او په مغرب زمين جهان کې له هغې، چا آګاهي نه درلودله.

نوموړي فرانسوي عالم د خپل نظرياتو د ثبوت د پاره د لوستونکو پام د خوارزم سيموته راګرزوي چې د آمو دريا د ښکتنۍ مجرا په ښي غاړه کې پراخې شوي دي. او د يو وخت د پاره د يونانيانو باختري پاچاهانو تر تسلط لاندې وي، بې له شکه اوسني لرغون پيژندونکي تولستف چې په خوارزم کې يې پراخې کيندنې او څيړنې تر سره کړي دي او څه رنګه چې ريګونه د شمال د الوتلو په وجه د وخت په تيريدلو سره رامخې ته شوي او زياتره پخوانی ښارونه يې د خپلې خيټې لاندې کړي دي نو چې هر څومره د ښارونو کنډوالې د آمو دريا د مجرا څخه ليرې پرتې دي هغومره زيات لرغونتوب لري او هر څومره چې ورته نژدې وي زيات نوي والي لري او دا مفکوره د لرغون پيژندنې تحقيقاتو ثابته کړې ده.

د پروفيسور تولستف له کتنو څخه څرګنده ده په ښارونو کې چې کومې کلاګانې تر ميلاده يوه پيړۍ د مخه جوړې شوي دي د هغو د ديوالونو په اوږدو کې برجونه نشته دي او په ديوالونو کې يې تير کشونه يو بل ته ډېر نژدې ايستل کشوي دي. چې د جانباز کلا يې ډېره ښه نمونه ده.

د جانباز کلا د سرايخواجه د شمال په پنځه کيلو مترۍ کې پرته ده.

وروسته خو په همدې دوره کې په داسې حال کې چې ديوالونه تير کشونه لري مربع شکل برجونه د ۱۸ – ۲۶ مترو په مسافه ښکاري او د مربع او مستطيل شکلو کلاګانو پرته مدوري کلاګانې هم څرګندې شوي دي.

د ديوالونو په اوږدو کې د برجونو فاصله د خوارزم او د بګرام د کلاګانو تر منځه ورته والي رامنځ ته کړي دي د بګرام د ښار د ديوالونو او حصار د برجونو آثار د موسيو ګير شمين د کيندنو په نتيجه کې

راښکاره شول، د ښار د حصار اوږدوالي ۶۰۰ متره او پسور یې د ۴۵۰ مترو په شاوخوا کې دي د ښار د پنډ حصار بقایاوې د شرق، غرب او جنوب په ضلعو کې معلومې او د برجونو شمېر یې هم د څېړنو په نتیجه کې راښکاره شو. په شمالي جناح کې ښار د ملایم مخ ځوړي سره د پنجشیر د رودخانې د مجرا په طرف متمایل کېده او طبعاً په دغه برخه کې یې هم دیوال درلود چې هغه د کرنې او ځمکو د جوړولو په وجه هوار شوی وو.

د ښار دیوال په خپل اوږدوالي او پسور کې پیش بر آمده ګي درلودلې چې دا کار د تعبیې له پلوه ښار ته استحکام ورکوي، د ښار جنوب غربي زاویه سخته محکمه وه ځکه چې هلته د یو لوی برج (شاه برج) بقایاوې پیدا شوي دي، چې یو ازې په لویدیزه ضلعه کې ۵۰ متره اوږدوالي لري. حال دا چې د شمال غربي کونج برج په څو ځلي له هغه کوچنی دي او یوازې ۶۰ر۱۶ متره اوږدوالي او ۹۰۰ر۸ متره پسور لري.

د ښار عمومي لویه دروازه د جنوبي بازو د دیوال په منځ کې مخ په جنوب د کوهدامن د جلګې خواته ایستل شوې ده، له دې دروازې څخه یوه کوڅه د ښار له منځه تیریده او شمالي ضلعې ته عبدالله برج ته نژدې د رودخانې په غاړه ختمیږي. او له همدې نقطې د ښار او سیدونکو اوبه اخیستلی نو ځکه هغه څرګندونې چې په تاریخي نظریاتو او د لرغون پیژندنو په څېړنو او د لویدیزې آسیا او خوارزم د پخوانیو کلاګانو او ښارونو په مقایسه مستندې بیان شوې، «د کاپیسا . بګرام» ښار د پلان له مخې د یوناني ښارونو سره زیات توافق لري، خو استحکام یې په محلي مفکورو بنا ؤ، دا نظریه چې د یوناني ښار جوړولو اصول د بګرام د ښار په ساختماني پلان کې وکتل شي، په دې کې دا ټکي د زیات اهمیت وړ دي، چې سترو کوشانیانو د یونانیانو ځای نیولی و او د ښار د پلان په اساسي برخو کې یې کوم څرګند تغییرات رامنځ ته نه کړل او پخوانی بیلګې یې په کې وساتلي او دا مفکوره لرغون پیژندنه هم تاییدوي. ۱

هغه کیندنې چې د ښار د برجونو او حصار د ساختمان په ارتباط تر سره شوې. د حصار د دیوال اوږدوالي ۲۷۶ متره او پسور یې په ځینو برخو کې ۱۱ متره ؤ. دا پنډ دیوال په داسې حال کې چې مستقیم دي، وروسته له هغې فاصلې لس متره مخکې د څو مترو په اوږدو الي او سور، برامده ګی لري، په دې توګه د ښار ساتونکي د هغو تیرکشونو څخه چې د دیوال په اوږدو کې تعبیه شوي د دیوال تولې زاویې لیدلای شي او دښمن د دیوال بیخ ته په هیڅ ډول د ښار د ساتونکو د غشو ویشتلو څخه ځان پټولای نه شي.

د دیوال په څلورو کونجو کې د حصار د اضلاعو د تقاطع له مخې او د ښار هغه حصار د دوو ضلعو

۱ افغانستان در پرتو تاریخ، ۸۰ - ۸۲ مخونه

برآمده ګۍ يو داسې شکل پيدا کړو چې د خرابو او د خاورو د تراکم له مخې هلته د برجونو په موجوديت حکم کوي خو معلومه شوه چې نوموړي ښار په خپلو څلورو کونجونو کې برجونه درلودل د کاپيسې د ښار حصار چې د وخت په تيريدلو سره سوليدلي او خوړل شوي ؤ د ۷ - ۸ مترو په شاوخوا کې تخمينوي. د دې ديوالونو يوه برخه لا تيرو ده او نورې يې د اومو خښتو څخه جوړ شوي دي. لکه څنګه چې د ښار د جنوبي بازو د باندنۍ ځمکې د شکل له مخې څرګنديږي احتمال لري چې ښار دوهم حصار هم درلود.

تر اوسه پورې په مجموعي ډول تقريباً ۵/۱ برخه د کاپيسې د ښار د حصار د داخلي محوطې سطح کيندل شوې ده. د راهبانو د اوسيدلو له مخې بودايي معبدونه او مذهبي تاسيسات ټول د ښار د حصار د باندې پراته وو او له دې جملې نه ډيرې مشهورې يې د پهلوان د غره په لمنو کې چې ډېره نژدې ګوښه يې د ښار له حصاره دوه کيلو متره مسافه لري ودان شوي دي. دا معلومه نه ده چې په کوشاني عصر کې بالخاصه د ستر کنيشکا د سلطنت په دوره کې دې عبادت ځايونه په څه نومونه شهرت درلود.[1]

## کاپيسې - با ګرام د مؤرخانو په آثارو کې:

لومړنی شخص چې د کاپيسا څخه يې يادونه کړې ده د سانسکريت د علم د صرف و نحو عالم، (پاني نی) دی چې تر ميلاده څلور پيړۍ د مخه ننی اټک ته نژدې د پيښور په شاوخوا کې يې، ژوند کاوه، دا شخص د (يوناني مؤرخانو پلار) هيرودت معاصر ؤ.

لکه چې فرانسوي لرغون پيژندونکي موسيو الفرد فوشه وايي، له (پاني نی) څخه تر هيوان تسنګ پورې يعنې (۴ ق. ميلادي) نه تر اومې مسيحي پيړۍ پورې يعنې د اسلامي دورې د پيل څخه زر کاله د مخه وختونو کې له کاپيسې څخه يادونه شوې ده او دا نوم د هندوکش په جنوب کې د يوناني پاچاهانو په مسکوکاتو کې وهل شوي او وروستنی شخص چې د پخوانيو مؤرخانو په سلسله کې له دې نومه يادونه کړې هغه البيروني دي.

يا په بل عبارت د اسلامي دورې لومړنی مؤرخ چې د کاپيسا په کلمه کې د دې پخوانی نوم څخه يادونې کوي او نور پاتې عربي جغرافيه ليکونکي او مؤرخان له دې نوم څخه خبرتيانه لري او د هغوی په ليکنو کې د کاپيسې پر ځای له کابله بحث شوي دي.

زموږ په خاوره کې د مقدوني سکندر د راتلو څخه د مخه کاپيسې هلته چې د بګرام خرابې پرتې دي د ښجشير د سيند مسير ته نژدې موقعيت درلود، لکه چې په ځينو مؤخذونو کې د هخامنشي سيروس (۶ ق. ميلادي) پر ضد د دې ښار د خلکو د مقاومت څخه يادونه شوې ده[2] او د مخه

---

۱ تاريخ افغانستان، ټ۲، ۲۳۴، ۲۴۰ مخ

۲ افغانستان در پرتو تاريخ، ص ۱۷۰ - ۱۷۱

پرې لنډوکي بحث وشو.

د چين پخوانيو مؤلفينو (کاپيساش يا د اوسني کوهدامن جلګه د کپاپيس) يا د (کي بن) په نامه ياده کړې ده.

هغه وخت چې چيني ګرځندوی هيوان تسنګ په ۶۳۱ ميلادي له بلخه د هند په تکل کاپيسا ته راغلی ؤ، هغه وايي چې کاپيسا د شمال له خوا د هندوکش په واورو پټو غرونو تکيه کړې او پر دريو نورو برخو يې د ذوذنقه په شکل تور غرونه راتاو شوي دي، چې په دوئ کې يې واورې نه پايي او ويلې کيږي.

موسيو فوشه هم د چيني ګرځندوی د تشريحاتو تصديق کړي دي چې دکاپيسا جلګه ۶۰ کيلو متره شمالاً جنوباً او ۲۰ کيلو متره شرقاً او غرباً پرته ده، که څو کوچني ډنډونه او غديرونه پکې موجود واې نو کټ مټ به کشمير ته ورته ؤ.

کاپيسا د خپل جغرافيوي موقعيت په واسطه د هند او باکتريان (باختر) تر منځه لوی مذهبي او تجارتي معبر او (د هندوکش د لارو ور) دي لکه چې د چاريکارو کوچني بازار نسبتاً ډېر مهيج او د هندوکش په جنوبي لمنه کې کوچنی تجارتي مرکز بلل کيږي.

تر اسلام د مخه هغه وخت چې بلخ (د روم، چين او ساساني) امپراطوری د بين المللي تجارتي مرکز ؤ د اندوس (نکافن) او د کابل د حوزې ټوله مال التجاره کاپيسا ته راتله او په هغه وخت کې کاپيسا د تجارت له نقطه نظره لوړ مقام درلود. لکه چې هيوان تسنګ د دې مدعا ښه شاهد دي په کاپيسا کې هر ډول مال التجاره ډېره پيدا کېده او د کرنې حاصلات يې هم ډېر زيات وو. ۱

## کاپيسې د سلطنت (امپراطورۍ) او يا پلازمينې په توګه:

په تاريخ کې کاپيسا نه يوازې د يوه سوق الجيشي سيمې، نقطې او تجارتي لوی مرکز او ستر معبر او يا د يوه ډېر لوی مذهبي کانون په توګه ګڼل شوي دي بلکې د دې تر څنګه د دې ښار د عروج په دوره کې هغه نه يوازې د يوه شاهي پايتخت بلکې د يوه سلطنت په نوم هم ياد شوي دي.

هيوان تسنګ چيني زاير په ۶۳۲ ميلادي کله چې کاپيسې ته راغی دا وخت د دې لوی سيمې پاچا (کشاتريه) يعنې د نجيبانو د طبقې څخه ؤ، او تقريباً امارتونه د ده تر اداري لاندې وو. د نوموړي زاير د يادداشتونو له متنه ځينې سيمـــې چې د کاپيسا د سلطنت پورې مربوطې وې داسې معرفي شوي دي.

### ۱- لان پو (لغمان):

شاهي کورنۍ يې له منځه تللي وه، بالاخره د کورنۍ د بې اتفاقۍ او بې تفاوتۍ له امله د کاپيسا

۱ آريانا دايره المعارف، ټ ۷، ۷۸۱ مخ

باجگزاره شوه.

## ۲- نګاراهارا (ننګرهار):

مستقله حکمراني يې نه درلوده او حکمرانان يې له کاپيسا څخه مقرريدل.

## ۳- ګنداهارا (د ښکتني کابل سيمه تر تکسيلا پورې):

چې دلته شاهي کورنۍ له منځه تللي وه او سلطنت يې د کاپيسا د نماينده ګانو له خوا اداره کېده.

## ۴- تاشاسيلو (تاکسيلا):

له ډېر پخوا نه دا سيمه د کاپيسا د سلطنت تابع وه، خو بيا وروسته د کشمير باجگزاره شوه. ۱

دې سلطنت تر دې وروسته لا پراختيا وموندله او محيط يې تقريباً ۴۰۰ لي ته ورسيدله شماله له واورو په پټو غرونو او د نورو درو په استقامت او نورو غرونو محاط شو.

پخپله د پايتخت محيط ۱۰ لي شو. ۲

د کاپيسا ښار د پلازمينې په توګه هغه وخت منځ ته راغی چې د ستراتيژيکي، اداري او تجارتي موقعيت له مخې يې خاص اهميت پيدا کړ لکه چې ويل کيږي د کاپيسا ښار تر يوه وخته پورې د يوه ښار په توګه او بيا وروسته د يوناني پاچاهانو د مرکز او د پلازمينې په حيث شهرت وموند. ۳

## کاپيسا - بګرام د کوشانيانو په دوره کې:

تاريخي اسناد ښيي چې زموږ په هېواد کې د کوشانيانو د واکمنۍ په راتلو سره ورو ورو د يونانيانو د واکمنۍ ساحه تنګيدله. لکه وروسته له هغې چې کوشانيانو د يونانيانو ځای ونيو، دا وه چې يونانيان په جبري ډول د هندوکش په جنوبي سيمو کې محدود شول، تر څو چې د (۵۰ ق. ميلادي) په شاوخوا کې کوشانشاهانو د هندوکش جنوبي برخوته هم راخپاره شول او په کابل کې د يونانيانو وروستنی پاچا (هرپالوس) خپل ځای کوشاني پاچا (ويماکدفيزس) ته ور پريښود او له دې تاريخ وروسته کاپيس د کوشانيانو د پايتخت په توګه رامنځ ته شو او مخ په ترقۍ شو. او د لوی کوشان شاه (کنيشکا) په دوره کې د کوشانيانو د پراخې او سترې امپراطورۍ تابستاني پايتخت وپيژندل شو. ۴

کاپيسې چې د کاپيسا مرکز ؤ او نن ورځ په بګرام شهرت لري د خپل عروج او ودانۍ مرحلې يې تيرې کړې دي.

۱ تاريخ افغانستان، ج۲، ص ۵۰۷
۲ پورتنی اثر ص ۱۷۱، ۱۷۳
۳ افغانستان در پرتو تاريخ، ص ۱۷۱
۴ افغانستان در پرتو تاريخ، ص ۱۷۱، ۱۷۳

کاپيسې نه يوازې د افغانستان د مشهورو ښارونو څخه ؤ بلکې په بيلابيلو دورو کې له يونانيانو څخه نيولي تر کوشانيانو پورې د لرغوني افغانستان پلازمينه وه.

## له کاپيسې نه په بګرام شهرت موندل:

د تيرو بحثونو څخه دا نتيجه اخيستل کيږي چې کاپيسا نه يوازې زموږ د هېواد د ستر ښار مفهوم افاده کوي بلکه يو وخت د سلطنت حيثيت يې هم موندلي دي. او کاپيسې بيا د هغه مرکز او پلازمينه معرفي شوي ده خو بيا وروسته په تاريخي منابعو کې له کاپيسې څخه يادونې شوي نه ده او په بګرام يې شهرت پيدا کړې دي په دې باب «افغانستان در پرتو تاريخ» کې داسې معلومات وړاندې شوي دي.

وروسته له هغې چې د يونانو باختري د پاچاهانو سلالې د «ريستي» قومونه تر فشار لاندې د «بکتر» «بلخ» او «باکتريان» «باختر» پريښودلو ته مجبور شول او د هندوکش جنوب ته راښکته شول نو د عبدالله برج تر څنګه چې هلته يوه ودانۍ وه او د جوړيدو نسبت يې مقدوني سکندر ته کيږي په دغه ځاى کې يې د «نوي شاهي ښار» يعنې «بګرام –کاپيسې» د ښار په جوړولو لاس پورې کړ «د بګرام د نوم تسميه خو د مخه ښودل شوي او د شاهي ښار معنا يې درلودله.»

او که موضوع ته يو څه صراحت ورکړ شي د يونانيانو باختري د سلسلې دغه وروستنى پاچا «هيلوکلس» ؤ چې له بلخه يې پلازمينه «مرکز» کاپيسې ته انتقال کړ، دا وه چې د ميلاده د مخه د دوهمې پيړۍ په لومړنيو کې کاپيسې مرکزي او پايتختې حيثيت پيدا کړ.

د يونانو باختري پاچاهانو د يوې نيمې پيړۍ په شاوخوا کې په کاپيسې کې د افغانستان او هند په ډېرو پراخو سيمو سلطنت وکړ. ١

د مسيحي پيړۍ په پيل او يا ترې يو څه موده د مخه ستر کوشانيان لکه يونانيان له باختره د هندوکش جنوبي لمنو ته راښکته شول او په کاپيسا کې يې د باختر د يونانيانو پر ځاى يې واکمنى پيل کړه او د هغو قايمقام شول او د امپراتور کنيشکا د برم او دبدبې په دوره کې پخواني بګرام «کاپيسې» د زيات اهميت درلودونکي شول چې حدود يې د مخه معرفي شول. او د کوشان شاهانو تابستاني پلازمينه وګرزيدله.

تر سترو کوشانشاهانو وروسته بيا هم کاپيسې خپل مرکزي اهميت له لاسه ورکړي نه ؤ لکه چې کوچنيو کوشانيانو «کيداريانو» په وخت کې هم بګرام د پلازمينې مقام درلود. او تر دوى وروسته د يفتلشاهانو يوې څانګې دا ښار بيا هم خپل پايتخت وګرزاوه.

هېوان تسنګ چې دا دوهمې پيړۍ په اوږدو کې يې دا ښار په خپلو سترګو ليدلي دي شهادت ورکوي په ٦٣٢ ميلادي چې د باميانو له لارې د کوهدامن او کوهستان حوزې ته راننوت او نژدې يوه

١ همدغه اثر، ص ١٧٣

میاشت دې ښار ته نژدې و اوسیده. نو د نوموړي د یادداشتونو له مخې سلطنتي کورنۍ په دې وخت کې (کشاتریه) نومیدله چې لغوي مفهوم یې (د جګړه مارو نجباوو) کورنۍ وه او د (کوشانانو یفتلي) له سلالۍ څخه عبارت وه کومه چې د کاپیسا د سوق الجیشي اهمیت له امله له رونقه لویدلي او رتبیل شاهان چې پخپله د پوځي قواوو سپه سالاران هم وو په بالاحصار کې د خپل تقرر سره د کاپیسې د ښار اهمیت یې له پامه غورځولي ؤ. په دې کې شك نشته دي چې د کاپیسا څخه مرکزیت یو دم او ناڅاپه کابل ته نه دي منتقل شوي یعنې لومړنی ښار (کاپیسا) تجارتي او مذهبي مرکزیت او دوهم ښار (کابل) پوځي او سوق الجیشي موقعیت درلود او دې دواړو ښارونو تر یوه وخته پورې د خپل مرکزیت موازنه ساتلې وه. د دې خبرې د اثبات د پاره دا نظریه موجوده ده چې د مخه ترې یادونه وشوه چې دا د کاپیسا په باب د چینایانو او د کابل په باب د عربو یادونې وي، دا وه چې ورو ورو د کاپیسا اهمیت مخ په زوال ؤ او کابل د عربو د حملو د مداومت په جریان کې د مرکزیت غښتلیا موندله.

۷۵۱ او ۷۶۹ میلادي کلونو ته په نژدې وختونو کې چې (وو کونګ) چینایي بل سیاح ګندهارا ته راغې چې دا وخت هم کاپیسا مرکزیت درلود او دا موضوع د موسیو فوشه د نظریې په اساس تر ۱۷۶ هجري ۳ – ۷۹۲ میلادي پورې دوام کړي دي. او دا هغه وخت دي چې ابراهیم بن جبرائیل؟ د برمکي فضل بن یحیی په امر چې د خراسان والي ؤ د غوربند د درې له لارې په کاپیسا حمله وکړه او د دې ښار بودایي مذهبي آبدات یې وران کړل. له دې نیتې وروسته کاپیسا د کوشاني او یفتلي عناصرو څخه تشکیله شوې وه.

هغه وخت چې په ۱۴۴هـ کې هیوان تسنګ له هنده راوګرزېد، لا تر دغه وخته پورې دغې کورنۍ په بګرام کې سلطنت درلود او بګرام خپل پایتختي موقعیت له لاسه نه ؤ ورکړی. ۱

## له کاپیسې څخه کابل ته د مرکزیت انتقال او د کاپیسې په متعلق وروستې پیښې:

د اسلام تر ظهوره پورې کاپیسې بګرام په تاریخي پیښو کې یادیده خو کله چې د اسلامي فتوحاتو لمنه تر کابله راورسیدله نو په پیښور کې د عربي لیکوالو له خوا د کاپیسې په نسبت له کابله زیاته یادونه کیدله.

احمد علي کهزاد په دې باب تفصیلي معلومات وړاندې کړي دي او وایي:

کله چې عربي مبلغین او لښکریان د افغانستان په لویدیزو پولو کې راښکاره شول او بیا د سیستان

---

۱ افغانستان در پرتو تاریخ، ص ۱۷۴، ۱۷۵

ودانو سيمو لكه زرنج، ذالق، كر كويه او نورو برخو ته راورسيدل تر دې وخته پورې هم بگرام خپل مركزيت له لاسه نه ؤ وركړى. خو د دې تر څنگه د كابل موجوده ښار د غرونو او د هغو پر سر باندې ديوال په لرلو سره زياتره د سوق الجيشي له مخې مساعد ؤ نو په مراتبو، سره يې د بگرام اهميت راښكته كړ او ورو ورو ور پسې اداري مركز په تيره بيا د پوځي چارو مركزيت كابل ته را نقل شو. په دې اساس رتبيل شاهان چې عرفاً كوشاني يفتلي وو د كابل د ښار د استحكام او د هغه د غرونو د پاسه د ديوالونو له پلوه چې د يفتليانو په وخت كې جوړ شوي وو د كابل د دې ستراتيژيكي موقعيت څخه د اسې گټه واخستله چې نژدې د كاپيسې نوم له خاطراتو څخه ووهل شو او په ټولو تاريخي آثارو كې دا وخت د كابل او د هغه د دفاع څخه د عربو د حملاتو په مقابل كې يادونې شوي دي، لكه څنگه چې د چينايي سياح يادداشتونه شاهدي وركوي، د مسيحي دوهمې پيړۍ په نيماي كې كاپيسا ته د تگ راتگ لار د عربو د سپاهيانو د حملو پر مخ تړلي نه وه نو له دې كبله د اوومې پيړۍ په دوهمه نيمايي كې او د اتمې پيړۍ په جريان كې چينايي منابعو له كاپيسا څخه او عربي مؤخذونو له كابله بحث كړى دى. او د دې موضوع علت دا دى چې چينايانو د كاپيسا د دولت (كى پن) په ملاتړ دا خبره په خپلو دفترونو كې ثبت او تكرار وله او عربو هغه مقاومت د كابل په ديوالونو او استحكاماتو كې ليده نو زياتره يې له دې ځايه خبرې كولې، حقيقت دا دي چې كاپيسا خپل تاريخ د ژوندانه وروستنى شيبې تيرولي او دا ځكه چې د كاپيسې نوم په تاريخي آثارو كې نه دي ياد شوي او هغه هم يو ځل البيروني په خپل كتاب (مال الهند) كې د كاپيسې په صورت ياد كړي او دا هم يوه كيسه ده چې د پخوا زمانو څخه بحث كوي له دې وخته راهيسې بيا د كابل څخه يادونې كيدل كه څه هم د كابل نوم په عربي ماخذ كې شهرت درلود او رتبيل شاهانو په دې ښار كې حاكميت درلود خو اصلي علت يې لكه چې ولوستل شو د كابل سوق الجيشي اهميت ؤ.

په هر حال قراين په دې دلالت كوي چې د اتمې ميلادي پيړۍ په وروستيو او د نهمې پيړۍ په لومړيو كې د افغانستان مركز په قطعي ډول له كاپيسې څخه كابل ته را نقل شوى ؤ او د كاپيسې ښار تر زرو كلونو وروسته په بشپړه يا كمه توگه خپل موقف كابل ته پريښودلى ؤ او تر دې وروسته هرې منبع او مؤخذ د كاپيسې نوم هېر كړى او د كابل نوم عموميت پيدا كړى ؤ. ١ دا وخت د كاپيسې ښار د سوق الجيشي اهميت د وركولو سره جوخت مذهبي او اداري اهميت هم له لاسه وركړى ؤ او د اسلام د مقدس دين د خپريدلو په وجه زياتې د بودايي مذهب پيروي ته حاجت پاتې نه ؤ. خو بيا هم لكه چې د دې سيمې اهميت وښودله په راوروسته زمانو كې هم كله كله دا سيمه د پام وړ وگرزيدله لكه چې د مغولي همايون پوځي قرارگاه، د امير حبيب الله خان په دوره كې، د مقدوني سكندر د قفقاز د سكندر يې پر ځاى د جبل

١ همدغه اثر ص ١٧٤ - ١٧٥

السراج مانۍ جوړه شوه که څه هم د هغه د پاچاهۍ د مرکزيت حيثيت يې نه درلود خو بيا هم يوه تاريخي سيمه شمېرل کېدله.

«تاريخ افغانستان ج ۲» کې د کاپيسا د اهميت د مخ په زوال پيښې داسې بيان شوي دي:
که څه هم يو څه تکراري شکل لري خو يادول يې بې اهميت نه شمېرل کېږي.

په ۳۲ هجري/ ۶۴۴ ميلادي کې چې هيوان تسنګ د کاپيسا پايتخت ته راورسيد او نوموړي په دغه ښار کې شخصاً د پاچا سره ملاقات وکړ او بيخي کابل ته رانغی او علت يې دا ؤ چې د اسلامي فتوحاتو لمنه مخ په پراخيدو وه.

د سيستان د تاريخ په شهادت عبدالله بن ابي بکره په ۵۱ هجري/ ۶۷۳ ميلادي سيستان ته راغی په بست، رخد او کابل «زنبيل» کې محاربه وکړه او بالاخره يې په دوو زرو درهمه يې د کابل د پاچا سره سوله وکړه.

نو که چېرته د سنې، تاريخ او ماخذ پورې مربوط واقعات وکتل شي د اوومې پيړۍ په دوهمه کې او د اتمې پيړۍ په جريان کې چيني منابعو د کاپيسا د ښار، «لکه چې د مخه هم پرې بحث وشو» عربي او فارسي منابعو له کابله يادونې کړې دي.

تر هيوان تسنګ وروسته وروستنی زاير چې زموږ هېواد ته راغی په همدې وخت کې يې وکولای شو چې د کاپيسا او باختر له لارې هند ته لاړ شي او دوئ يې له دوو تنو څخه عبارت دي يو يې «وانګ هيوان تسو» چې د چين د نماينده ګۍ وظيفه يې په غاړه درلودله او بل يې «هيوان تچاو» ؤ چې د دوهم ځل د پاره يې هند ته د تګ نيت کړی ؤ.

لومړنی شخص په ۶۰۰م – ۶۵۹ ميلادي او دوهم شخص په ۵ – ۶۴۴، کې سفر کړی ؤ دوئ د باختر او کاپيسې د مملکت له لارې تير شو او هند ته لاړل، خو په دې ترڅ کې د عربو د لښکرو حملو ورته موقع ور نه کړه چې هلته راستانه شي ځکه چې د لارې سره د نيپال «تيبتيانو» او کاپيسا «تاشي يانو» يعنې عربو نيولې ؤ او تګ راتګ مشکل شوی ؤ، په نتيجه کې هيوان تچاو په مرزي هند کې پاتې او بيا هلته مړ شو.

د فرشته د ليکنې له مخې چې عربو په ۴۲هجري/ ۶۴۴ ميلادي پر کابل حمله وکړه ممکن يو څه د مخه وي او دا ځکه چې په دې وخت کې هم بودايي سياحانو او د چينايي استازو تګ راتګ د کابل سيمو ته جريان درلود. له بلې خوا نه څه رنګه چې «وانګ هيوان تسو» له نيپاله مراجعت وکړ او هغه کال چې «هيوان تچاو» غوښتل له کاپيسا څخه راستون شي معلوم نه دي خو د سيستان د تاريخ په حواله څرګنده ده چې په ۵۱ هجري/۶۷۳ ميلادي عبدالله ن ابي بکره کال ته راورسيد. نو په دقيق ډول ويل کيدای شي چې له ۶۶۵ ميلادي – ۶۷۳ که څه هم د هېواد په لويديزو سيمو کې د عربو حملې روانې وې

په ۶۷۳ ميلادي عبدالله بن ابي بكره د رتبيل شاه سره سوله وكړه او دا وخت د كابل او كاپيسا سلطنت مضمحل شوی نه ؤ.

په دې كې شك نشته دي چې د پورتني تاريخ وروسته د كاپيسا د پاچاهانو تر منځه لكه چې عربي او فارسي مؤخذونو ښودلې ده. د رتبيل شاهانو او د عربو د راليږل شوو لښكرو تر منځه چې معمولاً د خراسان او سيستان د والي له خوا راليږل كېدل د اموي خلافت په ټوله دوره كې لشكر كشي او جګړې رواني وې رتبيل شاهان او دايان (برهمن شاهان) له زرنج، رخد ځخه نيولې تر كابل او كاپيسا او هر چېرته د جګړې په ميدان كې شخصاً حاضر وو او د كابل سيمې تر دې وخته پورې د هغوئ په لاس كې وې.

لكه چې ليدل كيږي په (۵۷۱ ميلادي) او (۷۶۹ ميلادي) كې بيا بل چينايي زاير چې (وو كونګ) نوميده ګنداهارا ته راغی او تركي نژاده محلي امير سره يې وكتل چې د كاپيسا او كابل پاچاهانو تابع ؤ، نوموړي وروستنی چيني زاير دي چې زموږ ملك ته راغلی دي او تر ده وروسته د اتمي پيړۍ په اوږدو كې هغه سيلانيان چې هند ته راتلل او بيا چين ته ستنيدل د سمندر له لارې يې تګ راتګ درلود.

هغه وروستنۍ حمله چې په كاپيسا وشوه د خراسان د والي فضل بن يحيى په امر د ابراهيم بن جبل (رائيل) له خوا (په تېر روايت كې بن جبرائيل ښودل شوي دي) نوموړي د هارون الرشيد له خوا د خراسان والي مقرر شوی ؤ.

په ۱۷۶ هجري / ۳- ۷۹۲ ميلادي د (غوروند) (غوربند) له لارې د كاپيسا په شمالي برخو حمله وشوه او د يعقوبي د شهادت له مخې په دې حمله كې شاهي ښار (كاپيسي- بګرام) ليږې او نژدې بودايي آبدات بالخاصه لوی او مشهورو معبد (شابهار) يعني شاهي معبد چې چينايي زايرينو (هيوان تسنګ)، (وانګ هيوان تسو) او (وو ونګ) ورته اشاره كړې او يې له شكه هماغه (پخواني پاچاهي معبد) ځخه عبارت دي وران شو.

د موسيو فوشه د نظريې له مخې د عربو د دې سخت ګوزار له كبله چې پر كاپيسا وشو كاپيسا خپل اهميت او مركزيت له لاسه وركړ او شاهي پايتخت له شماله جنوب ته د يوې سلسلې تپو او د غرونو شاته يعني كابل ته منتقل شو.

لكه چې وويل شو چينايي سيلانيان بالخاصه هيوان تسنګ چې پوره يوه مياشت د شالوكيه معبد (د چينايي يرغملو معبد) يعني دا د هغو چيني يرغملو معبد دي چې د چيني سينكيانك د شهزاده ګانو په شمول كنيشكا په چين كې د خپلو فتحو په وخت كې ګرونيولي وو) د كاپيسا په خوا كې اوسيده او د ده يادداشتونه په دېر وخت سره ليكل شوي دي چې له كابل ځخه يې كومه يادونه نه ده كړې، خو د نوموړي او د ده د ملګرو دا چوپتيا د دې دليل كيدای نه شي چې معاصر كابل مخكې يا وروسته د ده د تګ

راتګ له تاریخ څخه خارجي وجود نه درلود ، ځکه چې د بودایي معبدونو بقایاوې په شیوه کی. ساکا، کمري، چکري، ګل دره، حتی د بودایي معبدونو بقایاوې په مرنجان تپه، پنجه شاه، خواجه صفا، خواجه روشنایي، تپه خزانه (د چنداول د هزار قلعه د پاسه) تپه سلام، سخي مینه او علي آباد باندې حکم کوي چې په دې ټولو ساحو کې د غرونو او تپو په پوزو کې بودایي معبدونه، استوپې، شیوایي او هندویي بتکدې او د آفتاب پرستی او برهمنی معبدونه موجود وو.

او حتی د سترو کوشانیانو د سلالې دوهم پاچا (ویماکد فیزس) پورې متعلق مسکوکات کشف د شیوکیو په استوپو کې ښیي، لکه چې د مسیحي دوهمې پړی په نیمایي کې نوموړې استوپه ودانه وه، چې په یو روایت زیاتره یې د یعقوب لیث صفاري له خوا د کابل د بالاحصار تر نیولو وروسته ورانې شوې.

په هر صورت که څه هم دقیق معلومات نشته، بیا هم قراین او پیښې په غیر مستقیم ډول په دې دلالت کوي چې له کاپیسا څخه مرکز شیوایي او بودایي فامیل ته د رایانو او یا هندو پاچاهانو ته انتقال وموند چې په ۷۹۳ میلادي په شاوخوا یعنې د کاپیسا د امپراطورۍ په وروستیو کې صورت موندلې دې او دلته د پوځي ملاحظاتو تر څنګه مذهبي ملاحظات هم موجود وو، ځکه چې د برهمن یانو او هندوانو د پاره د کاپیسا او کابل څخه د لوګر د رود حوزې ته معتبره او مهمه ده.

باید وویل شي چې له کاپیسې څخه کابل ته د مرکز انتقال په یو کرت نه دې شوي او دا ځکه څه وخت چې کاپیسا مرکز ؤ کابل هم موجودیت درلود او کاپیسا هم د کابل د مرکزیت موندلو وروسته هم باقي ؤ لکه چې د اسلامي دورې مسکوکات په کوفي خط هلته پیدا شوي وو، د دې نظریې تاییدونکي دي په هر حال کابل یوه اوږده موده د برهمن شاهي پایتخت نه ؤ، ځکه چې د صفاري کورنۍ د فشار له مخې یو ځل بیا د جنوب د شیواني کابلشاهانو مرکز به (ویهند) یعنې د اټك غاړو ته منتقل شو. ۱

د رایان کابلي یا برهمني کابل شاهانو د سلطنت په لومړیو کې د نیمي پیړۍ څخه زیاته موده کابل پایتخت پاتې ؤ.

## د کوشانیانو په دوره کې د کاپیسې- بګرام مدني عروج او آثار:

د تاریخي اسنادو په حواله کوشانیان په (۱ – ۲) او ۳ مسیحي پیړۍ کې په بګرام کې میشته شوي وو.

په تېره بیا د ستر کنیشکا په دوره کې دا نقطه د هغوئ د امپراطورۍ پسرلنی پلازمینه وه، نو طبعاً په خپل وخت کې له اجتماعي نقطه نظره د زښته زیات اهمیت درلودونکي ؤ. څه رنګه چې د (ګریکو بودیك) صنعت زیاته ترقي درلودله نو په کاپیسا کې زیات شمېر صنعتګران د معبدونو په جوړولو او

۱ تاریخ افغانستان، ج۲، ص ۵۴۰ - ۵۴۸

هيکل تراشۍ بوخت وو که څه هم په بګرام کې د دين آزادي موجوده وه خو کوشانشاهانو د بوديزم سره د خاصې مينې درلودلو له کبله هغه ته زياته ترقي ورکړه تر څو چې بوديزم رسمي شکل او آئين وګرځېد، نو له همدې کبله د کوشانيانو په زمانه کې بالخاصه د ستر کنيشکا په وخت کې په بګرام او د غزني ښکلي حصار په لمنو کې معبدونه او استوپې جوړې شوي دي چې زر تنه عالمان او راهبان هلته اوسيدل د دې آئين نفوذ د اسلامي فتوحاتو له امله له منځه لاړ. کنيشکا د علم دوستی او ديانت پالنې له مخې چې يې درلود د وخت زښته زيات عالمان او پوهان د خپلې امپراطورۍ له شاوخوا څخه پر ځان راټول کړي وو.

هيوان تسنګ چيني نامتو سياح چې کاپيسا ته را رسيدلي او د هغه په باب يې ډېر ښه او زيات ياداښتونه قيد کړي دي.

## بګرام په سياست او تجارت کې هم زيات اهميت درلود.

له نن څخه زيات دوه زره کاله د مخه بګرام يا کپيسا د يوې کنډوالې په توګه پروت دي او هغه کيندنې چې په دې سيمه کې تر سره شوي دي د دې لرغوني ښار له برمه ډک تاريخ ښيي.[1]

د کاپيسې بګرام د ښار د اهميت له پلوه په ۱۹۳۶ – ۱۹۴۱ ميلادي پورې په ترتيب سره د هغه په مختلفو برخو کې د فرانسوي لرغون څېړونکي هيئت له خوا کيندنې وشوې او قيمت بها آثار هلته کشف شول د کوشاني پاچاهانو لکه ويماکد فيزس، کنيشکا، هووليشکا، واسودوا، مسي مسکوکاتو د سترو کوشانيانو واکمنۍ د تمرکز په ټينګښت دلته ۱ – ۳ ميلادي پيړۍ پورې شاهدي ورکوي.

موسيو ګير شمين د هغه کيندنې په اثر چې په ۱۹۴۱ ميلادي په وروستيو او د ۱۹۴۲ ميلادي په اوږدو کې په بګرام کې وکړې او په نتيجه کې زيات مسکوکات کشف شول او په هغه راپور کې چې د کابل موزيم ته وړاندې شو داسې نظريه ورکوي چې د کاپيسې ښار د يونانو باختري د سلطنت د عروج او تعالي په دوره کې د دوهمې ميلادي پيړۍ په لومړنيو کې بنا شوي دي، په دې ترتيب دا ښار د کوشانيانو تر ظهور د مخه تاسيس شوي دي او د کوشاني دولت د تاسيسيدلو سره د خپلې ترقۍ او تکامل پړاوونه يې وهلي او عظمت ته رسيدلي دي.

د ستر کنيشکا په زمانه کې د آريانا د کوشاني امپراطوري دا وړې پلازمينه وه، رنګارنګ منقوش او مصور ښيښې قيمتداره لوښې چې د آسيايي مديترانې د غاړو د ښارونو د ښيښې جوړولو د کارخانو محصول دي، د ملغلرو د اينبودلو د عاج مخصوصې صندوقچې جوړې شوي، (ماتورا) او د چيني ساخت د لوښو بقاياوې چې دا ټول د شاهي عماراتونو د سالونونو د تزئيناتو د پاره ؤ. د بګرام کاپيسې د ښار په مرکزيت دلالت کوي، او څرګنديږي چې د کوشانيانو د امپراطورۍ د دوبنۍ پلازمينې شاهي ماڼۍ ګانې د هغه وخت د دنيا په ډېرو تجملي محصولاتو مجللې شوي وې نو موړې ښيښنه ايز

[1] آريانا مجله، لومړۍ ګڼه. ۲۶۰ مخ

لوښي د هغو بيلونکو لوښو چې درلودل يې په يقيني ډول ثابتوي چې د لومړۍ او څلورمې ميلادي پېړۍ تر منځه کاپيسې مرکزيت درلود.

لکه چې موسيو هاکن څرګندوي د «اګوست» د سلطنت له وروستيو کلونو (۶۳م/۱۴ ميلادي) نه د کونستانتين د سلطنت تر وروستي پورې (۳۲۷ ميلادي) د کوشاني او رومن دولت تر منځه د سوداګرۍ اړيکې ټينګې وې، او د بلې خوا نه دا هم څرګنده ده چې د هند د شمالي برخو او روم تر منځه اړيکې د «اګوست» (۶۳ - ۱۴ ميلادي) تراجان (۱۱۷ -۲۹۸ او هارډين (۱۳۸ - ۱۱۷م) ميلادي) تر منځه زياتې ټينګې شوې دي. او څه رنګه چې د هند شمالي سيمې په دې وخت کې د کوشانيانو د امپراطورۍ يوه برخه وه نو ويلای شو چې کاپيسې او «پوروشاپورا» «پېښور» د کنيشکا د وبنې پايتخت ډېر زيات آباد او د امپراطورۍ د مرکزونو په توګه د باندينۍ نړۍ سره زيات تعلقات درلودل، نو د تعجب خبره نه ده چې د بګرام له کنډوالو څخه د رومن ښيښه ايي لوښي د جګړې او غيرې نيولو د صحنو سره «ګلا د باتورونه» کشف شو، څکه چې دغه لوښي د رومن د امپراطورۍ د استازو په لاس د سوغاتونو په ډول دلته رارسيدلي او يا سوداګرانو د ځانونو سره راوړي وو.

په همدې ډول د چين ساخت لوښي چې اصلاً د لرګي څخه وو او د لوښي ګرد چاپېر يې فلزي کړۍ درلودله او باندنۍ څنډه يې په «لاک» دونی په ډول رنګ آميزي او نقاشي کوله د «هان ها» د سلطنت د زمانې يادګارونه دي. د ملغلرو اينبودلو د پاره د عاج څخه جوړ شوي مخصوصي صندوقچې د «ماتورا» «هند» ساخت د امپراطورۍ د داخلي محصولاتو څخه وو. د دې صندوقچو د څنډو ټوټې د عاجي نورو يو شمېر لوايحو چې هر يو په ځانګړي ليك منسبت، نقاشي او رنګ آميزي شوي د د نيا د عاجي آثارو له ښتنه نفيسو او ښتنه زياتو سترو مجموعو څخه شمېرل کيږي، چې د کاپيسې له ښاره لاس ته راغلي او د کابل د موزيم پورې يې تعلق درلود.

د شاهي عمارتونو د محوطې د باندې د کاپيسې د ښار د محوطې د داخلي برخو په ختيز کې د ښار په بازار کې هم د «موسيکرت» له خوا کيندنې وشوې او په نتيجه کې يوه سلسله دکانونه د ختينو لوښو سره چې خاص د اينبودلو د پاره وو کشف شو. د دې ځينو لوښو څنډې په مختلفو ټاپو باندې ښکلي کړي شوي دي. د بازار د دې رستې له دکانونو څخه زياتې سکې تر لاسه شوې او ګردو د کوشاني پاچاهانو پورې تعلق درلود. د بازار او د کانونو څخه ښکاره څرګنديږي چې د کاپيسې د شاهي ښار د برجونو او حصار په د ننه کې کافي خلکو هستوګنه درلودله.

موسو ګيرشمن په بګرام کې د کيندنې د شپږمې او اومې مرحلې په جريان کې چې په ۱۹۴۱ ميلادي او ۱۹۴۲ ميلادي کې تر سره شوي، د يو بل پسې ۵۳۹ قلمه شيونه، لوښي او سکې کشف شوي چې زياتره يې سکې او ختين لوښي دي، د دې مسکوکاتو په منځ کې چې شمېر يې سلهاوو قلمونو ته

رسيږي داسې سنګې هم شته دي چې تر اوسه يې نوعيت معلوم نه دي. ١

د کاپيسي-بګرام په ښار کې حتی په يوه يا دوو څنګ په څنګ کوټو کې د ګاونډيو هېوادونو محصولات داسې خوا په خوا ايښودل شوي وو چې انسان ورته په تعجب کې پاتې کېده او دا شيان يو د بل پسې په ترتيب سره په درو ډلو ويشل کيږي:

١- يوناني او رومن آثار

٢- هندي آثار.

٣- چينايي آثار. ٢

## د کاپيسي -بګرام نور تاريخي آثار:

لکه چې تاريخي اسنادو په اثبات رسولې ده کاپيسا-بګرام چې د ستر کنيشکا په زمانه کې د هغه د امپراطورۍ له برمه ډکه پلازمينه وه او د نړۍ د ځينو هېوادونو د مناسباتو په متعلق يې پراخ نړيوال شهرت او مدني عظمت درلود، هميشه د نړۍ د لرغون پيژندونکو پاملرنه ځانته را اړولي ده او د هغوئ د کيندنو په نتيجه کې لا غني او مبتکر او نفيس اثار لاس ته راغلي دي.

د کاپيسا په جلګه کې ډېر تاريخي علمي مستقيمو او غير مستقيمو او اتفاقي کيندنو په نتيجه يو شمېر تاريخي اثار او ښتې لاس ته راغلي دي او په دې سربېره د «پای تاوه» «استرغچ»، چاريکار، جبل السراج، پنجشير، بګرام، د عبدالله برج د توپ غر، نجراب او نورو زياتو سيمو کې د خاورو پر مخ ځيني تاريخي آثار ليدل شوي دي.

هغو کيندنو چې په ١٣٠٧ شمسي په دې ځای کې د «مسيو هاکن» له خوا تر سره شوي مثبتې نتيجې يې ورکړي دي. او د عبدالله برج «شاهي ښار» په موضع کې يو لوی ډنډ «حوض» د شيستی ډبرو له ټوټو څخه جوړ شوي دي او د تزئيناتو او نورو سره موجود دي، د هغه ځای کليوالو خلکو د دې ډنډ د مدور شکل او لوی ديوال په مناسبت د هغه ډنډ يوه ډبره د «طبق رستم» په نامه ياده کړې وه. دا ډبره اصلاً د عبدالله برج د لمر لويديز خواته د جمشيد خان په کلي کې وه خو امير عبدالرحمن خان هغه د فيل په واسطه اوسني ځای ته راوړې وه.

د پاتياوه د کشف شوو آثارو په منځ کې چې د کابل په موزيم کې موجود وو د «تخت الشجر» يو هيکل دي.

پر پايتاوه سربېره د کاپيسا د نورو سيمو څخه لکه جبل السراج، چاريکار، پنجشير، او نورو څخه

---

١ تاريخ افغانستان، ج٢، ص ٢٣٤

٢ همدغه اثر، ص ٣٨١

هم مهم تاريخي آثار تر لاسه شوي دي. ۱

د نولسمې پېړۍ په لومړۍ نيمايي د افغان-انګليس د جګړو په وخت کې يو شمېر انګليسي څېړونکو يا په پټه او يا د افغاني حکومت په اجازه او حمايه په بګرام او د افغانستان په نورو تاريخي سيمو کې څېړنې وکړې چې ډېر مشهور څېړونکي يې (مسترولسن)، (مسن) او (ماتې برګر) ؤ او يوازې (مسن) د پاچاهانو لس زره سکې موندلې دي.

او د (مسن) او (ولسن) د ليکلو شوو کتابونو موضوع همدې مسکوکاتو او د افغانستان د معبدونو مکشوفه نورو شيانو تشکيل کړې وه.

## د کاپيسا پايتاوه:

د کاپيسا د مدني او فرهنګي ځايونو څخه يو هم پايتاوه، چې د بګرام د شاهي ښار د کنډوالو د جنوب په ۱۲ کيلو مترۍ کې سراى خواجه ته نژدې موقعيت لري. د دې ځاى بودايي معبدونه د تاکسيلا يا کسيسيلا د بودايي معابدو او مذهبي تاسيساتو سره تام شباهت لري په ۱۹۲۳ ميلادي کې د لومړي ځل د پاره موسيو الفرد فوشه او موسيو هاکن فرانسوي لرغون پېژندونکي د افغانستان د لرغونو سيمو د پلټنو او کيندنو په ترڅ کې چې د کاپيسا. کوهدامن او کوهستان په اوږدو او پسور کې يې وکړې. بالاخره د زراعتي سيمو په منځ کې يې يوه جګه برخه وموندله چې له (۳۰ - ۴۰) مترو پورې يې اوږدوالي او له (۱۰ - ۱۵) مترو پورې يې پسور درلود او د يوه معبد د محل موقعيت يې ښوده.

فرانسوي پوهانو د ۱۹۲۴ ميلادي کال په دسامبر کې په کيندنو کې چې په دغه ځاى کې يې پيل کړې د يوه په زړه پورې هيکل تراشۍ لومړۍ ټوټه وموندله دا ټوټه د (سليټ) په تيږه کې د (ساکياموني) هيکل ؤ که ښه ورته وکتل شي په دې مجسمه کې د هيکل له ولو څخه د اور شغلې هواته خپرېږي او د پښو له تلو څخه يې اوبه رواني دي.

د هيکل تراشۍ په دې ټوټه کې د بودا د صورت ګرد چاپير روښنايي نيولې ده (برهما) او (اندرا) کيڼې اوښي خواته د ور نژديوالي په حالت کې دي.

همدا راز د کاپيسا د نورو سيمو څخه هم لکه د بګرام د شاوخوا او شيخان خيل مختلفې ورته پارچې لاس ته راغلي دي او پوهان دې عقيدې ته رسيدلي دي چې په افغانستان کې د کاپيسا سيمه د غني تاريخي اثارو درلودونکې ده.

له پايتاوي د نوموړي پارچې نه په غير د هيکل تراشۍ يوه بله پارچه هم موندل شوې ده، چې د هنر او خصوصاً د تاريخ له مخې ډېر زيات اهميت لري، دا پارچه په اصل کې د يوې بلې کومې لويې مجسمې تخت ؤ چې په هغې کې کشف شوې وه که دغه پارچې ته وکتل شي نو ليدل کيږي: درې تنه

۱ آريانا دايره المعارف، ټ۷، ۷۸۰ مخ

کوشاني اعانه ورکوونکي، درې تنه ښځې او درې تنه ماشومان د يو سرې نه گرد چاپير ناست دي، دوئ چې نوي دين منلي دي، خپل سوغاتونه يې هغه ته وړاندې کړي دي، د دوئ ارتې چپنې او زيږې موزې داسې ښيي چې دوئ د کوشاني قبيلو پورې تعلق لري چې نوي له مرکزي آسيا څخه باختر ته راغلي دي.

د پايتاوي دغه کوچنې کلي چې نن يې نوم او نښان معلوم نه دي د هېواد د لرغونو آثارو د هيکل تراشۍ دوې مهمې پارچې وړاندې کړي دي چې د تاريخ، فرهنگ او کمال د هنر له مخې اهميت لري او د يو نوم ورکې نقطې څخه د کاپيسا په تاريخ کې يو ځليدونکي پاڼه يې روښانه کړې ده. ١

په بگرام کې په دې بودايي مرکز کې بر علاوه يو بل مرکز د (شتمرك) په نوم دی چې د بگرام د خرابو د ختيز په درې کيلو مترۍ کې د يوه غرگوټې چې خلك ورته کوه پهلوان يا پهلوان کوه وايي موقعيت لري دا معبد په کوشاني عصر کې د (معبد شالوکيا) يا معبد سريکه (ويهارا) وايي. ٢

## کاپيسي-بگرام (شاهي ښار) د څو منارونو د مجموعې په توگه

لکه چې په تېرو بحثونو کې معلومات وړاندې شول چې کاپيسي -بگرام، عبدالله برج او داسې نور هغه محلي نومونه دي چې د تاريخي توصيفي ماهيت له مخې يو مطلب افاده کوي او د دې تر څنگه په کاپيسا -بگرام کې نور محلونه هم شته دي چې د تاريخي اهميت له پلوه د کاپيسا- بگرام موقعيت ته خاص ارزښت ورکوي.

که څه هم تکراري ښه به ولري خو بيا هم د ځينو نوو او تکميلي مطالبو د درلودلو له کبله پرې بحث بې گټې نه دي په کاپيسا کې د مقدوني سکندر تر راتگ د مخه هم ودانۍ او ښارونه موجود وو لکه چې د چينايانو د (کياپيس) او (کې پن) کلمه د دې ځای پر ودانۍ او آبادۍ دلالت کوي او د دې ځای اسان له پخوا څخه د چينايانو په دربار کې مشهور وو

پردې سربېره هغه وخت چې مقدوني سکندر د آريانه (هرات) او اراکوسيا (کندهار) له سيمو څخه د کوفن (کابل) سيمې ته راځي، تر اوسني کابل او د بودايي کابل (شيوه کي) څخه تيرېږي او په اوسني بگرام کې توقف کوي، دا اقدام د دې خبرې لوی دليل دي.

بگرام د اوسني کابل او تر بودايي کابل څخه په هغه وخت کې چې هر څنگه ؤ زيات اهميت درلود. له دې نه بر علاوه د کاپيسا د ښار بگرام د ودانۍ اهميت نه يوازې تر ميلاده د مخه د درو پېړيو په شاوخوا کې محدود ؤ بلکه زر کاله وروسته هم د اوسني کابل او شيوه کي د ترودانيو زيات ؤ. لکه چې چينايي گرځندوی په ٦٣١ ميلادي کې د مخصوص مذهبي ځايونو د ليدنې او د پوهانو سره د کتنې په خاطر

١ آريانا دايره المعارف، ټ٧، ٧٨٠ مخ

٢ محمد اسحق، ابراهيمي، مراكز مهم آئين بودايي در افغانستان، ص ٧٢

دلته راغلی ؤ او د کابل په سیمه کې یې یوازې د کاپیسا د ښار په کتنه اکتفا وکړه او د اوسنی کابل سیمې ته رانغی. ۱

څه رنګه چې کاپیسا د جغرافیایي موقعیت له مخې یو میدان دی چې د مرکزي هندوکش د دروازو او د پنجشیر د رودخانې مجرا په مستقیم ډول د اندوس (سند) د وادي سره نښلوي او د پکتیا د اراکوزي لارې یعني د آریانا جنوبي او جنوب غربي برخې هم په دې باند پای ته رسیږي او د مراوداتو او سوق الجیش او تجارت له نقطه نظره د هر ډول آبادۍ د پاره ښه مستعد دی او د ده مرکزیت د دې سبب شوی دی چې دلته څو ښارونه آباد شي لکه د نیکایا، او پیانه، ققاز اسکندریه، سکندري حصار او نور چې د هغې خرابې اوس هم موجود دي. او د نولسمې پیړۍ له لومړۍ وخت څخه یې د محققانو پاملرنه ځانته را اړولې ده.

کومو محققینو چې تر نورو زیاتره یې د کاپیسا جلګې ته توجه ور اړولې هغه څلور تنه محققین دي لکه:

دوه تنه یې انګلیسان او دوه تنه یې فرانسویان دي.

یو تن انګلیسي مستر چارل مسن (۱۸۵۲ – ۱۸۰۰ میلادي) او یو تن فرانسوي مسیو ګلوا د اګوست کورت (۱۸۶۱ – ۱۷۹۲ میلادي) په عملي ډول په کاپیسا کې څیړنې تر سره کړې دي او د دوه نور یې (مسیوژا) او (مستروسن) د منابعو په مرسته د دوو لومړنیو محققانو په مقایسه د کاپیسا د ښار د موقعیت صایب نظریات وړاندې کړل.

دا ده چې په بګرام کې دوی مشخصې نقطې موجودې دي.

- یوه یې عبدالله برج.

- او بله یې د یوه پراخ ښار کنډوالې چې تقریباً ۶۰۰ متره لیرې د جنوب په خوا کې پرتې دي.

د موسیمو ګرشمن د علمي کنیدنو او څیړنو وروسته چې د عبدالله برج په محوطه کې تر سره شوي، ثابته شوه چې دلته د مقدوني سکندر په زمانه کې د یونانیانو له خوا په محلي اصولو یوه پخه کلا چې ګرد چاپېر یې حصار، بارو، برجونه او خندکونه درلودل ودانه شوې وه. او دا محل هماغه د نیکا یا (نیسه) ښار دی چې (مستروسن) او (مکدونالد کرندل فوشه)، (هاکن) او (ګریشمن) د هغې موقعیت په اتفاق سره په بګرام کې تثبیت کړې دي. او فوشه هغه (پخوانی شاهي ښار) بللې دي.

موسیو فوشه څرګندوي چې تر دې تاریخ وروسته یوه مانۍ او مستحکمه کلا تقریباً ۵۰۰ متره جنوب ته په یوه مستطیل شکل محوطې کې بلې خواته انتقال موندلی چې د هغې د موقعیت جهتونه د عبدالله برج یا (پخواني شاهي ښار) سره تفاوت نه لري، یوازې د تناسب د نقطه نظره هغه لویه ده ځکه چې

۱ تاریخ افغانستان ج۲، ۲۴۰ نه د مخه

د نوي محوطې اوږدوالي ۴۵۰ متره او پسور يې ۱۵۰ متره دي.

دا نوي مستطيل شکله محوطه د لومړنۍ سره په يوه برخه کې د تپې عمودي څنډې ته د پنډ ديوال جنوب شرقي يوه برخه ننبلوي چې د اومو لويو خښتو څخه آباده شوې وه. دې دريم حصار بازار، ماڼۍ، ګانې او د ښار عمده عمارتونه احاطه کول، د دې آباديو مجموعه د يوې نوې محوطه په داخل کې دوه نيم کيلو متره احاطه لرې او د باندنى اطراف ماحول يې د ښار قصبې پراختيا مونډله او يو شمېر خلکو دلته ژوند کاوه. د دوئ هدېرې اوس هم له ختينو خمونو څخه ډکې دي. د تپې د پيچ په امتداد کې ليرې چې د رودخانې په مجرا باندې حاکميت لري معبدونه او استوپې پرتې دي او د مستطيل نما او مدورو تاکلو شکلونو موقعيت له هغوئ څخه ښکاري.

دغه نوي مستطيل شکله محوطه چې موسيو فوشه له خولې تعريف شوه، موسيو هاکن ورته (نوي شاهي ښار) وايي او دواړه فرانسوي څېړونکي هغه يو ښار بولي چې چيني ذاير هيوان تسنګ په ۶۳۲ ميلادي هغه د کاپيسې د ښا د کاپيسا د مرکز په نوم ياد کړي دي.[1]

يو بله خرابه چې د کاپيسې په ډنډ کې د يو تاريخي ځاى په موقعيت دلالت کوي (هغه سار سکندري) يا (حصار سکندري) دي.

دا کلا د اوسني کوهدامن يعنې سرايخواجه ته نژدې د کابل او سمت شمالي د پياده رو يعنې سرايخواجه څخه يوازې د دوو کيلو مترو په مسافه وراندې موقعيت لري او د کابل څخه يې مسافه ۲۵ کيلو متره ده.

څوک چې د دې کلا د خرابو او هغې ته د تګ راتګ د لارو سره بلدتيا لري نو د سکندر سار د سرايخواجه د شمالي سمت په اوسني سرك د انګورو د باغ او کرنې د مځکې شاته په شرقي افق کې چې يو شمېر غونډې ګانې ښکاري او که ورپسې ښه وراندې لاړ شي يو رودګي مخې ته راځي او د دينه هغې خواته د يوې نيمې سنګي او نيمې خاوريني تپې د پاسه د يوې کلا خرابه چې يو څه لويه ده ښکاري، د دې سيمې اوسيدونکي ورته د سکندر سار (سار سکندريه) وايي چې بې له شکه هماغه (حصار سکندريه) دي.

که د ستراتيژيکي ماهيت له مخې دې کلا ته وکتل شي په قطعي ډول حکم کيداى شي چې دغه خرابې د پخوانيو مستحکمو کلاګانو له بقاياوو څخه دي د رودګي د اوبو جريان په غربي او شمالي اړخ کې د کلا يو ډول طبيعي خندق ګڼل کيږي. او د کلا نورې خواوې هم چې ګودالونه او کندې لري او شواهد يې شته چې دا د کلا د هماغو سنګي او خاورينو تپو د پاسه پرتې دي.

[1] تجسسات عتيقه شناسي در بگرام، موسيو هاګن، ص ۶

- رازقي نريوال، د افغانستان استحکامي کلاوې، حصارونه او بالاحصارونه، ميوند مطبعه، ۱۳۸۳، ۱۴۳ - ۱۴۶ مخونه

د کلا په ګرد چاپېر کې پنډ ديوالونه او د هغوی مستحکم برجونه هم موجود وو. احتمال لري چې کلا څلور، دروازې درلودلې، چې د شرقي او غربي دروازو موقعيت يې په څرګنده توګه تشخيص کېدای شي او په يقين سره ويل کېدای شي چې د کلا عمومي مدخل د کلا په جنوبي بازو کې موقعيت درلود.

وروسته ثابته شوله چې د کرنې د مځکې د آبادولو په وخت کې تيرې او خښتې يې ورل شوي او د دې خښتو پېروالی د بګرام ښار د خښتو سره کوم توپير نه لري لکه چې معلومه ده بګرام دوه ميلادي پېړۍ د مخه د يونانيانو په عصر کې جوړ شوي دي او د سترو کوشانيانو په دوه رکې ۱ - ۲ ميلادي پېړۍ پورې يې د خپل عروج دوره تېره کړې ده. سکندري سار د تاريخي اسنادو له مخه د پروان د سکندري په معاصر وخت کې ودانه شوې ده او په قطعي ډول د کوشانيانو په زمانه ك ودانه او معموره وه. (۴۰ - ۲۲۰ ميلادي)

که څه هم په دې محل کې علمي کيندنې شوي نه دي خو د هغې څخه د خاورو د ايستلو په وخت کې يو څه اثار لکه مسکوکات، غمي، مهري او داسې نور شيان د يوناني او کوشاني د دورو پورې اړه لري.

موسيو ګيرشمن د دې کلا په کنډوالو کې کيندنې هم تر سره کړي دي. [1]

## د ققفاز سکندريه:

دا سکندريه چې د کاپيسا-بګرام له مستحکمو کلاګانو څخه ده ځکه ورته د ققفاز سکندريه ويل کيږي، کله چې سکندر دغې سيمې ته راورسيد د هندوکش د هسکو غرونو په څوکو چې په سپينو واورو پټې وې، د لومړي ځل د پاره سترګې ولګيدلې نو يې هغه د ققفاز د غرونو د څوکو په نوم ياده کړه او دا کلا يې هم د ققفاز د سکندريې په نوم ونوموله د لرغونې پيژندونکو د څېړنو له مخې د دې کلا موقعيت په پخواني پروان يا جبل السراج ته نژدې د سالنګ د درې په خوله کې واقع دي. خو بې له شکه د دې کلا موقعيت د هغې پخواني او ښکلي محل نوم دي چې هلته سکندرد پخې پوځي کلا په جوړولو لاس پورې کړ په لرغوني ادب کې د پروان نوم د پروانتا په شکل د يوه غره نوم دي او په اوستا کې ترې يادونه شوي ده.

وايي کله چې سکندر په ۳۲۸ قمري ميلادي بګرام ته راورسيد نو يې د پنجشير د سيند په غاړه په اوسني عبدالله برج کې (د مخه پرې بحث وشو) قرارګاه ونيوله او د واره يې د هغه محل د خوښيدلو له مخې د ققفاز د سکندري په جوړولو شروع وکړه. تر دې وروسته د پنجشير او نورو سيندونو څخه تير شو او د سالنګ خولې ته راورسيد. دغه محل يې د پوځي حاکميت او سوق الجيشي خاص موقعيت له مخې ډېر زيات مناسب وموند نو يې هلته يې د يوې پخې کلا په جوړولو شروع وکړه څه رنګه چې ژمي

[1] رازقي نړيوال. د افغانستان استحکامي کلاوې، حصارونه او بالاحصارونه، ميوند مطبعه، ۱۴۱ - ۱۴۲ مخونه

نژدې و د هغې د جوړولو په کار کې يې د پوره بيړې څخه کار واخيست.

د دې کلا په جوړولو کې يوناني سپاهيانو او د کاپيسا د درو وګړو په مرسته له ۲ - ۳ مياشتو پورې د کلا باري او برجونه جوړ شول، سکندر او يوناني سپاهيانو دغه ژمي همدلته په کلا کې تير کړ.

اوس د دې سکندريې کومه نښه نښانه په پروان کې پاتې نه ده مګر هغه زيات شمېر مسکوکات چې په نولسمه پيړۍ کې د کيندلو په نتيجه کې له هغه ځايه لاس ته راغلي دي دا خبره په اثبات رسوي چې يو وخت دغه محل يو ستر اداري او پوځي کانون ؤ.

دا کلا د دوهم ځل د پاره د همايون له خوا (۹۵۵ هجري) له سره جوړه شوه چې په دغه وخت کې د ده د لښکر مرکز او مهمه قرارګاه وه.

وروسته بيا امير حبيب الله خان همدلته د يوه معتبر ارګ بنسټ کيښود ۱

افغانستان در رتو تاريخ د اوپيانو خرابي ته چې په ريزه کوهستان کې پرتې دي او د کره تار خرابو ته هم اشاره کړي او وايي چې د لرغونې تاريخ په اوږدو کې دا تولې مهمې خرابې يوازې د کاپيسې په نوم يادې شوي دي. او بګرام که څه هم د بر پخواني نوم دي خو انتساب يې د دې سيمې سره تازه ګي نه لري. په نتيجه کې ښايي وويل شي چې کاپيسې -بګرام پخواني شاهي ښار دا د هندوکش د لارو ور، د خداى بن د روحانيونو او نجيباوو نجيب کلي د ځو ښکلو فرهنګي، مدني، تجارتي، پوځي او د ستراتيژيکي ښارونو مجموعه زموږ د هېواد د لرغونو ښارونو په منځ کې خورا لوړ مقام لري. او دا ځکه چې نه يوازې زموږ د هېواد يو ښکلي لرغوني ښار دى چې د تير روايت له مخې په افغانستاني کشمير کې يې موقعيت درلود يو اداري، تجارتي، مذهبي او سوق الجيشي ښار ؤ د دې په خوا کې د خپل بې ساری په زړه پورې موقعيت له مخې زموږ د لويو تاريخي مرحلې د امپراطورانو د امپراطورۍ د وبنې پلازمينه هم وه او تاريخي برم يې حتى يو وخت نړيوال شهرت درلود. او د باندنيو سياحانو هستوګنځي ؤ.

د کاپيسا ښار که څه هم تر ميلاده د مخه د دريمې پيړۍ په لومړي نيمايي کې تاسيس او د پايتخت حيثيت يې درلود، خو د کوشاني لومړي پاچا کنيشکا د پاچهي په زمانه کې ۱۲۰ – ۱۶۰- ميلادي او د هغې سلالی په دوره کې يې زيات اهميت درلود او د خپل وخت له سترو پايتختونو څخه ؤ.

لنډه دا چې ولې په تاريخ کې د کوهدامن، کوهستان، بګرام، چاريکار، تګاب، نجراب او نور مربوطات يې د کاپيسا په نامه ياد شوي دي؟ حال دا چې کاپيسا يوازې د شاهي ښار نوم ؤ او مؤرخان داسې ليکي چې د يوه پايتخت شاوخوا او نژدې قصبې او کلي تل د خپل پايتخت په نامه يادېږي. لکه چې اوس د کابل شاوخوا په کابل شهرت لري. ۲

۱ افغانستان در پرتو تاريخ، ۱۷۰ مخ

۲ آريانا دايره المعارف، ټ ۷، ۱۳۵۵، ۷۸۳ مخ



# ۹ - گرديز

**(د پکتيا ولايت دروازه)**

زموږ د هېواد د لرغونو تاريخي ښارونو څخه يو هم د گرديز پخواني ښار دي چې د نورو تاريخي او مذهبي بيلگو تر څنگه د پوره سوق الجيشي اهميت درلودونکي دي.

**د گرديز موقعيت او څلور خواوې:**

گرديز د کابل په جنوب کې د ختيز طول البلد د ۲۹ درجو او ۱۶ دقيقو او شمالي عرض البلد ۳۳ (۲۲) درجو او ۲۷ دقيقو تر منځه موقعيت لري.

گرديز د بحر له سطحې څخه ۲۲۵۳ متره لوړوالي لري او د کابل څخه د ۱۲۲ کيلو مترو غير مستقيمي مسافې او د ۱۰۰ کيلو مترو په مستقيمه مسافه ليرې پروت دي.

**څلور خواوې يې:**

- د شمال خواته: د تيرى كوتل
- د لويديز خواته: زرمت (ممورايي) اوستوگن دي.

جنوب خواته: سپاهي خيل كوتل او ستو كنډو.

- د ختيز خواته: سيد کرم ولسوالي او مچلغو غرک سيمې.

## د گرديز د تسميې وجه:

گرديز يا گرديس له دوو کلمو څخه متشکل دي:

(گر) او د (ديس) (ديز) چې (گر) د غر معنا لري، او (ديس) (ديز) د دژ، حصار او پخې کلا په معنا دي.

گرديز د اوږدو پيړيو په ترځ کې زموږ د هېواد د ډېرو نورو پخوانيو ښارونو او محلاتو د نومونو غوندې، ددې نوم (س) په (ژ) او (ز) باندې اوښتي او گرديس په (گرديژ) او (گرديز) اړول شوي. له ۲۰۰ هجري قمري راهيسې په احسن التقاسيم کې د (غر) پښتو کلمه چې په فارسي د (کوه) معنا ورکوي او ديز د (دژ) يعنې پخې کلا معنا لري په تغيير سره په (گرديز او گرديژ) اوښتي دي او مرکبه معنا يې د (غره مستحکمه کلا) ده.

ښاغلي محمد ابراهيم عطايي د دې ښار د تسميې د وجې په هکله داسې وايي:

گرديز يعنې غرنۍ کلا چې تقريباً د احسن التقاسيم د قول په تاييد يې دا نظريه وړاندې کړي او پوره منطقي ده.

اروانباد محمد صديق روهي پخپله گرديز يوه پښتو کلمه بولي او وايي: (غرديس) غر د (کوه) او ديس د (وطن) يعنې (غرنی وطن).

د (ديس) کلمه چې د نورستاني (ديش) د کلمې سره مترادف دي او هغه هم د هستوگنځای او کلي معنا ورکوي لکه کامديش، ميرديش او داسې نور، نو ويلای شو چې گرديز هم يو غرنی هستوگنځي يا محل دي. اما منطقي معنا او مستدلله معنا يې هماغه (غرنی جنگي کلا ده).

ځينې مؤرخين د گرديز پخواني نوم (برير) بولي خو دا روايت دومره قوت نه لري. [1]

په يو بل روايت عوام خلك گرديز ته (زمر) وايي.

## د گرديز د شهرت او اهميت علتونه:

په تاريخي سوابقو کې چې کومو عواملو گرديز ته خاص اهميت ور په برخه کړي دي او مؤرخانو تر هميشه يادونه کړې ده هغه په لاندې ډول ښودل کيدای شي:

۱- د گرديز سوق الجيشي د خاص موقعيت اهميت.

۲- د گرديز اهميت د هغه د بالاحصار د موجوديت له بابته.

۳- د گرديز اهميت د مذهبي، ښکلو صنعتونو او تاريخي اثارو د مرکزيت له مخې.

---

[1] د آريانا مجله ۱۰ گڼه ۱۳۲۳، ۱۷ مخ

## - د ګرديز سوق الجيشي د خاص موقعيت اهميت:

لکه څنګه چې کاپيسا - بګرام د هندوکش د لارو ور بلل شوي دي، ګرديز هم تقريباً د دغې يو سوق الجيشي او جغرافيايي خاص موقعيت درلودونکي دي. او زموږ د هېواد هره سيمه او يا ښار چې دغسې ممتاز موقعيت لرلي دي د تاريخ په اوږدو کې يې خپل تاريخي او تدافعي اهميت ساتلای دي. لکه چې وايي: ګرديز د پکتيا د ولايت دروازه ده. او د دوو لويو درو په خوله کې موقعيت لري. چې يوه دره يې د مير زکي په استقامت احمد خيلو او ځاځيو ته ور اوږده شوي چې ګولاهي ته رسيږي.

او بله دره يې مخ په جنوب د خوست ولايت ته ورغزيدلي ده او له ګرديز ۹۰ کيلو مترو په اوږدوالي واتن لري.

د ګرديز لويديز خواته غزني او د جنوب لويديز لور ته يې ارګون، څه وړاندې د متاخان د دښتې څخه پورته د سر روضي په لار او په بيلابيلو لارو تر ګومله پورې رسيږي.

د ګرديز سوق الجيشي اهميت هر وخت مرکزي حيثيت درلودلي دي چې د عربو او د غزنويانو د لشکر کشيو په وختونو کې يې پوره اهميت درلود. ۱

د حدود العالم په حواشي او تعليقاتو کې راغلي دي:

ګرديز د افغانستان جنوبي پولي ته نژدې پروت دي. د دې اثر په يوه برخه کې راغلي دي:

ګرديز يو ښار دي د غزنين او هندوستان تر منځه د تل (سطح) پر سر واقع دي يوه پخه کلا لري چې د درو بارو درلودونکي ده.

ګرديز د مشهور عالم د زين الخبار د مؤلف عبدالحي ګرديزي مسقط الراس يعنې ټاټوبي دي چې د زرمت په ميدان کې او د غزني د ختيز په ۳۴ ميلي کې موقعيت لري.

مقدسي (۳۴۹) په دې باب د (راهنامه) په نوم په خپل اثر کې داسې ليکي... له غزني څخه تر ګرديزه يوه مرحله (منزل) او له هغه ځايه تر (اوغ) همدا مسافه او له هغه ځايه تر (لمالجان) دومره مسافه او له دې ځايه تروهينده (اوده) د ټولې لارې اوږدوالي ۱۷ منزل دي.

څرګنده ده چې دا لار د افغانانو د غرنيو لارو څخه د سندونو د (اباسين) پورې ډېره نژدې لار ده. او ګرديز د غزني او کابل او بنو د لارو په تقاطع کې موقعيت لري.

يعنې کومې لارې چې د غزني څخه په دې سيمه کې تر اباسين پورې غزيدلي دي زيات تنګ او راتنګ په هغې لارې دي چې د ګرديز څخه تيرېږي.

ښاغلي احمد علي کهزاد ليکي:

له ۷۹۳ ميلادي يعنې د اتمې پيړۍ په اوږدو کې د کابل مرکزيت د سامنته د يوا (د کابلشاهانو د

---

ننګرهار مجله ۲ ګڼه ۱۴۲۱ قمري/ ۱۳۷۹ شمسي، ۶۱ مخ

سلسلې پاچا) تر سلطنت پورې یې دوام درلود او د یعقوب لیث صفاري په واسطه په اتمه میلادي پیړۍ کې د کابل تر فتحې پورې دوام وکړ سامنته د کابل تر نیولو وروسته چې ځیني یې ترې د صفاریانو لاس ته ورغلل او مسلمانان شول او ځینو یې ګردیز ته پناه یووړله او په مؤقتي ډول د یو څه وخت د پاره ګردیز د برهمنشاهي سلطنت مرکز وګرزید او بیا چې د عمرو لیث صفاري په وخت کې د لوګر د سجاوند مشهور معبد فتح شو نو د برهمن شاهانو مرکز له ګردیز څخه ویهند (اووند) یعنې د اټک غاړې ته انتقال شو.

د ننګرهار د مجلې په دوهمه ګڼه د دې موضوع په متعلق په یو څه تفصیل سره داسې معلومات ورکړ شوي کله چې عربي قواوو په پر له پسې یرغلونو کابل ونیو د کابلشاهانو څخه زنبورك خپل پایتخت لومړي د لوګر سکاوند (سجاوند) او بیا یې خپل مرکز ګردیز ته ور انتقال کړ د سیستان په تاریخ کې پر ګردیز د یعقوب لیث صفاري د یرغلونو په مورد کې حکایات شته دي او بو سعید عبدالحی ګردیزي په زین الخبار کې وایي یعقوب لیث کله چې کندهار او غزني ونیو نو ګردیز ته راغی او د ګردیز امیر ابو منصور اضلع بن محمد بن خاقان یې په دې راضي کړ چې د سیستان دربار ته باج ورکړي.

په تاریخي پیښنو کې ګردیز او غزني دواړه یو ځای سره خوا په خوا یادیږي لکه چې د لویکان کورنۍ د غزني او ګردیز اداره یو ځای په لاس کې درلودله او کله چې سبکتګین د غزني اقتدار په لاس کې واخیستنو د لویکانو نفوذ ته یې خاتمه ورکړه او له دې وروسته سلطان محمود دا ځای غزني ته نژدې خوندي ځای بللي او هر چېرته به یې چې په کومه جګړه کې امیران او جنرالان اسیر کړل هغه به یې ګردیز ته راوړل او دلته به یې ساتل.

معتمد د طوس حکمران ابو علي محمد مظفر دواتي چې یو حکمران ؤ او سلطان محمود یې په جګړه کې ډېر مصروف کړی و او چې یې په جګړه کې ماتې وخوړله سلطان محمود د هغه غزني ته اسیر راووست چې بیا په ۳۸۸ هجري کې همدلته مړ شو.

په ګردیز کې د قاقسور زیارت د هغه د شخصیت سره اړه لري چې د سنایي معاصر بلل شوي دي.[۱]

## - د ګردیز اهمیت د هغه د بالاحصار د موجودیت له بابته

استحکامي کلاوې او تدافعي د ژونه چې زموږ د هېواد د خاصو او ممتازو موقعیتونو په لرونکو نقطو کې بنا شوي دي، د تاریخ په اوږدو کې همیشه د پاچاهانو او فاتحانو د جدي پاملرنې وړ ګرزیدلي او یا هم د مذهبي مرکزونو تاسیسولو د پاره خو را مناسبت ځایونه ګڼل شوي دي. او دا ځکه چې د دوئ د هستوګنې د سیمې او د واکمنۍ د ساحې دفاع او ساتنې، د دې نقطو او د هغوی په استحکامي بناګانو متکي پاتې شوي دي او هغوئ هر یو په خپل وار په دغو ممتازو حاکمو نقطو کې استحکامي د

۱ ننګرهار مجله ۲ ګڼه ۱۴۲۱ قمري

ژونه، پخې کلاوې، بالاحصارونه او حصارونه او ارګونه او مذهبي د پیروانو مذهبي مرکزونه جوړ کړي دي.

د ګردیز بالاحصار هم د داسې پوځي پخو کلاګانو او بالاحصارونو څخه دي او معمولاً په تاریخي اسنادو کې زیاتره تذکرات د همدې بالاحصار په آدرس راغلي دي. وایي چې د ګردیز جنګي کلا او بالاحصار د «زمر» د خور له خوا چې «زکه» او د «میرزکه» په نوم یادیدله د مقدوني سکندر د حملو په مقابل کې (۳۲۸ قمري میلادي) کې جوړه شوې ده. ۱

ګردیز دا غزنی جنګي کلا د ننګرهار د دوهمې ګنې په حواله داسې معرفي شوې ده:

په ۲۰۰ هجري قمري د افغانستان یو واکمن حمزه شاري د ګردیز بالاحصار جوړ کړي دي. د ګردیز جنګي کلا د ګردیز د ښار په ختیزه خواکې پر یوې جګې غونډۍ باندې ودان شوي دي.

## - ګردیز او د هغه بالاحصار په تاریخي آثارو کې:

ګردیز د پکتیا ولایت مرکز او له کابل څخه په ۱۲۲ کیلو متره مسافه پروت دي. ګردیز یو تاریخي ښار دي چې له پخوانیو زمانو څخه یې یو ټینګ حصار درلود د پیښو او جګړو په مقابل کې یې ډېر مقاومت او مدافعه کړې ده.

هغه وخت چې د اسلام د لښکرو مشر یعقوب لیث صفاري د کابل ښار فتح کړ او بیا یې د دوو پیړیو وروسته په جګړه ایزې هوښیارۍ او یوې پلمې د کابل بالاحصار هم ونیو د کابل پاچا رتبیل شاه د ګردیز حصارته راغی او هلته حصاري شو او له هغه ځایه یې ډېر مقاومت وښود.

د بالاحصار ساختماني جوړښت په دې اثر کې داسې ښودل شوي دي

د ګردیز بالاحصار یوه د ختو اوږده کلا ده چې د ګردیز د ناوې په منځ کې ودانه شوې ده او تقریباً ۳۵۰ متره اوږدوالي لري او له ځمکې څخه یې جګوالي (۴۰ مترو په شاوخوا کې دي او ګرد چاپیر یې یو پسور ور خندق کیندل شوي چې بقایایې تر نن ورځې پورې لیده کیږي او نوموړي بالاحصار تر اسلام د مخه لکه د کابل بالاحصار یو لوی مذهبي مرکز هم ؤ او اوس عسکري چونۍ ده.

لکه چې په مخکینی بحث کې وویل شو چې د ګردیز او د هغه د بالاحصار څخه په حدود العالم، د مقدسي په «راهنامه» او عبدالحي ګردیز په زین الاخبار کې هم یادونې شوي دي.

له ګردیز څخه زموږ د هېواد د ځینو پاچهانو د واکمنۍ په دورو کې هم تذکرات راغلي دي لکه په غوري دولت کې کله چې غوري واکمنانو د هند په استقامت فتوحات کول هغوئ د خپلو سوقیاتو په لار کې د ګردیز څخه د یوې دروازې په حیث کار اخستلی دي.

د جلال الدین لښکري چې له غزني څخه د اباسین د غرو پورې عسکري سوقیات کول هم د ګردیز

---

۱ آریانا دایره المعارف، ۷ ټ، ۱۳۵۵، مخ ۸۸۸

شاوخوا ته راغلي دي.

ګوډ تيمور څو واري ګرديز ته راغلي دي او له دې ځايه څخه يې نږدې چې په ګرديز کې يې د بابريانو د يو ستون لښکر خان روغاني سره جګړه وکړه او په دې جګړه کې ګوډ تيمور په خپل سر نوموړي هغه په خپلو خلکو وواژه.

بابر هم د اوسني تيرې کوتل له لارې ګرديز ته راغلي دي او دلته يې خپل ياغيان مړه کړل او په اداري تشکيل کې يې ګرديز د غزني سره يو ځای د يوې حکمرانۍ لاندې کړ. په ګرديز کې به د بابريانو هغه خلك په حکمرانۍ مقرريدل چې د زړورتوب امتحان به يې ورکړی ؤ.

په ۱۹ پيړۍ کې چې پکتيا د استعمار پر ضد دا وريوه سره توته ګرزيدلي وه او د جنرال رابرټس د پريشاني اسباب يې راټول کړي وو. ۱

په همدغه اثر کې د ګرديز بالاحصار د ساختماني مشخصاتو په باب د معلوماتو د وړاندې کولو وروسته چې د مخه ترې يادونه وشوه په تاييدي ډول داسې ليکل شوي دي:

د ګرديز د ودانيو پر سر د يوې زړې کنډوالې په شان د خاورو يوه ودانۍ ښکاري چې د غټو ډبرو د پاسه جوړه شوي ده د دې خاورينې غونډۍ پر سر يو قبر دي چې د ښار خلك يې زيارت کوي.

د ګرديز د ښار اوسيدونکي د بالاحصار په متعلق ډيرې افسانې لري او وايي چې دا بالاحصار يو وخت دومره لوړ ؤ چې کله به لمر راوخوت سيوري به يې پر کلايکو پروت ؤ، کلايکو د ګرديز د لويديز په ۲۵ کيلو متري کې موقعيت لري.

د تاريخ پلار هيرودت چې کله د پکتيا د نوم يادونه کوي همدغه سيمه ده چې د ننۍ پکتيا په نوم ياديږي، يعنې ګرديز د پکتيا د ولايت د مرکز په توګه د پکتيا عمومي مفهوم افاده کوي.

چينايي ګرځندوی هيوان تسنګ او عربي جغرافيه ليکونکي ابن بطوطه او داسې نورو ډېرو مؤرخينو او جغرافيه ليکونکو هم ګرديز پيژنده.

څه رنګه چې د ګرديز بالاحصار يوه پخه غرنۍ کلا وه چې د هغې څخه د اسيرانو د حبسولو د پاره د يو زندان په حيث هم کار اخيستل شوي دي. لکه چې مرحوم غبار په دې باب داسې استشاره لري:

"زندانهاي عمده دوره غزنويها در قلعه های مستحکم گرديز، منديش (غور) جوزجان، کشمير، ملتان، غزنی و غيره بود." ۲

---

۱ ننګرهار مجله، ۲ ګڼه، ۶۲ مخ

۲ افغانستان در مسير تاريخ، مير غلام محمد غبار، ص ۱۶۱

## - د ګرديز اهميت د مذهبي، مستظرفه صنايعو او تاريخي آثارو د مرکزيت له مخې:

افغانستان د جغرافيايي مساعد او ممتاز موقعيت، د آسيايي تمدن او فرهنګ په څلور لارې کې او د تاريخي دورو د لرغونتوب او تنوع له مخې د هغو هېوادونو له جملې څخه دي چې په زياته اندازه د پخوانيو دورو تاريخي آثار پکې پيدا شوي او پيدا کيږي دا مسئله نن نه بلکې تر يوې نيمې پيړۍ زياته موده د مخه بيخي په ډاګه شوه چې د افغانستان خاوره د لرغونو آثارو په تېره بيا مسکوکاتو او مستظرفه صنايعو په درلودلو سره ډېره شتمنه او بدايه سيمه ده.

لکه چې د امير دوست محمد خان د سلطنت په دوره کې يو تن انګليسي لرغون پيژندونکي مستر مسن يوازې د بګرام له دښتې څخه د شپيتو زرو مختلفو سکو په راټولولو بريالي شو.

همدا شان په ۱۳۲۶ شمسي هغو مهمو کشفياتو په پراخه پيمانه هر چېرته په علمي تحقيقاتو حلقو کې سر و صدا راپورته کړه چې د ګرديز په ميرزکه کې تر سره شول.

په همدې ترتيب لکه څنګه چې نګاراهارا د ګندهارا د يو مذهبي مرکز له امله د زيات تاريخي شهرت او اهميت درلودونکي ؤ په همدې ډول د ګرديز ميرزکه هم د دغسې تاريخي ارزښت او شهرت درلودونکي وه، دا ځکه چې ميرزکه د دغه عصر د ښکلو صنعتونو ډېر شتمن او د يونانو باختري شاهانو د دورې په متعلق بيلابيل هغسې تاريخي آثار درلودل چې د خپل نادرتوب له مخې په نړۍ کې بيخي بې ساري ګڼل کيږي چې د شهکارونو ګنجينې يې په ميرزکه کې موندل شوي دي.

تر اسلام د مخه ګرديز د دې ډول ښکلو صنعتونو لوی مرکز شمېرل کېده، په تېره بيا هيکل تراشۍ د هغې زمانې د مستظرفه صنايعو له جملې څخه لوړ نوم درلود. او دلته يې د خپلې پر مختيا د لوړو مدارجو په کچه کې قرار درلود، چې د مثال په توګه د يو فيل هيکل د يادونې وړ دي چې د عاج څخه تر لاسه شوي دي.[1]

څه رنګه چې د ګرديز ميرزکه د هنري تاريخي آثارو په تېره بيا د مختلفو دورو د مسکوکاتو د انتساب له مخې لوړ نوم لري نو په کار دې چې په لومړي سر کې د ميرزکي او يا د هغې د اثارو په متعلق معلومات ولرو.

په دې مورد کې ښاغلي احمد علي کهزاد د آريانا په مجله کې په پوره تفصيل سره بحث کړي دي چې تقريباً د هغه د يو څه لنډيز په اقتباس به بسنه وګړو.

نوموړي ليکي:

---

[1] آريانا دايره المعارف، ټ۷، ۸۸۸ مخ

د ګرديز په شمال شرق کې د ۳۰ کيلو مترو په مسافه د ځمکې ساختماني وضعيت په داسې شکل دي چې په غير محسوس ډول مخ په پورته دي او له دې ځايه د احمد زايي او ميرزکه د رود د اوبو ويشل پيل کيږي. دلته يوه علاقه ده چې منګلي قبيلې پکې اوسيږي. د نوموړي رود نرۍ اوبه د ګرديز جنوب په استقامت جريان پيدا کوي او نورې نرۍ اوبه د ميرزکه د رود په نوم چې مقابل خواته د شمال ختيز په استقامت بهيږي لومړنۍ ياد شوي رود وروسته د ګرديز د رود په نوم او چې ورپسې ښه نور تير شي يو څه ليرې د ګرديز د ډنډ او د زرمت حاصلخيزه جلګې ته اوبه ورکوي او د شمال لويديز د کتواز خواته بهيږي او بالاخره که چېرته د نوموړي رود اوبه بې مصرفه پاتې شي نو د مقر په ولاړو اوبو کې ور تويږي.

د ميرزکي اوبه چې د بهيدو مخه يې د شمال خواته ده له غونډيو څخه تيريږي، د منګل د لوړ او په ونو پټ غره بيخ ته ورسيږي او د ګومل په استقامت جريان پيدا کوي.

د اوبو د تقسيم له هغه خط چې د مخه ترې يادونه وشوه درې کيلو متره لېرې د (چنجي قول) اوبه د ختيز له خوا نه د ميرزکه له رود سره يو ځای کيږي او د چنجي د قول په تنګ خوله کې د رود خانې په کينه غاړه کې يوه غونډۍ ليدل کيږي چې نن ورځ محلي اوسيدونکي يعنې منګلي (آيي) قوم هغې ته کافر کوټ وايي، دا غونډۍ د رودخانې د مسير له غاړو د برګې له اوبو څخه نژدې ۷۰ کيلو متره فاصله لري او د اوبو د مجرا له تله ۳۰ متره لوړه ده.

د کافر کوټ په جنوبي ګاونډې برخه کې يوه د ځمکې مربع الشکله برجسته ټوټه ده چې د هغې د پاسه د پخو خښتو ټوټې او ټيکر ليدل کيږي او له دې څخه دا جوتيږي چې نوموړي غونډۍ د ځمکې دغه برجسته مربع الشکله برخه تر ۱۰۰ مترو پورې د کافر کوټ په جنوب کې په پخوانيو زمانو کې تر اسلام د مخه د هغو ودانيو برخه ده چې هويت يې معلوم نه دي.

د کافر کوټ څخه ۷۰ متره ليرې د ميرزکه د رود خانې د نيمه وچ مسير په غاړه يوه چينه موجوده ده چې د ۱۳۲۶ هجري شمسي په پسرلي کې په تصادفي ډول د قبايلي منګليو ښځو د هغې په منځ کې يو شمېر سکې وموندلې او وروسته له هغې چې د چينې د منبع په شاوخوا کې پلټنه وشوه يوه لويه مربع الشکله کوټه چې هره ضلعه يې ۶ متره اوږده آباده شوې وه او دغې کوټې ته نژدې نورې وړې وړې کوټې هم پرتې وې او په اصل کې داسې معلومه وه چې د اسلام نه د مخه دغه کوټې ته نژدې په پخوانيو زمانو کې او حتی د ميلادي پيړۍ څخه هم د مخه دلته متبرکې چينې موجودې وې چې خلکو يې د عادت له مخې اوبو ته سکې ور غورځولې او په دې ترتيب د ۴ ق. ميلادي په شاوخوا کې تر دريمې مسيحي پيړۍ پورې يعنې د ۷۰۰ کلونو په اوږدو کې د افغانستان د مختلفو پاچهانو د سلسلو پورې مربوط د مسکوکاتو نمونې په زياته پيمانه هلته جمع شوې دي، تر کومه حده چې ګومان کيږي او له امکان څخه

ليرې هم نه ده چې اصلاً د پنځوسو زرو په شاوخوا کې پخوانۍ مختلفې سکې په دغه چينه کې راجمع شوي دي چې زيات شمېر يې قبايلي خلکو موندلي او د کابل موزيم ته راوړل شوي او د موزيم له خوا په بيه رانيول شوي دي، که څه هم يو زيات شمېر يې د کيمياوي دوا په واسطه تر مينځلو وروسته محوه شوي دي خو بيا هم د هغو شمېر تر لسو زرو دانو زياتې دي. ١

ښاغلي احمد علي کهزاد بيا په يوه بله ليکنه کې چې د آريانا په مجله کې چاپ شوي ده په يوه څه تفاوت او تاييد داسې معلومات وړاندې کړي دي:

د زياتو کيندنو او عمراني مطالعه وروسته څرګنده شوه چې په اصل کې دغه چيني د دې غونډۍ د نورو چينو په شکل دا يو نوي پيدا شوي شی دي چې د رودخانې د مسير په اوږدو کې ځای په ځای لکه چشمه زار ليدل کيږي.

اتفاقاً د دې چينو څخه په يوه چينه کې چې اوبه ترې رابهيږي د يو مستطيل شکل کوټې محوطه چې اوږدوالي يې له ختيز څخه لويديز ته د پنځو مترو او له شماله جنوب ته د څلورو مترو په شاوخوا کې دي.

په ښکاره سره د کيندنې د مرحلې په ابتدا کې يو شمېر مسکوکات له دې چيني څخه تر لاسه شوي دي، ښايي داسې تصور نه شي چې په دغه چينه او يا کهي کې کومه دفينه موجوده ده، چې په قصدي، اتفاقي او يا اجباري توګه چا هلته څه مسکوکات پټ کړي دي چې د پيسو د ښخولو او پټولو موضوع مطرح نه ده. په اصل کې له چيني څخه لېرې د محوطې په منځ کې يوه کوټۍ ښکاره شوي چې دغه کوټۍ پخپله سنګکارۍ کې څلور منظم ديوالونه اوچت درلود او دغه کوټې ته ضرابخانه ويلای شو چې د معلوماتو له مخې يو وخت دلته مهرونه ايستل کېدل، زرګري، آهنګري کېدله چې سرنيزې، غشي او داسې نور شيان پکې جوړيدل دا وه چې په ميرزکه د لرغون پيژندنې د اصولو سره سمې علمي او حتی پلټنې او کيندنې پيل شوي او ورو ورو دلته له دې ځايه نه زره سکې تر لاسه شوي چې زياتره برخه يې د سپينو زرو او مسي دي. په دې کې شك نشته چې په دې ځای کې پراخ مطالعات تر سره شول چې ډېر لوی کار دي او زياتو وخت کې وغوښت.

په يو بل روايت سره د ميرزکه د دغه چشمه زار او د سرخرود د چينو منبع يوه ده او د دې چينو تبرك د هماغه بابا بانك سره ارتباط لري او د دې روايت په اساس د ښاغلي کهزاد لومړنی روايت چې په مختلفو زمانو کې ورته د تبرك د پاره په پر له پسې ډول سکې ور اچول شوي او بالاخره د مسکوکاتو يو کلکسيون ترې جوړ شوي دي او دوهم روايت څکه دومره مؤثق نه ښکاري چې که ضرابخانه وي خو سمه ده اما د وسلو جوړلو موضوع څکه صحت نه ده چې د وسلو څخه پکې کومه روايت نشته.

---

١ افغانستان در پرتو تاريخ، کهزا، ٢٥٧ – ٢٥٨ مخونه

## د ميرزكه د كلكسيوني د مسكوكاتو نوعيت:

د ميرزكه څخه تر لاسه شوي مسكوكات د فلز د جنسيت له مخې نقره اي او مسي دي او د نوعيت له مخې په دوو دستو ويشل كيږي:

۱- يو ډول يې محلي سكې دي چې خاص د محل پورې تعلق لري او زياتره د افغانستان په شرقي او جنوبي برخو كې، په تاكزيلا او پنجاب كې ضرب كيدلي او په عمومي صورت په ګندهارا كې ليدل كيدلي او د كوم پاچا او يا پاچهي نوم پرې نه ليدل كيږي او د دې تر څنګ مرتب او منظم شكل نه لري.

۲- دوهم ډول يې هغه منظم او مرتب مسكوكات دي چې د لرغونو تاريخي سلالو او لرېو پورې لكه د هندوكش د جنوبي يوناني پاچهانو، اسكايي، اسكالي او پارتي او كوشاني پاچهانو پورې تعلق لري.

لومړی ډول مسكوكاتو ته په انګليسي (بنت بار) او پنځه وايي چې لومړی يې د سپينو زرو د ميلو په شكل خارجي بڼه پيدا كړې ده او دوهمې دستې مسكوكات د سپينو زرو مقطوعه نازكې ټوټې دي چې د هغوی پر مخ بيلابيل شكلونه او علامې چې نوعيت يې تر ۳۰۰ پورې رسيده ليدل شوي دي لكه د انسان، وسلې، ونو، مرغان، لمر او ستورو ځينو ګلانو، ابداتو او داسې نورو شكلونه پرې ښكل شوي دي.

له كومه ځايه چې د ميرزكه كلكسيوني سكو پورې مربوط معلومات په ډېر تفصيل ليكل شوي دي او يو ډېر اوږد بحث تشكيلوي نو يوازې د هغو په نيته او مربوطيت بسنه كافي ګڼل كيږي:

۱- د انتي ماكوس په دوره كې ۲۰۰ ق. ميلادي – ۲۳۰ ق. ميلادي.

۲- د پانتالتون په دوره كې: ۱۹۰ ق. ميلادي.

۳- د اګاتو كلس په دوره كې: ۱۸۵ ق. ميلادي.

۴- د ايودوت د دورې متعلق: ۱۸۰ ق. ميلادي.

۵- د ايوكراتيد په دوره كې: ۱۷۵ ق. ميلادي.

۶- د مناندر په دوره كې: ۱۶۵ ق. ميلادي.

۷- د هليوكلس په دوره كې: ۱۵۹ ق. ميلادي.

۸- د ليزيوس په دوره كې: ۱۵۰ ق. ميلادي.

۹- د انتيال كيلاس په دوره كې: ۱۴۵ ق. ميلادي.

۱۰- د اركه بيوس په دوره كې: ۱۴۰ – ۱۳۰ ق. ميلادي.

۱۱- د ديو مدوس په دوره كې: ۱۴۰ – ۱۰۰ ق. ميلادي.

۱۲- د فيلوګزنوس په دوره كې ۱۲۵ ق. ميلادي.

۱۳- د امين تاس د دورې متعلق: ۱۰۰ ق. ميلادي.

۱۴- د دوپلوس د دورې متعلق، ۴۰ ق. ميلادي.

۱۵- د ازس د دورې، ۵۸ ق. ميلادي.

۱۶- د ازيبزس د دورې: ۴۰ – ۴۵ ق. ميلادي.

۱۷- د اسپاري ليزس د دورې: ۱۱۰ ق. ميلادي.

۱۸- د کند و فارس د دورې: ۱۹ - ۴۸ ق. ميلادي. [1]

د پورتنی تحيقاتي ليکنې څخه د ګرديز د ميرزکه د کلکسيوني مسکوکاتو او مارغي آثارو دغه ډوله زيات نوعيت چې اوه پيړۍ د اوږدې پيړۍ مسکوکات معرفي کوي واقعاً د ګرديز د ميرزکه تاريخي اهميت په تصديق سره په ډاګه کوي.

## ګرديز د مذهبي مرکزيت له مخې:

ګرديز د مذهبي مرکز له پلوه لکه چې د مخه ورته اشاره وشوه تر ميلاده د مخه د بغلان د معبد (نوشاد) د ډېرينی کتيبې له مخې چې د سرخ کوتل څخه د پلخمري په ۹ کيلو مترۍ کې کشف شوي او د زرتشتي آتشکدې (زه د دې آتشکدې سره اتفاق نه لرم) چې په تخاري ژبله له لويك نه پکې يادونه شوي چا چې په غزني او ګرديز کې واکمنی درلودله او بالاخره د تاريخي موقعيت له مخې.

په شلمه پيړۍ کې ګرديز د وياړلو او تاريخي حماسه هستوونکو واقعاتو څخه د افغان انګليس د دوهمې جګړې په وخت کې د جنوبي جبهې د قوماندان سپه سالار محمد نادرخان څخه يادونه شوې ده.

افغاني سپه سالار محمد نادرخان ۱۹۱۹ د مې په ۱۴ نيته پورې د ګرديز په بالاحصار کې د استقلال د بېرته اخستلو د جګړې د نقشې او محاربوي پلان د تنظيمولو په خاطر هلته قرارګاه ونيوله. [2]

---

۱ آريانا مجله، ۱۳ ګڼه، ۸ مخ

۲ افغانستان در مسير تاريخ، ۷۶۴ مخ



# ۱۰ - لوګر

## (مثلث الشکله سیمه)

پخپله لوګر د یو ښار نوم نه دي بلکې زموږ د هېواد د یوې مهمې تاریخي سیمې نوم دي چې په تاریخي اثارو کې ترې زیاتې یادونې شوي او ځینې مهم ښارونه او محلات ورته منسوب دي.

لوګر د تاریخي، سوق الجیشي، مذهبي، زراعتي، اقتصادي او فرهنګي موقعیت لـه مخې زیات اهمیت درلود

**د لوګر موقعیت:**

د لوګر سیمه چې د ختیز نه لویدیز ته اوږده غوندې غزیدلې پرته ده څلور خواوې یې په دې ډول دي:

- د شمال له خوا: چار آسیاب.
- د لویدیز له خوا: د غزني مربوطات.
- د جنوب او ختیز له خوا: د پکتیا ولایت پورې نښتې ده. ۱

۱ پښتو آریانا دایره المعارف، ټ۷، ۱۳۵۵، ۹۳۷ مخ

په یو سند کې بیا د لوګر موقعیت داسې معرفي شوی:

لوګر د افغانستان د نهه ویشتو ولایتونو څخه یو ولایت دی چې د کابل ولایت په جنوب ختیزه خوا کې د ۶۲ کیلو مترو په پراختیا د ختیز طول البلد په ۶۸ درجو، ۵۵ دقیقو ۳۰ ثانیو او د شمالي عرض البلد په ۲۳ درجو، ۶۵ دقیقو په ۳۰ ثانیو باندې د کابل- غزني، وردګو، پکتیا او ننګرهار تر منځ او د سمندر د اوبو له تل څخه ۱۹۳۰ متره لوړ پروت دی. ۱

مګر د تاریخي سوابقو له مخې د لوګر جغرافیایي موقعیت داسې تثبیت شوی دی:

د لوګر سیمه د دریو تاریخي مهمو ښارونو یعنې کابل، غزني او ګردیز تر منځه د یوې لوی مثلث په شکل پرته ده او هغه رود چې د دې سیمې (لوګر) په نوم یادیږي. د دې مثلث له منځه تیریږي او د هغه د شمالي زاویې په راس کې د کابل سره د شینې په سیمه کې یو ځای کیږي.

د دغو دریو ښارونو د تاریخي اهمیت له مخې چې تړی یادونه وشوه هر یو په یو تاکلي عصر کې د مرکزیت او پلازمینې حیثیت درلود او د هغو ارتباطاتو او تړاو له مخې چې د لوګر سیمې په بیلابیلو دورو کې د نوموړو ښارونو سره درلود نو د جغرافیایي موقعیت په اعتبار د لوګر د موقعیت د تاکلو د پاره تر دې غوره بل تعبیر او معیار موندل کیدای نه شي او که دلته یې د یو لوی مثلث په چوکاټ کې واچوو نو لیدل کیږي چې د ضلعو په دریو راسونو کې یې د کابل، غزني (میدان وردګ) او ګردیز درې مهم ښارونه واقع دي.

لوګر څه د اقتصادي او جغرافیایي اهمیت له مخې او څه د فرهنګي، مذهبي او اقتصادي تاریخي اهمیت له مخې د تاریخ په اوږدو کې د همیشه د پاره د دې درو ښارونو له ښیګنو څخه برخوداره پاتې شوی دی او پخپله هم یوه زراعتي سیمه او د دغه دریو واړو ښارونو انبار خانه شمېرل کېدله. ۲

ښاغلي غبار د خپل کتاب د ګنداهارا په مبحث کې لیکلي دي:

په ګنداهارا کې لاندنی ولایتونه شامل دي:

- د پیښور سیمې
- یوسفزي
- هشت نګر (هشنغر)
- سوات
- باجوړ
- بونیر

۱ اتلس محلات افغانستان لوګر، ۴ – ۵ مخ

۲ افغانستان در پرتو تاریخ، ۲۶ مخ

- دير
- ننګرهار (جلال آباد وادي)
- لمپاکا، لمغانات
- کونړونه
- اسمار
- کابل
- لوګر
- وردګ
- کاپيسا (کوهدامن او کوهستان)[1]

په همدې اثر کې د ګنداهارا لوی ښارونه او کلي هم ښودل شوي دي. چې تقريباً پورتنی سيمې احتوا کوي:

- کابل، پخاور، (پيښور)، اټك، چاريکار، نوشاره، برکي راجان، جلال آباد، ننګري (په لغمان کې)، مندوړ (په لغمان کې) اسمار، ښيوه، شګي، چغسرای، لعل پوره، جلالر، (جلالا)، شبقدر، دير، امبيله، تره کي، ليان قلعه، ناوګی، کوتای کوټګي.[2]

د ښارونو د نومونو په پورتنی قطار کې ليدل کيږي چې د لوګر ښار (برکي راجان) ښودل شوي دي او له دې څخه دا خبره جوتيږي چې په دغه وخت کې نوموړي ښار د لوګر مرکز ؤ. برکي راجان د يوه ښار او اداري مرکزيـــت له درلودلو پرته د ګرويك بودا له سترو مرکزونو څخه ؤ او د خاص اهميت درلودونکي ؤ.[3]

د لوګر تاريخي اهميت د هغه د رودخانې تاريخي اهميت له مخې هم څرګند دي او لا هغه وخت چې د کابل لرغوني ښار د دې سين د مجرا په وروستی برخه کې دواړو غاړو ته موقعيت درلود لکه چې وايي:

د کابل لومړنی هسته چې د يو کلي په شکل موجوده وه په دوهمه دريمه او څلورمه پيړی کې د چکري د جنوب شرق زاويې څخه په تدريج سره شمال لويديز خواته تغيير محل وکړ لکه کمري، شيوه کي، تخت شاه، زنبورك، جبه کهنه او بالاخره هغې پوزي ته وروغزېد چې د شير دروازې او آسمايي د پخوانيو ديوالونو، بارو، برجونو او بالاحصار ګوشه ايزي بقاياوې کتلای شو.[4]

---

۱ د افغانستان تاريخي جغرافيه، مير غلام محمد غبار، ۱۳۰، ۸۵ مخ
۲ پورتنی اثر، ۸۵ مخ
۳ لرغوني او اوسني کونړ، رازقي، ۱۸۰ مخ
۴ آريانا دايره المعارف د کابل مبحث

د لوګر د تاريخي او جغرافيايي موقف په باب مرحوم احمد علي کهزاد ليکي:

کابل د خپل جغرافيايي موقعيت سره په يوه غرنۍ نقطه کې پروت دی. د دې تاريخي ښار په جنوب او شمال کې دوه نسبتاً پراخې خو ډېرې حاصلخيزې ساحې پرتې دي چې دواړه د کابل انبار خانې ګڼل کيږي لکه څومره چې د کاپيسا (کوهستان او کهدامن) جلګه د سرسبزۍ زيات نفوس، د حاصلخيزۍ اندازې، د کرنې د پراختيا او د تاريخي اثارو د بقاياوو له مخې د کابل په شمال کې شهرت لري عيناً په همدې فاصله به مقابل سمت يعنې د پايتخت په جنوب کې يوه سيمه د (لوګر) په نوم د کابل د شمالي سيمې غوندې يوه زرخيره، حاصلخيزه، سمسوره او د زيات نفوس درلودونکي خاوره ده، د دې دواړو سيمو تر منځه توپير دا دی چې کاپيسا زياتره باغونه او تاکستانونه لري او بالمقابل لوګر غله خيزه سيمه ده او که د رودونو په مقايسه وويل شي د لوګر د سين له اوبو څخه پوره ګټه اخيستل کيږي اما برعکس د کاپيسا د سيمې رودونه د هغو د تند حرکت په وجه دومره اوبه نه ورکوي.

لوګر د کاپيسا غوندې يوه سيمه ده چې د تاريخ په پړاوونو کې يې لويې لويې دورې تيرې کړي دي، منتهی د کاپيسا په مختلفو سيمو کې لکه بګرام، پايتاوه، شترك او نورو کې د لرغون پيژندنې، کيندنې او څيړنې تر سره شوي دي، حال دا چې په لوګر کې هغومره علمي تحقيقات کيندنې شوي نه دي. يوازې د لوګر دا موقعيت چې د کابل، ګرديز او غزني په منځ کې پروت دی او د درې واړه مرکزونه په بيلابيلو زمانو کې لوی اداري، فرهنګي، سياسي او مذهبي کانونونه وو او په تاريخ کې يې ډېر لوړ مقام درلودلـــی دی. ١

لنډ دا چې لوګر د غلې دانې له پلوه په زړه پورې ښه زراعتي محصولات لري او د کروميت کوارتسي او د عينك د سيمې د مسو غني معدنونه هم لري.

## د لوګر د تسميې وجه:

لکه چې د مخه وويل شو د کابل د شمالي سيمو د کاپيسا، بګرام غوندې لوګر هم د هغه د جنوبي غوندې تاريخي اهميت لري او په زياتو تاريخي آثارو کې ترې يادونې شوې دي.

بطليموس او د سکندر نورو مؤرخانو د کابل په حوزه کې نور ډېر ښارونه هم ياد کړي دي، اورتسپانا يا کابورا چې د اوسني کابل څخه عبارت دی او د دې ځای اوسيدونکي (کابلي تې) بلل شوي دي او د هغه تر څنګه خواوشا نقطې لکــــه دارګردا، (ارغنده)، لوکرنا، (لوګر) او بګردا (وردګ) ياد.کړي دي. ٢

که د فقه الغته په لحاظ د لوګر نوم وڅيړل شي، نو ګورو چې (لو) د پښتو د لوی مخفف دی او (ګر) د پښتو د (غر) معنا لري نو داسې حدس وهل کيږي چې د دغې لرغونې درې څخه مراد (لوی غر) دی او بيا

---

١ افغانستان در پرتو تاريخ، کهزاد، ٢١٤ - ٢١٥ مخونه

٢ د افغانستان پخواني تاريخ، ج١، کهزاد، ٤٥٤ مخ

په لوغر او بالاخره په (لوګر) اړول شوي دي.

ځیني وخت په محاورو کې (لوهوګر) هم استعمالیږي چې دا هم پوره تاریخي ریښه لري.

که د هغو سیمو نومونو ته مراجعه وشي چې د چین د بودایي مذهب نامتو راهب (شي فاهیان) ۳۹۹، ۴۱۴ میلادي د ګنداهارا د یو شمېر سیمو د لیدلو وروسته پرې اېښودلي لکه: (سوهوتو) سوات چلو چاشي لو (تکسیلا، فولو شا (پېښور)، (لویې) روه نو څرګندیږي چې (لوهوګر) هم دغو نومونو سره په ځینو برخو کې پوره شباهت لري.

نو په قوي احتمال سره ویل کیدای چې د (ګر) معنا خو (غر) دي او دا (لوهو) خامخا د سیمې او یا ښار معنا ورکوي او مجموعي معنایې (غرنی سیمه) بلل کیدای شي او د بطلیموس په قول کې هم د (لو) کلمه موجوده ده.

د لوګر ځیني سپین ږیری او د نظر خاوندان وایي چې (لوګر) په اصل کې (لوګرد) دي او دا ځکه چې په دې زراعتي سیمه کې چې به لو کیده نو ګردونه به پورته کېدل، نو دا سیمه په (لوګرد) وبلل شوه دا قول هم حقیقت نه نږدې ښکاري ځکه چې لوګریو حاصلخیزه زراعتي سیمه او د غلې انبار بلل شوی ؤ.[1]

## لوګر او اورمړي:

د لرغوني زمانې د استنادو له مخې د لوګر د سیمې ژبه (اور مړي) ده چې تر اوسه یې بقایاوې په برکي برک یعنې د هغه په پخواني مرکز کې موجودي دي.

د دې سیمې د محلاتو، نهرونو او کاریزونو نومونه خامخا یوه مشخصه مفکوره ایجادوي لکه کاریز رسن، کاریز تسن او کاریز درویش، کاریز خزر، پل چوګی، نهر راجان، نهر منج، نهر پند، جوی بابوس، ده کیشن، غندي کیشن، پاد خواب شانه او نور.

د (برکي برک) دا تسمیه چې همدا اوس هلته څو په شمار کورنۍ په اورمړي ژبه خبرې کوي دومره عجیبه او نوي نوم نه دي.

په همدې شان د (برکي راجان) تسمیه اورمړي ژبې تسمیه برکي برک سره د وزیرستان په (کاني ګرام) سیمه کې اوس هم باقي پاتې دي.[2]

په یو بل روایت په برکي برک کې د نولسمې پیړۍ په لومړیو کې اتو زرو کسانو په اورمړی خبرې کولې او اوس یې ځای پښتو نیولي دي او اورمړي ژبه له منځه تللې ده.

د میلادي زرو کلونو په لومړۍ نیمایي کې د هندوکش او د سلیمان د غرونو تر منځه اورمړي او پراچي ژبې مرو جې وې چې په جنوب ختیز کې یې د کابلستان ژبې بقایاوې دي.

---

[1] د استاد غلام جیلاني مدقق له خولې

[2] افغانستان در پرتو تاریخ، ۲۱۵ مخ

د پښتنو یو شمېر قبایل لکه اپریدي، ورکزي، منګل، ختك او خوږیاني د اورمړي له قومه دي.
د لوګر د ناوې جغرافیایي منظره مخکې تر دې چې د لوګر دغه محلات معرفي شي نو د موضوع د ښه وضاحت په منظور ښایي د لوګر د جغرافیایي موقعیت او د هغه د سین په اعتبار څه یادونه وشي کوم چې د لوګر د سین دواړو خواووته پراته دي.
د لوګر سین د کابل د سین غوندې د پغمان غره د اونۍ د غاښي څخه سرچینه اخلي او وروسته له هغې چې د وردګو له تنګي څخه تیر شي په زقوم خیل کې د لوګر حوزې ته ور ننوزي، د دې سین مخې ته (برکي راجان) برکي برك، پاد خواب روغني او د بابړو کلي راځي بیا وروسته د هونی سیدان څخه پل علم ته ورسیږي او چې د کافرو غونډۍ، تنګي واغجان، محمد آغي، مسهي او د سهاك له سیمو څخه تیر شي د شینې د کلي په شمال لویدیز کې د کابل د سین سره یو ځای کیږي.
د لوګر د سین د شمالي یعنې کینې خواته د نور ابدال غر او د بابوس کلي او دشته پرته ده او د سین ښي خواته (جنوب ته) برکي برك موقعیت لري همدا شان د لوګر ناوې ته لاندنۍ کوچني درې راوتلي دي چې د دې درو په نومونو کې هم د لوګرد تاریخي محلاتو پتې لګیدلای شي.
۱- دره تنګي (وردګ تیپانګي): دا دره د برکي برك په لویدیزه برخه کې پرته ده او د جنوب لویدیز په استقامت ورغزېدلې ده.
۲- سجاوند دره: چې پخپله سجاوند ځانته یو تاریخي بحث لري.
۳- د خروار دره.
۴- څرخ لوګر: دا دره جنوب ته پرته ده او دوه ښاخه کیږي:
- یو ښاخ یې د خروار درې سره نښتي.
- او بل ښاخ یې د ګردیز په استقامت امتداد لري.
۵- ال تمور (آل تیمور): دا دره د جنوب په لور ورغزیدلې ده چې د تیرې د کوتل په واسطه د ګردیز سره نښلي، د کابل ګردیز عمومي لاره د همدې درې له منځه تیریږي.
۶- سپیست دره: چې وروستی میدان (رستم میدان) ته ورځي او پکتیا ته اوړي.
۷- شواز دره: جنوب شرق ته پرته ده او د پکتیا د احمدزیو سیمو ته ورسیږي.
۸- خوشي دره: چې د ختیز په استقامت آزرې ته ځي او په حصارك غلجایي کې د کابل د پخوانۍ لارې سره یو ځای کیږي.
د لوګر ناوه چې تقریباً جنوباً او غرباً پرته ده دواړو غاړو ته یې دا سیمې پرتې دي.
- کابل، چار آسیاب، کلنګار، مغل خیل، پل علم.
باید وویل شي چې په لوګر کې یو شمېر سیمې شته دي چې او سیدونکو یې پکې یو شمېر تاریخي

شواهد (مسکوکات) موندلي دي او یا یې ورته پته شته دي او دا په دې دلالت کوي چې دا سیمې د زیاتو تاریخي اثارو د درلودلو له امله لا نور اهمیت هم لري.

## د لوګر تاریخي، فرهنګي محلات:

### سجاوند

د لوګر د ډېرو مهمو تاریخي، فرهنګي سیمو څخه یو هم سجاوند دي چې په لرغونو اثارو کې ترې یادونه شوې ده.

دا محل د اسلامي دورې په ادبي او تاریخي متونو کې لکه حدود العالم، د اصطخري المسالك و الممالك او د البیروني په مسعودي قانون کې د (شګاوند)، (سګاوند) او (سکاوند) په نومونو یاد شوي او سجاوند یې معرب شکل دي او وایي چې دا ناحیه د لوګر په جنوب لویدیز کې پرته ده او تر اوسه پورې یې نوم او نښان او موقعیت مشهور او خوندي پاتې دي او په ځینو لرغونو متونو کې یې د غزني سره تعلق تصریح شوي دي لکه چې حدود العالم وایي: اسستاح و سکاوند دو شهر کند بردراس کوه نهاده و جای بسیار کشت و بذر است اندر غزني.

البیروني په مسعودي قانون کې د شکاوند قلعه د لوګر په (آستاق) کې ګڼي.

دا دواړه تعبیرونه سم او پر ځای دي او دا ځکه چې سکاوند د لوګر په جنوب غربي ګوښه کې د غزني د لارې په سر پروت دي او د غزني پخوانی لار غزني ته له دې ځایه تیرېږي.

هغه څه چې سجاوند ته یې تر اسلام نه په مخکنیو دورو کې نړیوال شهرت ورکړي دي هغه د ډېر مجلل او ستر معبد موجودیت ؤ چې همدا اوس یې د خړابو بقایاوې د غره په یوه پوزه کې لیدل کیږي.

د سجاوند په مورد کې تاریخي سوابق او معلومات د دوو تنو له آثارو څخه په ښه توګه تر لاسه کیدای شي.

- یو یې چینایي سیاح هېوان تسنګ.
- او بل یې د (جوامع الحکایات د تاریخ) لیکوال محمد عوفي.

د سجاوند په هکله هیوان تسنګ وایي:

چې د (تسو-کو-تا) په سیمه کې چې غزني او د هغه مربوطات پکې شامل دي یو برهمني لوی معبد ؤ چې د (معبد شونا) په نوم یادیده او څه رنګه چې د شیوایي آئین او د آفتاب پرستی پورې مربوط آثار، د کابل، غزني او ګردیز د لوګر د دریو شاوخوا سترو ښارونو څخه کشف شوي دي نو په دې کې د هیڅ شك ځای نشته چې د سجاوند مشهور معبد دې دواړو د یو دیانت سره تعلق درلود.[١]

---

[١] افغانستان در پرتو تاریخ

ښاغلي مير غلام محمد غبار هم خپل په کتاب افغانستان در مسير تاريخ په ۲۶۰ – ۲۶۱ مخونو کې د سجاوند په مورد کې څرګندونې لري او وايي چې دلته د يو لوی معبد موجوديت د سجاوند د زيات شهرت سبب شوي دي.

تر هيوان تسنګ شپږ کاله وروسته محمد عوفي په خپل پورتني اثر کې خپلې پخواني خاطرات را يادوي او د ده د ليکنو څخه پوره جوتيږي چې د سجاوند دغه لوی معبد د دريمې هجري پيړۍ تر دوهمې نيمايي پورې يعنې د رای –(کملو) يا (کلمو) د سلطنت تر زماني يعنې د کابل د برهمنشاهي سلسلې دريم پاچا او د صفاري شاهي سلسلې د دوهم پاچا عمرو لث صفاري د واکمنۍ تر عصره پورې آباد ؤ لکه چې وايي:

(په هغه زمانه کې د هندوانو لوی معبد همدا سجاوند و او د هندوستان په اقتصاد دي ځای د بتانو نمانځته يې کوله.)

يوه بله موضوع چې د سګاوند د ښارګوټي او کلا تاريخي اهميت لا برجسته کوي هغه د سجاوند د مسکوکاتو موجوديت دي.

د (کوشانو يفتلي) پاچهانو د واکمنۍ د دورې د مسکوکاتو يو ډول چې زياتره د سکه پيژندونکو په منځ کې د شاهي (نګين) يا (تجين) باندې شهرت لري هغه يو ډول نيم تنه ايز هيکل دي او د افغانستان د ځينو سيمو د نومونو په ترڅ کې چې (سګاوند) ورته ويل شوي دي. سکاوند او د هغه معبد د دواړو اهميت په ډاګه کوي.

د قراينو له مخې ويل کېدای شي چې د سګاوند معبد لکه د خيرخانې معبد چې لرغون پيژندنې د دې دواړو هويت ښودلي دي د آفتاب پرستی يو برهمنی معبد ؤ. او د دې معبد زيات شهرت د (کابلي رايان) يا (کابلي برهمناشاهانو) د اقتدار په وخت کې په افغانستان سربېره د هندوستان په اقطارو کې هم خپور شوی ؤ.

د سجاوند معبد د عمرو ليث صفاري تر وخته پورې ودان ؤ مګر هغه وخت چې دې صفاري پاچا د کابل په استقامت د فتوحاتو په خاطر د زابلستان شحنه (کوتوال) چې (فرد عان) نوميده د څلورو زرو سپرو سره مامور کړ او هغه ځای يې ونيو، په دې مورد کې محمد عوفي وايي:

(فروغان چون به ذابلستان رسيد لشکر کشيد و شکاوند را بکشاد و بتان را بشکست و بت پرستان را بر اندخت و بعضی از غنايم به لشکريان داد و باقي به عمرو ليث فرستاد و فتح نامه نوشت و از وی مدد خواست.)

سجاوند تر دريمې هجري پيړۍ وروسته د څو نورو پيړيو په اوږدو کې د اسلامي ادب او فرهنګ له ډېرو مهمو مرکزونو څخه شمېرل کېده لکه چې يو شمېر د قرآن پاك لوړ مقامي عالمان او مفسرين له دې

ځایه راپورته شوي دي چې اوس یې مزارونه د خاص و عام زیارتونه دي.

د غزنویانو په زمانه کې یوه قلعه او محل په سجاوند کې بنا شوي و چې د غزنویانو د آبادۍ آثار د سجاوند د معبد پخوانیو دیوالونو او سنګکاریو پر مخ معلومیږي دغه اثر ښیي چې څومره اسلامي آئین، تمدن او معماري د پخوانیو معتقداتو فرهنګ او معمارۍ ځای نیولی ؤ. ۱

تر اسلام راوروسته هم سجاوند مذهبي موقف له مخې خاص اهمیت درلود لکه چې د شیخ سنان زیارت همدلته پروت دي څوک چې په ملك الکلام بانديږ مشهور ؤ.

د خواجه احمد او خواجه نور دوو روحاني شخصیتونو چې سره ورونه وو زیارت یې په سجاوند کې پروت دي.

په همدې شان لوی مؤرخ سراجي بابا چې د سراجیه په نوم د میراث د علم واضع دي هم دلته ښخ دي.
(د قاري دل آغا صاحبزي له قوله.)

د سجاوند د علمي شخصیتونو څخه یو هم صدرالاسلام امام الاجل شمس العارفین ابو جعفر بن طبغور سجاوندي دي چې په محمد ابن (طغور)، ابو عبدالله محمد بن طبغور او په مجد الدین احمد ابن محمد طبغور باندې هم شهرت لري او ځینې یې په ابو جعفر بن طبغور سجاوندي باندې یادوي.

د محمد ابن طیغور سجاوندي د نورو علمي او ګټورو آثارو په جمله کې لاندیني تالیفات مشهور دي:

۱- الوقف و الابتداء
۲- الموجز
۳- عین المعاني في تفسیر بیع المثاني
۴- انسان عین المعاني چې د عین المعاني لنډ تفسیر دي. ۲

## د برکي برك ښار:

د لوګر د لرغونو ښارونو څخه یو هم د برکي برك ښار دي چې د برکي راجان د شمال د ۱۱ کیلو مترو په مسافه موقعیت لري. دا ښار یو وخت د کابل ولایت پورې مربوط د لوګر د لوی حکومت مرکز ؤ.

برکي برك د ختیز طول البلد په ۶۸ درجو، ۵۸ دقیقو او ۵۲ ثانیو د شمالي عرض البلد په ۳۳ درجو، ۵۷ دقیو او ۵۸ ثانیو په منځ کې پروت دي. د برکي برك ښار، بازار، دولتي ودانۍ او ملکي کورونه لري. دوه جوماتونه هم په دې ښار کې شته دي چې یو یې د قاضي جومات او بل یې د آخند جي صاحب په جومات شهرت لري.

---
۱ افغانستان در پرتو تاریخ. کهزاد. ۲۶۰ – ۲۶۱ مخونه
۲ آریانا مجله، ۸ ګڼه. ۱۳۲۲ کال

څرنګه چې پخوا د ښار یو مرکز ؤ اوس هم د هندوانو څو کورنۍ پکې هستوګنه لري او دا موضوع دا خبره مدلله کوي چې یو وخت دا ښار د بودايي مدنیت او آئین یو مهم کانون ؤ او د ګندهارا له مهمو ښارونو له جملې څخه شمېرل کېده.

که چېرته په دې ښار کې علمي پلټنې وشي نو امکان لري چې د پخوانیو زمانو فرهنګي او مذهبي اثار به پکې کشف شي.

## برکي راجان:

د لوګر بل تاریخي ښار برکي راجان دي چې د برکي برک په شمال لویدیز کې پروت دي او د ختیز طول البلد په ۶۸ درجو، ۵۴ دقیقو او ۴۹ ثانیو او د شمالي عرض البلد د ۳۳ درجو، ۵۶ دقیقو او ۱۳ ثانیو په منځ کې موقعیت لري.[1]

د برکي راجان ښار هم یو لرغوني محل او د تاریخي سابقې له مخې ممکن د برکي برک سره هم ردیف وي.

## کلنګار او پل علم:

دا دواړه ځایونه د لوګر د مهمو محلاتو له جملې څخه دي چې د شرقي طول البلد په ۶۹ درجو، ۵۹ دقیقو او شمالي عرض البلد په ۳۳ درجو، ۲ دقیقو او ۱۸ ثانیو په منځ کې موقعیت لري.

کلنګار لکه د لغمان د الینګار غونډې یو تاریخي نوم دي او د ننګرهار د نوم د څېړنې په اساس چې (ناګار) یا (نګر) یې که مد نظر ونیول شي نو دا هم د (ګلن ګار) د وو کلمو څخه مرکب دي او لرغوني تاریخي ریښې لري او ممکن د مذهبي سوابقو درلودونکي هم وي.

اما پل علم د خپل جغرافیایي موقعیت په اعتبار چې تقریباً په درې لارې (د غزني، ګردیز او کابل لارو) په منځ کې پروت دي، خورا مهم سوق الجیشي اهمیت لري.

پل علم د دې مناسب موقعیت په اعتبار اوس د لوګر د ولایت د مرکز مقام تر لاسه کړي دي.

## د بابوس کلي او دښته:

د بابوس نوم له دوو کلمو څخه مرکب دي (با-بوس) او د بوس کلمه معمولاً زیاتره د یوناني نومونو سره نږدیوالي لري نو ویل کېدای شي چې دا محل تر اسلام نه د مخه هم موجود ؤ.

خو په یو روایت سره د بابوس نوم یو فیلسوف ته داسې نسبت ورکړ شوي دي:

بابوس فیلسوف بن کې هوس ساپیس بن کې مینوس د لوګر ولایت د بابوس د سیمې او سیدونکي په ختیځه هوس خیل ګنداری ؤ. نوموړي د لومړۍ هجري پیړۍ د پیل او د اسلام د ظهور په شاوخوا کې

[1] پښتو آریانا دایرة المعارف، ټ۴، ۱۳۴۴ کال، ۳۸۹ – ۳۹- مخونه

ژوند درلود او د خپل وخت يو مشهور قومي محلي امير ګڼل کېده او د علومو په فلسفو کې يې هم پوره لاس درلود. د لوګر ولايت په سيمه کې د ده په نوم يو لوی کلي دي چې هغه د بابوس لوی کلي ياديږي. [1]

د بابوس دښته هم يوه پراخه دښته ده او په دې وروستيو وختو کې به زياتره عسکري تطبيقات پکې اجرا کېدل

## خم هند

دا د لوګر يوه تارخي سيمه ده چې په خم هندو (د هندو خم) باندې شهرت لري او د کلنګار په ختيز کې پرته ده، د هغه ځای د اوسيدونکو له قوله هلته زيات مسکوکات تر لاسه شوي دي.

د (هندو) د کلمې په استدلال ممکن دا هم د هندوانو د استوګنې ځای ؤ.

## پادخواب شانه:

په لوګر کې دوه پاد خوابه موجود دي، پادخواب شانه د پاد خواب روغني ختيزې خواته پروت دي.

د لرغون پيژندنې د لاس ته راغلو آثارو په شهادت پادخواب شانه د لوګر يوه تاريخي او فرهنګي او يوه زراعتي سيمه ده، لکه چې د پادخواب شانه له زراعتي مځکو او شاوخوا باغونو څخه د کوشانيانو او غزنويانو زمانې پورې مربوطه مسکوکات موندل شوي دي او ممکن نور هم تر لاسه شي، همدا راز ځينې فلزي مجسمې او فلزي مهرونه او نور آثار هم دلته تر لاسه کېدای شي.

پادخواب شانه چې د لوګرد مشهورو کليو، د ډېرو ښکلو او سمسورو سيمو څخه شمېرل کيږي په دې ځای کې تخت شاه، کاريز چيجي او تخت زنبورك پروت دي، په تاريخي اسنادو کې ترې يادونې شوي او د بودايي مدنيت او برهمنی آئين د اثارو ادرسونه هم په دې ځايونو کې ورکړ شوي دي.

د پادخواب شانه په هکله د خلکو په منځ کې بيلابيلې محلي کيسې هم اوريدل کيږي ځينې وايي چې په اصل کې دا سيمه (باد، خواب) ؤ، او په دې ځای کې داسې په زړه پورې نسيم الوته چې سړي ورته خوب ووړ. نو دا ځای د غزنويانو د اوسيدلو محلونه (خوابګاه) يا (خواب خانه) يعنې د خوب ښه ځای ؤ.

پاد خواب شانه په اصل کې (بادخواب شاهانه) تعبيريدای شي. ځينې د دې سيمې د يو شمېر چينه زارو په باب کيسې کوي او وايي دا چينې د ننګرهار د سلطان پور د چينو سره تر ځمکي لاندې ارتباط لري او له دې ځايه د لوګر د پادخواب شانه چينې او د سلطان پور چينې د اهل هنود د عرف له مخې متبرك مقام درلودلې دي او د برسات په موسم کې د هغوئ ډيرې په زړه پورې کلنی اوږدې ميلې هلته پر ځای کېدلې

[1] د ساپيانو پيژندګلو. عبدالمالك صافي سرحدونو وزارت

د لوګر د دوشيني د اوسيدونکي مومن خان له خولې، دا سيمې زراعتي سيمې او چمن زار ؤ او سلطان محمود غزنوي درمو پاده وانانو به په دې چينو کې رمې راټولولي.
پاد خواب شانه چې د دوشيني ختيز ته او پاد خواب روغني يې لويديز ته پرته ده، پاد خواب شانه د غزنويانو د غوښو د اکمالولو او وريو د راټولولو او پاد خواب روغني يې د غوړيو د راټولولو ځای ؤ نوموړي دلته د بابك د ويساك ميلو ته هم اشاره کړې ده.

## کافرو غونډۍ:

د بودايي مدنيت او مذهبي مرکزونه زياتره د هوارو سيمو په نسبت د تپو او غونډيو په لمنو کې تاسيسيدل، نو د کافرو غونډۍ د نوم د تسميې له مخې دا واقعاً د کافرو غونډۍ وه او ممکن پخوا دلته بودايي مذهبي مرکز موجود ؤ او دا غونډۍ په يو بل نوم مسمی وه، خو کله چې اسلام دلته نفوذ وکړ او بودايي آئين ته يې دلته خاتمه ورکړه نو مسلمانانو دې غونډۍ ته د کافرو غونډۍ نوم ورکړ.

## هوني سيدان:

هوني د هونيانو د نوم څخه مشتق شوي دي، چې دا يو آريايي قوم دي او دلته يې هستوګنه درلودله او دا محل د دوی په نوم مسمی شوي دي.

## واغجان:

دا ځای هم د لوګر د يو تاريخي محل نوم دي چې له دوو کلمو «واغ-جان» څخه عبارت دي، البته دا هغه جان نه دي چې د انساني نومونو په پای کې راځي دا جان ځانته لغوي معنا لري او په فقه اللغت کې څيړل کېدای شي.
دا نوم د برکي راجان د نوم سره د مفهوم له مخې نژديوالي لري. او په هېواد کې دې ته ورته نور نومونه لکه سنجان، خنجان او داسې نور ليدلای شو.

## موسهي:

موسهي د هماغو عجيبو نومونو څخه يو نوم دي چې سم شکل يې لا معلوم نه دي. په دې ځای کې د يو کوچني آس او د هغه د سوار کار مجسمې چې د پخې ختې څخه جوړې شوي موندل شوي دي او نمونې يې پخوا د کابل په موزيم کې موجودې وې او په لړ توپير سره هغو ته ورته مجسمې له بګرام څخه هم لاس ته راغلي دي او معمولاً د تاريخي سابقې له مخې هغه د سترو کوشانيانو د عصر په وروستيو يعنې دريمې مسيحي پيړۍ ته نسبت ورکول کيږي.
په موسهي کې هم د يوې ډبريني غونډۍ د لمنې په بيخ کې چشمه زار شته چې زيات ماهيان پکې ليدل کيږي او د عقيدې په خاطر يې څوك نه نيسي. د موسهي يو بل تاريخي اهميت په دې کې هم پروت

دي چې د بلخ تکسيلا ډېره پخواني لار له بګرام څخه د پای منار له کوتله راتيره شوي او د کابل څخه موسهي ته او بيا له موسهي څخه بادام چشمه، يکاب... او حصارك غلجايي کې د کابل مشرقي د پخواني لارې سره يو ځای شوې ده.

## دشت تخت شاه او دستي ميدان

دا دواړه سيمې هم د لوګر د هغو سيمو په جمله کې شاملي دي چې ځينې تاريخي لرغونې شواهد ترې تر لاسه شوي دي.

لنډه دا چې د لوګر سيمې د تنګي موسهي څخه نيولي د التمور تر کوتله پورې او له څرخ څخه تر سجاوند پورې، په دې ارته ساحه کې په تاريخي زمانو کې اسلامي تاريخي زمانې دي او که تر اسلام نه د مخه، خو ټولې مختلفې غني فرهنګي دورې لري او هغه تاريخي شواهد چې په دې سيمه کې حد په حد ليدل کيږي د لوګر د فرهنګي، مذهبي او تاريخي اهميت په اثبات رسوي.١

## د لوګر سين او د هغه مذهبي تبرك:

د کابل د غرنيو حصارونو په لمنو کې زيات شمېر بودايي آبدات خپاره واره پراته وو.

خو د لرغونې کابل آبادي يا لږ تر لږه د (بودايي کابل) يعنې پخوا په هغه ځای کې پروت نه ؤ چې اوسنی کابل پکې موقعيت لري، بلکې ٧ –٨ کيلو متره د جنوب ختيز خواته د کمري او چکري په شاوخوا کې پروت ؤ.

د خورد کابل تسميه پخپله داسې ښيي چې لرغونې او (وړوکي کابل) په هغه چاپيريال کې پروت ؤ.

موسيو فوشه داسې نظريه څرګندوي چې بودايي او هندويي کابل لوګر د رود دواړو غاړو ته پروت ؤ نه د کابل د سين دواړو غاړو ته لکه چې اوس موقعيت لري.

څه رنګه چې د کابل د برهمن شاهي د تاج پوشۍ مراسم د کابل د معبدونو څخه په يوه معبد کې تر سره کېدل او دا معبد هم د لوګر د رود په غاړه پروت ؤ او احتمال لري چې يعقوب ليث صفاري هم له دې نامتو معبد څخه بتان وړي او بغداد ته يې استولي وي (زما په عقيده دا معبد هماغه د سجاوند معبد نوشاد به وي.)

او اوس هم د هندوانو مذهبي مخصوص غسل چې (آبهي شکه) ورته وايي د لوګر په سين کې اجرا کيږي.

د لوګر رودخانه او د هغې شاوخوا سيمې لکه ساکا، شيوکي، هندکي، او کمري د کابل د اهل هنود له نظره تر نن ورځې مذهبي اهميت لري او د کابل اهل هنودو د ويساك د اختر مراسم په همدې سيمه کې

---

١ افغانستان در پرتو تاريخ، ٢١٦ مخ

پر ځای کول او د لوګر د رود په اوبو کې یې غسل کاوه.

د بلې خوا نه د اسلامي مبلغينو لومړنی اقامت او د حضرت تميم «رض» او جبير «رض» د «علي الفضله» شپه په شهدای صالحينو کې ښيي چې د کابل ودانۍ دا وخت د لوګر په همدغه متبرکه «د اهل هنود له نظره» حوزه کې موقعيت درلود. ۱

**يادونه**:

څه رنګه چې د لوګر او د هغه د کلنګار او برکي برک او برکي راجان په اړوند دا لاندنی يادونې وروسته لاسته راغلي نو څکه د مبحث په پای کې ونيول شوي.

روايت دی چې په پخوانيو زمانو کې يو سړي «لهور» په نوم چې د هند د راجاګانو څخه ؤ او يو شتمن سړی د برکي راجان او برکي برک په سيمه کې چې ځو محدود کورونه يې درلودل استوګنه درلوده، نوموړي د کرنې سره خاصه مينه درلوده نو يې يو شمېر بزګران چې ناقلين وو راټول کړل او د دوی په مرسته يې د کرنې يو څه ځمکې آبادې کړې.

د ځينو سره دا عقيده ده چې دا د لوګر نوم د هماغه «لهور» بدل شوي نوم دي چې په لهو ګرد او لهو ګر او اوس يې د لوګر شکل ونيو.

وايي چې نوموړي دوې لوڼې درلودلې د يوې نوم «رايحه جان» او د بلې نوم «ګل نګار» وه او د اسلام په دين مشرفې شوي وې.

څه رنګه چې يې د پلار د عقيدې مخالف دين غوره کړي ؤ نو د مسلمانانو د نفوذ په وجه هند ته لاړ او هلته يې د لاهور د ښار موسس شو.

رايحه جان چې په برکي راجان کې اوسيدله، د پلار شتمنی ورته ورسيدله او د پلار د کرنې د سيمو د اوبولو د پاره يې د راجان وياله چې د وردګو په تنګي کې د لوګر له سين څخه را جلا شوي جوړه کړه.

نوموړي د ښه شهرت او محبوبيت له مخې چې په خلکو کې يې درلوده دا سيمه د دې په نوم رايحه جان مسمی شوه او بيا وروسته په راجان او ورپسې په برکي راجان تبديل شو. د لهور دويمه لور چې ميړه يې وکړ او د ميړه استوګنځي يې د ګل نګار او ور پسې په کلنګار تغيير شکل وکړ.

همدا شان ځينې سپين ږيري چې قول يې يو څه مصدق دي د برکي راجان د تسميې د وجې په باب وايي په اصل کې برکي د مير برک صاحب د نوم لنډيز دي او مکمل نوم يې مير سيد محمد برکي چې په ابو برکات باندې ملقب ؤ دي او د برکي راجان نوم هم له دې څخه اشتقاق شوي دي.

---

۱ تاريخ افغانستان، کهزاد، ص ۵۴۵



# ۱۱ - كونړ او نورستان

## (د افغانستان كشمير)

<u>مقدمه:</u>

لرغوني كونړ زموږ د هېواد د هغو ترو تازه، ښكلو په ځنګلونو سمسورو، د طبيعي بې سارو او په زړه پورې منظرو، د نه تسخيريدونكو تاترو، د شپږ شپيتو او يا ۶۶۶ څخه د زياتو درو مجتمع ده، چې د تاريخ په اوږدو كې يې د زيات سوق الجيشي، اقتصادي، فرهنګي او مذهبي اهميت د درلودلو له كبله ممتاز موقعيت درلود.

- كونړ يوازې په شنو ځنګلونو د پټو سيمو نوم نه دي بلكې كونړ د يو ډېر اوږد او لوی سين د تاريخي او نامتو سين نوم دي.

- كونړ د نورستان په وجود كې زموږ د هېواد يوه داسې غرنۍ سيمه ده چې د تاريخي لرغونو آثارو او مداركو له مخې د لسو ملكانو د جنګ د قبيلو په لومړی رديف كې ځای لري او د (الينا) نامتو او مهمه قبيله پكې اوسيدله.

- كونړ د يو ډېر لرغوني ښار نوم دي

- کونړ د هغې غرنۍ سيمې څخه عبارت ؤ چې د لرغونې ګندهارا په وجود کې يې خورا ځلانده او ارزښتناکه تاريخي سابقه درلودله.

- کونړ د سوق الجيشي او اقتصادي وتلي موقعيت او ارزښت درلودونکو سيمو يوه کليه ده.

- کونړ د هغې صعب العبورو، په ګڼو ځنګلونو پوړې، د ځپاندو رودونو، مستو آبشارونو او د طبيعي د لا ښکلو مظاهرو يوه تابلو ده چې د کشمير سره سيالي کوي او د افغانستان کشمير ورته ويلای شو.

او بالاخره کونړ هغه سيمه ده چې هر جهاني فاتح او يرغلګر قوت ته يې د غرونو هره تره او مورګه نه تسخيريدونکي سنګر دي او حتی مقدوني سکندر ترې ببرته روغ نه دي وتلي.

د پورتينو ممتازو او بې سارو مشخصاتو په اعتبار د لرغوني کونړ په باب هر اړخيز معلومات زما په يوه ځانګړي اثر (لرغوني او اوسني کونړ) په نوم کتاب کې ورکړ شوي دي او په دې مبحث کې چې اساسي برخه يې د کونړ لرغوني ښارونه او تاريخي کلي معرفي کيږي. بايد په ډېر معذرت ووېل شي له کومه ځايه چې د تاريخ په اوږدو کې کونړ د جغرافيايي صعب العبور خاص موقعيت او نه تسخيريدونکي درو له مخې، چې حتی ځينې سيمې يې همدا اوس (دست ناخورده) منزوي او په تجريد کې پاتې دي. نو د دې ملحوظاتو له مخې په تاريخي اسنادو کې زموږ د هېواد د نورو سيمو غوندې پرې ډېرې محدودې يادونې شوي دي. په زغرده او صراحت سره ويل کيدای شي چې د کونړ د ښارونو، کليو او تاريخي آباداتو او ابنيو په متعلق معرفت په مجهولاتو او تاريکيو کې پاتې دي او زموږ مؤرخان او ليکوال په دې نه دي بريالي شوي چې د کونړ په مورد کې عامه و تامه آشنايي ولرلای شي او د ګوتو په شمار چې کوم يو د کونړ په باب ليکلي دي هغه هم کافي نه شمېرل کيږي. د دې علت په بنا زما د پاره هم ډېره ګرانه ده چې د کونړ د تاريخي ودانيو او آبداتو په هکله لازم معلومات وړاندې کړم. دا دې په ډېره لنډه لاسي سره د کونړ مقدماتي معلومات او د کونړ ښارونه او کلي معرفي کيږي.

د دې لپاره چې د کونړ طبيعي منظره او د جغرافيوي موقعيت يو څو بېلګې د مقدمې په توګه وړاندې شوي وې چې لاندنی محتويات پکې شامل دي.

۱- د کونړ د تسميې وجه.

۲- کونړ په تاريخي اسنادو کې.

۳- د لرغوني او اوسنی کونړ جغرافيايي او تارخي موقعيت او حدود يې.

۴- لرغوني نورستان او بلورستان.

۵- د کونړ د سين (راسا) لنډه معرفي او معاونين يې.

۶- د کونړ د مشهورو درو نومونه.

۷- د کونړ د کوتلونو، غاښو او کنډوونو نوم اخستنه.
۸- د کونړ لرغوني ښارونه.
۹- د کونړ د لروغونو کليو نوم اخيستنه.
۱۰- د کونړ تاريخي آبداتو او ابنيو ته لنډه کتنه.
۱۱- ضروري يادونه.

## ۱- د کونړ د تسميې وجه:

که هغو تاريخي مدارکو ته چې د کونړ په باب پکې تذکرات راغلي دي وکتل شي نو په هغو کې کونړ د کنر، کنير، (کهويئس)، (کونړ) په مفهوم د دوو کلمو څخه متشکل دي چې نورستانيانو ورته کوو نر وايه. يعنې (و) د ضمې په زور اچولو چې دلته (کو) د ښوونه (زيتون) په معنا او (نر) د درې په مفهوم افاده کوي او عمومي معنا يې د (ښوونه دره) ده.

په دې نوم کې هم د نورو نورستاني کلمو او نومونو غوندې چې په نورو ژبو کې يې (ر) په (ړ) اوښتلي. بدلون راغلي او د کونر په ځای کونړ مروج شوي دي.[1]

دا چې کونړ واقعاً د زيتون دره وه. نو په تاريخي شواهدو کې داسې مدارك ښودل شوي دي:

پخوا د کونړ ناوه د کونړ د سين تر غاړې پورې په ګڼو ځنګلونو پټه وه او زياتره ونې يې ښونان او غوراڅکی (ښونه ته ورنه ونه) وو. او د دې ادعا د ثبوت په مقصد دوه دليلونه وړاندې کيدای شي:

- لومړی کله چې سلطان محمود غزنوي د لومړي ځل لپاره د اسلامي فتوحاتو په ترڅ کې د کابل له سين څخه راپورې ووت او د کونړ خولې ته راغی او د نور او قيرات په درو يې بريدونه کول نو يې د خپل لښکر سره د نجارانو. آهنګرانو. سنګتراشانو او نورو کسبګرو ډلې هم راوستلي وې تر څو چې د ځنګل ونې ووهي. تيرې ماتې کړي او د خپل لښکر د پرمختګ له پاره لاره تياره کړي.

- بل مستند دليل چې د دغو دوو ډولو ونو عمومي موجوديت ته مصداق ورکوي هغه دا دي:

کله چې د کونړ د ښکتنيو او هوارو برخو پخواني کورونو ته وکتل شي د هغوئ د کوټو په چتونو کې د ډاګو (دستك) د پاسه د درو پر ځای د ښوونانو او غوړ راڅکو لښتې اچول شوي وي او زما د يادو خبرو ده کله چې زمونږ د کلي خلکو د خپلو کورونو کوټې ښنډلي د هغو په چتونو کې د ښونانو او غوړاڅکو ځانګې پرتې وې او د بلې خوا نه ما شخصاً ۵۰ کاله د مخه د غرو د لمنو څخه د خپل کلي پورې په دې ډول ځنګلونو پټې ليدلي دي د دې شواهدو بر علاوه همدا نن له اسعد آباد څخه پورته د کونړ سين دواړه غاړې د غوړاڅو په بوټو تکې شنې ښکاري

[1] ريشه هاي تاريخي و فرهنگي نورستان. سميع الله تازه. وزارت اطلاعات و فرهنگ. مطبعه دولتي. ۱۳۶۷ کابل. ص ۱۵۹

پورتني شواهد په دې دلالت کوي چې د کونړ د غرونو لمنې د کونړ تر سین پورې د دغو دواړو ونو په ځنګلونو پټې وې او ځای یې درلود چې نورستانیانو دې درې ته د ښو نانو دره ویلې ده.

- د (کو) د معناوو له مخې د کونړ د تسمیې وجه.

د کونړ په نوم کې چې مخکینی کلمه (کوه ده، دا (کو) د مرحوم حبیبي د (پنځوس مقالې) د اثر په حواله په سانسکریت کې دوې معناوې لري:

- یوه یې د کوهي او ځا په معنا او بله یې د رود او اوبو، په معنا چې د کوهي کلمه همدا اوس زمونږ په ورځنیو محاورو کې ژوندۍ پاتې ده.

او بې له شکه د کوهي کلمه اوبه افاده کوي او که یې د اوبو او رود په معنا تکیه وشي په ډېر وضاحت سره حکم کېدای شي چې کونړ یعنې د اوبو او رودونو دره، او که د کونړ د جغرافیایي وضعیت په اساس ولیدل شي واقعاً په کونړ کې اوبه او رودونه بیخي زیات او حتی د (کو) (رود) کلمه هم د کونړ د ځینو رودونو په نومونو کې په څرګند ډول موجوده ده.

لکه د (وایګل د رود د معاونینو له جملې څخه ده کوی، ژاك کوي او ځام کوي، او که په وایګلي لهجه هم کو (اوبه) یا رود وبلل شي نو ویلای شو ده رود، ژاك رود او ځام رود او یا د کونړ د سین د جنوبي غاړې په معاونو رودونو کې د جنجریت کو (جینجرت رود) د کونړ سین د ختیزې غاړې معاونین شیشې کو او تیریچ کورکو.

لنډه دا چې که کونړ ته د ښوونانو دره وویل شي او یا یې د اوبو، او رودونو دره وبولو دا ګرده په عینې مصداق سره د کونړ د تسمیې وجه افاده کوي، د شك او تردید خبره پکې نه پاتې کیږي.

او که فرضاً نورې معناوې ولري زما سره یې د معلوماتو مدارك په لاس رانغلل.

## ۲- کونړ په تاریخي اسنادو کې:

د کونړ تاریخي سمسورې درې له لرغونو زمانو څخه نړیوال شهرت درلودلی دی، د سیلانیانو، زایرینو او جهان کشایانو او سوداګرو د زیاتې پاملرنې وړ ګرزیدلې نو د مؤرخانو او جغرافیه لیکونکو په آثارو کې یې یاد نې شوي دي او دا ځکه چې د وریښمو د لارې یوه څانګه همددې درې څخه تېره شوې، قیمتي تیږې او په زړه پورې طبیعي مناظر لري مګر د دې ټولو په سر کې چې کونړ ته یې خاص اهمیت او مقام ورکړی دی هغه د کونړ سین دی، چې په ویدې معلومو سرودونو او نورو اثارو کې ترې په پوره برجسته ګی او مکرر ډول یادونې شوي دي لکه چې په حدود العالم کې د نړیوالو جغرافیایي او تاریخي نومونو او اعلامونو په ترڅ کې د کونړ په هکله داسې لیکل شوي دي.

کونر شهریست خورد و و اندرو بتخانه هاست

په ویدې سرودونو کې د آریایي قبیلو د لیږدیدلو په لړ کې د کابل د سلطنت په بیان کې د کونړ څخه

داسې يادونه شوې ده:

... د رودونو د طبيعي مجراوو لارې يې پر مخکې ونيولې، شرقي، جنوبي او جنوب لويديز خواته تيت شولي يعنې يوه ډله يې د (کوبها) (کابل) څخه د نجراو، تګاو او سروبي له لارې (کونړ) او له هغه ځايه سواستو (سوات) او د سيند حوزې ته خپاره شول. چې په دې روايت کې د کونړ مفهوم په (راسا Rasa) کې افاده شوي دي.

د بابر په تزوك کې هم له کونړ څخه د هغه د معرفي او يوې کيسې په ترڅ کې داسې يادونه شوې ده:

(يو بل تومان سيمه) کنير (کنر) دي. دا ولايت په سرحد کې دي که څه هم د ده پراختيا د نورو تومانونو په شان نه ده مګر له دې امله چې حاصل يې کم دي نو لږه ګټه رسوي.[1]

ښاغلي احمد کلي کهزاد په خپل اثر (از سروبي تا اسمار) کې د کونړ په باب داسې ليکلي دي.

د کونړ دره چې د نورستان په څنډه کې پرته ده که څېرته د هغې سوابق، د طبيعي تولنيزې او جغرافيايي وضعې له مخې هغه په نظر کې ونيول شي نو ويلای شو چې نوموړې دره هم د نورستان يوه برخه ده.[2]

## ۳- د لرغونې او اوسني کونړ جغرافيايي او تاريخي موقعيت او حدود يې:

په تاريخي آثارو کې د لرغونې کونړ حدود هم په مختلف شکل ښودل شوي دي چې حيات افغاني د کونړ حدود داسې معرفي کړي دي.

- ختيز ته د باجوړ سمې.
- لويديز ته: لغمان
- شمال ته: د کافرستان غرنۍ سيمې
- جنوب ته: کامه ليکاني او مومند پراته دي.

د کونړ شمال لويديز ته يو جګ غر دي چې کونډ نوميږي او د سمندر له سطحې څخه يې جګوالي ۱۴۴۳۸ فټه دي.[3]

کونړ يعنې د کونړ ناوه يا ناحيه له اسماره راښکته د بر چغسرای (وټه پور) په شمول تر جلال اباد پورې ناوه معرفي شوې ده او حتی په زياترو مدارکو کې له وټه پوره راښکته د شګې او ګمبيري په ګډون د لغمان تر حده پورې اوږده ده او دا لويه ناوه د کونړ د درې په نوم يادېږي او دواړو خواوو ته يې د

---

[1] ريشه هاي تاريخي و فرهنګي نورستان، ۹۴ مخ

[2] پورتنی اثر ۵۲ - ۵۳ مخونه

[3] حيات افغاني، محمد حيات خان. ت۱. ژباړن، فرهاد ظريفي او طالبي. سرحدونو وزارت دولتي مطبعه. کابل ۱۳۷۰، ۳۷ مخ

يو شمېر لويو او کوچنيو، لمدو او وچو درو خولې راوتلي دي او په بل نوم هيڅ ياده شوې نه ده.

په تاريخي پيښو کې د پر ځله له اسماره پورته نورستان او له وته پوره پورته د پيچ دره بلل شوې ده لکه چې وايي:

هغه وخت چې د امير عبدالرحمن خان قواووې کونړ، شينوارو (مراد ترې د باجوړ د سيمې شينواري دي) او شيګل ته انتقال شوي (ريشه هاي تاريخي و فرهنګي نورستان) په دې يادونه کې اسمار لا څه چې بريکوټ هم د کونړ په سيمو کې نه دي شامل شوي په يو بل روايت کې بيا داسې راغلي دي: د باشګل زياترو نورستانيانو د چترال او کونړ د مسلمانانو سره خپلوۍ کولې، چې دلته بيا بريکوټ د کونړ په سيمه کې شامل ګڼل شوي دي.

که په عيني ډول او يا د (خاص کونړ) د نوم په اعتبار موضوع ته ځير شو نو داسې نتيجه به لاس ته راشي چې کوز کونړ (ښيوه) خاص کونړ او بر کونړ (اسمار) هغه نومونه دي چې د کونړ د ناوې نوم په واقعي مفهوم سره پرې تعبيريدلای او پراختيايي تاکلای شي او حتی په هغه زمانه کې چې کونړ د ګندهارا، بلورستان او کافرستان او لوی ننګرهار يوه سيمه بلل کېدله. بيايې هم په دغو ټولو مواردو کې خپل اصلي نوم او مشخصه ځيره ساتلې ده او د هغوئ په يادولو سره د هغه چا سترګو ته چې کونړ يې ليدلی ؤ، د کونړ عيني سيمه تجسم کوي له دې ځايه کونړ پرته د کافرستان او ننګرهار څخه يوه جلا او ځانګړې سيمه. ناحيه او ولايت دی

د اوسنی کونړ (ولايت) جغرافيايي موقعيت او پولې يې له کومه وخته چې د کافرستان په درو او سردرو باندې د اسلام پلوشې را خپرې شوي او د نورستان په نوم نومول شوي دي. له همدې دورې راهيسې دا سيمه د مرکزي ادارې تر حاکميت لاندې راغلي او د کونړ د اداري مرکز په حيث ورته ځای ورکړ شوي دي

کونړ د افغانستان په اداري تشکيل کې پخوا د ننګرهار ولايت (سمت مشرقي) په چوکاټ کې يوه ولسوالي وه چې مرکز يې لومړی خاص کونړ بيا بر کونړ (اسمار) او چې حکومت اعلی (حکمراني) ته يې ارتقا وکړه نو مرکز يې چغسرای ته انتقال شو تر څو چې د مرحوم دکتور محمد يوسف د صدارت په دوره کې (۱۳۴۴ شمسي) د افغانستان د ۲۹ اداري واحدونو څخه يو ولايت وشمېرل شو.

د تاريخي سوابقو له مخې د کونړ سيمه په د ننه کې دومره تجزيه شوې نه ده. خو د داکتر نجيب الله د قدرت په وخت کې ۱۳۶۰ شمسي د کونړ. لغمان او نورستان سيمې د يو مستقل ولايت په نوم په اداري تشکيل کې رامنځ ته شوې. بې له شکه دا يو عنودانه او نامعقول اقدام ؤ او دا ځکه چې د ارتباطي موضوعګانو له مخې پرته د چغسرای مرکزيت چې ټولو نورستانيان ته مرکز کيدای شول د هغوئ د پاره يې هر اړخيزې ستونزې رامنځ ته کړې.

د کونړ موقعيت او حدود د کونړ ولايت د هېواد په ختيز کې د يوې اوږدې ليکې په شکل د جنوب ختيز هندوکش د غرونو د سترو سلسلو په منځ کې له شمال څخه تر جنوب پورې د جلال آباد تر ښار پورې غزيدلې پروت دی، چې د ختيز طول البلد په ۷۰ – ۷۱ درجو د ۶ – ۲۳ دقيقو او ۱۴ – ۲۸ ثانيو او د شمالي عرض البلد په ۲۴ درجو، ۲۷ – ۳۴ دقيقو او ۱۳ – ۲۴ ثانيو په منځ کې د هېواد له مرکز (کابل) څخه د ۲۴۰ کيلو مترو په شاوخوا واټن لرې پروت دی. ۱

د سمندر د اوبو، د تل څخه يې لوړوالی د هغه د بيلابيلو محلاتو په لوړوالي او ټيټوالي کې سره توپير لري خو د غرونو لوړې څوکې يې د ۴۲۶۷ مترو په اندازه د بحر له سطحې څخه لوړې دي.

کونړ لکه چې د مخه هم ورته اشاره شوي له درو کونړونو کوز کونړ، خاص کونړ او بر کونړ څخه عبارت دي.

د کونړ د ولايت څلورې خواوې:

- شمال ته: د بدخشان ولايت
- لمر لويديز ته: د لغمان ولايت.
- لمر خاته ته: د سرحد آزاد سيمې.
- جنوب ته: د ننګرهار ولايت

د کونړونو عمومي مساحت ۱۱۸۱۹ کيلو مترو مربع په شاوخوا کې دی.

## ۴- لرغوني نورستان او بلورستان:

لرغوني نورستان چې د ګندهارا يوه په زړه پورې تاريخي، فرهنګي او مذهبي سيمه ده د سوق الجيشي، اقتصادي، کلتوري او مذهبي ملحوظاتو له مخې په تاريخ کې د خاص اهميت درلودونکې وه. او بيا کونړ هم په خپل ذات کې د دې نورستان يوه مهمه ناحيه شمېرل کېدله.

لرغوني نورستان د کونړ په شمول هغه غرنۍ برخې احتوا کوي چې له پخوانيو زمانو راهيسې د (اليناپانو) ټاټوبي ګڼل شوي دي او په بلورستان او کافرستان يې شهرت درلود.

د مؤرخانو د معلوماتو له مخې د ختيز هندوکش په جنوبي لمنو کې د کابل شمال ختيز او د جلال آباد شمال ته د پنجشير او د کونړ د سين د مجرا په منځ کې د هندوکش او تور غر د لمنو په لويديز ختيز په شمال او جنوب کې يو شمېر کرې ورې درې خو ښيخي زياتې شمېر درې، په ځنګلونو پټ يو سلسله غرونه او په واورو پټې څوکې چې اوښتل پرې خورا ګران دي او يو شمېر ځپانده سيندونه او رودونه چې نن ورځ په عامه اصطلاح ورته نورستان وايي او يوه پېړۍ زياته موده د مخه د کافرستان په نوم يادېده.

د دې سيمې ختيزې برخې ته بلور او لويديز ته کتور ويل کېږي. دا ويش نن د لغمان د نورستان او د

۱ د افغانستان جغرافيايي قاموس. ټ۵، ۱۰۰ مخ نقشه فواصل کيلومتري سرک ها

اسمار (کونړ) د نورستان یا په بل عبارت لویدیز نورستان او ختیز نورستان یو له بله جلا کوي.

لرغوني نورستان په عام جغرافیایي مفهوم سره د ختیز هندوکش جنوبي لمنې رانیسي او د هېواد یوازنۍ سیمه ده چې هلته د هندوکش محلي تمدن او فرهنگ تر زیاتې اندازې پورې لاس ناخوړلي او خوندي پاتې دي.

د دې موضوع یوازنۍ علت هماغه د دې سیمې کوهستاني توب دي چې د تاریخ په ټولو دورو کې سر ټيټي او یـوې گوښې ته مجزا پاتې دي او ټول عرف او عـادت یې پـه هماغه لرغوني حالت کې قرار لري.[1]

د لرغوني نورستان ستراتیژیکي او سوق الجیشي اهمیت له دې نشئت کوي.

او بل ښکاره ثبوت یې دا دي چې د اسلام پلوشې څو پیړۍ وروسته په ۱۳۱۳ هجري قمري یعنې له نن څخه پوره یوه پیړۍ او نه میاشتې د مخه دغه ولایت په سر درو او درو کې وځلیدلې. که څه هم د ډېرو پخوانیو زمانو څخه د الینایانو او د هغوئ استوگنځي د بلورستان او کافرستان څخه په تاریخي آثارو کې پراخې یادونې شوي دي خو پرته د یو شمېر سیاحانو نورو پردیو قوتونو په دې سیمه کې نفوذ کړې نه دي تر هغې چې مقدوني سکندر په ۲۲۷ قمري سلطان محمود ۳۸۸ هـ/۹۹۷ میلادي، امیر تیمور او محمد ظهیر الدین بابر ۹۱۴ د هغه د فتح کولو تکل وکړ خو د محدودې کامیابۍ نه په غیر بېرته ناکام ستانه شوي دي.[2]

د افغانستان د سیاسي تاریخ لیکوال سید مهدي فرخ د نورستان د پراختیا په باب داسې لیکي:

نورستانیان له چترار (چترال) او باجاور څخه تر بدخشان او پنجشیر پورې اوړېدوالي لري او د هغه ویش (پولې) پـه شمال کې د بدخشان په ختیز کې قاشقارد (کاشغر) او لویدیز کې اندراب، قطغن، خوست (نه د پکتیا خوست) او د کابل کوهستانونه او له جنوب څخه باجاور لمقان (لمغان)، (لغمان) او داسې نورو سیمو پورې تړلي دي.

ستوارت النفنسن د پخواني نورستان وسعت داسې ښیي:

نورستاني خاوره د هندوکش د سلسلو ډېره لویه، پراخه او د بیلوت تاغ یوه برخه رانیسي.

- شمال ختیز ته یې قاشقار.
- شمال ته یې بدخشان.
- شمال لویدیز ته کنداهارا (گندهارا).
- لویدیز ته یې اندراب، خوست، بلخ (پخور د قطغن او بدخشان او تخار سیمې هم په بلخ کې شاملې

[1] افغانستان در پرتو تاریخ، علي احمد کهزاد، دولتي مطبعه، کابل، ۱۳۴۶، ۲۷۳ مخ

[2] لرغوني او اوسني کونړ، رازقي، ۹۲ – ۹۳ مخونه

دي، اود کابل کوهستانونه واقع دي.

لکه چې ښکاري دا روايت د پورتني روايت سره دومره ښکاره تفاوت نه لري مگر سر لال ستن په «اندرموست ايشيا» نومي کتاب کې د نورستان پراختيا تر واخان پورې ښودلي ده او د واخان د شاوخوا سيمو کلاگاني او حصارونه د ده له ودانيو څخه گڼي.

نومړي عقيده لري چې دا سيمې د يوولسمې عيسوي پيړۍ په نژدې کې هغه وخت چې مسلمانانو برى تر لاسه کړ نو دا سيمې په کافرستان مشهورې شوې.

همدا راز «کپستان وو» او «يول» په دې عقيده وو هغه قبايل چې ايطالوي سياح مارکوپولو کشم ته نژدې د کوکچې د سين په غاړو کې ليدلي وو همدا نورستانيان وو چې ممکن هغه وخت يې د هندوکش د شمال په ناوو کې هم ژوند کاوه او کله چې په اتمه عيسوي پيړۍ کې ۱۷۶ هجري ۷۹۲ م کاپيسا سقوط وکړ، د شمالي سيمو سره د نورستان ارتباط هم وشليده او ورو ورو يې د جنوب له خوا هم پراختيا محدوديت پيدا کوي. ۱

## - د بلور او بلورستان موقعيت او حدود يې:

لکه چې د مخه وويل شو د نورستان ختيز او لويديز کې تور پوشان «کتور» او په مرکزي سيمو کې يې سفيد پوشان «بلور» استوگنه لري. او د بلورستان نوم هم د همدې بلور څخه اخيستل شوي دي. بلور او بلورستان د نورستان د سيمو يو پخواني نوم دي چې د گلگت او چترال د سيمو تر سيمو پورې اطلاقېده دا هغه لرغوني ولايت دي چې څلور خواوې يې په لاندې ډول ښودل شوي دي.

- د شمال خواته: د هندوکش د بدخشان ولايت له واخان او زيباك نه نيولي تر منجانه پورې.
- د جنوب له خوا: په گندهارا «د سوات باجوړ او اوسني سمت مشرقي.»
- د ختيز له خوا: د کشمير ولايت.
- د لويديز له خوا: د گندهارا په ولايت «د نجراو او پنجشير د ناوې پورې محدود دي.
- د شمال شرق له خوانه: يوه څنډه يې د پامير په سلسلې او سطحې پورې تړلې ده. ۲

د بار تولد په قول تر اوسه پورې د هغه ځاى يوه برخه سفيد پوشان ځانته بلور وايي او دا کلمه په چينايي اثارو کې تر اتمې ميلادي پيړۍ پورې ليدل شوې ده.

په تاريخي آثارو کې د بلورستان پولې په مکرر ډول او تقريباً په اتفاق نظر سره په لاندني توگه ښودل شوي دي:

- د کشمير د ناوې له يوې برخې څخه تر کابله.

---

۱ پورتني اثر، ۹۵ – ۹۶ مخونه

۲ جغرافياي تاريخي افغانستان، مير غلام محمد غبار، ۱۵۶ مخ

- او د شمال له خوا نه: تر یارکند او کاشغر پورې ګنډل کیږي.

قاضي منهاج سراج او محمد عوفی د غوریانو د دورې مؤرخانو هم بلورستان د شغنان، تخارستان او د درواز د غرونو په ردیف کې راوستلي دي.

د ښاغلي غبار (افغانستان و نگاهی به تاریخ آن) د مقالې په استناد بلریا بولر (اوسني نورستان او چترال) یو ولایت دي چې حدود یې په پورتني ډول دي.

سرهنري یول چې پخپله زمانه کې د ډېرو مشهورو مؤرخانو څخه وو د بلورستان په هکله لیکي: د کافرستان (نورستان) ولایت او د باطل پرستی د مملکت یوه برخه وه چې له کابل څخه تر کشمیره یې اوږدوالي درلود او د منځنیو پیړیو اسیایان ورته (ابها ما) (بیلاور) وایي.

بلورستان په پخوانیو زمانو کې د باختر ولایت یوه برخه ده.

مارکوپولو د پامیر شمالي سیمې په بلورستان کې شاملې ګڼي.

نور تاریخي اسناد د بلورستان د پراختیا لمن د ختیز خواته چین سره هم سرحد ښیي لکه چې حدود العالم هم د بلورستان حدود په یو څه تفاوت سره داسې ښودلي دي.

- د بلورستان پراختیا د شرق له خوا نه د کاشغر او یارکند پورې.

- د جنوب له خوا نه: د کشمیر ملحقات لکه، هونتر نګر، ګلګیت، پنبیل، یسین (اوسني کشمیر لویدیز ته) او د چترال پورې محدود دي چې د کشمیر او اوسني ماوراءالنهر تر منځه جاده د بلورستان او واخان څخه تیریږي.

(د حدود العالم په حواله، ریشه هاي تاریخي و فرهنګي نورستان، ۵۸، ۶۴ مخونه) د چین په تالیفاتو کې (۸ پیړی) او هم د مسلمانانو په تصنیفاتو کې بلور او بلورستان په یو مملکت باندې اطلاقیده چې حدود یې د مخه ښودل شوي دي. ۱

د پورتني اثر په قول بلورستان تر پنځوسو زیات کلي او باندې لري.

## ۵- د کونړ د سین (راسا) لنډه معرفي او معاونین یې:

د کونړ سین چې په لرغونو تاریخي اثارو کې په عمومي ډول د (راسا) په نوم راغلي دي د کونړ اوږدې ناوې په منځ کې تقریباً تاو راتاو پروت دي یو لوی او څپاند سین دي.

دا سین د لرغوني زمانې راهیسې د اوړي او ژمي په موسم کې د زیاتو اوبو درلودونکي دي دا چې ولې د کونړ سین تر کامې وروسته د کابل په سین زیات شهرت لري علت یې یوازې د کابل د تاریخي مرکزیت اهمیت دي.

د کونړ د سین سرچینه د ۴۰۰۰ مترو له لوړوالي څخه د ختیز هندوکش له بیخه د بروغیل له کوتله

۱ جغرافیاي تاریخي افغانستان، ۱۵۶ – ۱۵۷ مخونه

چې د واخان او يار کند (يار قند) وادي سره نښلوي سرچينه اخلي يا په بل قول دا سين چې د څلورو زرو مترو له لوړوالي څخه د هندوکش له بيخه او د اصلي مسير څخه رابښکته وښيو او ګڼو غرونو د لوړو سلسلو او ارتفاعاتو څخه رابښکته کيږي او په تدريج سره زياتښت او د جريان شدت مومي.

د يو بل اثر د روايت له مخې د کونړ سين د پامير له لوړو سطحو څخه چې له (پشت خر)، (پشت خار) څخه وړاندې نه دي او دا ځای د بيلوت تباغ يوه څوکه ده چې د آمو (اکسوس) سرچينه هم پکې ده د هغې د نوموړي څوکې له بلې غاړې څخه راوتلي دي.

## - د کونړ د سين نومونه:

په تاريخي مختلفو آثارو کې د کونړ سين لومړي په (راسا) او بيا په (سيند رود)، (اسند رود)، (هيوان)، (مهران)، (د بسند سيند)، (بيلام)، (کاشغر)، يارقند، (يارکند) سيند، (چترال سيند)، (لوی سيند) خواسيس، جوس، يو اسپله او په داسې نورو نومونو ياد شوي دي. برسېره پردې چې د خپل مسير په هره سيمه کې د هغې سيمې په نوم ياد شوي دي لکه د کابل د سلطنت بيان ورته د کامي سيند ويلي دي د افغانستان د آريانا په معلومو سرودونو کې د راسا په نوم ياد شوي او د ريګويد په سرودونو کې هم څو ځله د دې سيند يادونې شته دي او کله کله هم د کابل د سيند د مرستيال په صورت ياد شوي دي.

## - د کونړ د سين معاونين:

### لنډی سين:

دا سين د باشګل د رود په نوم هم يادېږي او د باشګل رود د (ښکوري) او (ښتلي) د رودونو څخه مرکب دي. د دې سين د جريان لوري له شمال څخه مخ په جنوب دي.

په بديوا کې د بريکوټ د شمال په يونيم کيلومتری کې د چترال. بليانګل يا (بليام ګل) په رود ورګډيږي.

تر بديوا وروسته د پخې ګام، شد ګل، منلګل. بدنيشاپر او پروک د رودونو سره ورګډيږي. (د کلام) ارناوی او بديوا رودونه هم ور سره يو ځای کيږي او په بريکوټ کې د کونړ د سين سره ورغاړه وځي.

دا سين لاجور دي او سريع الهضمه اوبه لري.

### - د پيچ سين:

د پيچ سيند د دوو لويو سيندونو د تشکيلونکو رودونو څخه عبارت دي:

الف: چې يو يې د وايګل رود دي او دوهم له درو رودونو يعنې ده کوي، ژاك کوي او ځام کوي څخه تشکيل شوي دي. نور وړوکي څانګې لري لکه همشوز رود، بنشه اي رود، د قلعه ګل رود.

ب- د پارون رود:

د دې رود سره د ده په مسير کې د کانتيوا رود، ليندا لام رود، او په کنده ګل کې ور سره د کوړنګل رود په وته پور کې ور سره، د کتيار کلا رود او بالاخره د دمکلي په شمال شرق کې د لوی سين سره ورګډيږي.

ج: د کونړ د سين د جنوبي غاړې معاونين د سرچينې راهيسې

ارسون، جنجريت کو، دريز، ايسين، اچست، چترال، شيلي، اوردګل، ارز، ارکاري، لتکو او داسې نور.

## - د کونړ د سين د ختيزې غاړې معاونين:

ارندو رود (ارنوی رود)، د مل عشريت، ګله تګ، دروش، شيشې کو (ششي رود) ګيسو، نيروز، چغوز، دينين، نوروت، ګو لنګو، جوی حرام، پرې ايت، مرادې برنيز، برنګول، ريشون، ګوګر، تيريچ کورکو، يونې، مير اکرم، سنوغور، ارسپور چمر کند، يار خون.[1]

- د کونړ هغه سيندونه چې د کونړ د نورستان څخه يې سرچينه اخستلې ده:

## الف: د رمګل رود (راميګل رود):

درمګل رود د پوشال رود او د ليز رود څخه تشکيل شوي دي چې معاونين يې د پکياول رود، کيوشت او د (کيونبت ننبا) او د باندوي رود، کولم رود، کوله تن رود او بالاخره کله چې د لغمان برخې ته ورسيږي د الينګار په نوم مسمی کيږي.

## ب: فرجغان رود

دا رود د چارسدر. پيتك او کارك د رودونو څخه متشکل دي او کله چې د دولت شاه څخه ور تير شي نو د اليشنګ د سين په نوم ياديږي.[2]

پرته له دې د کونړ د سين په مسير کې ځاى په ځاى لامده خوړونه هم راتوئيږي.

## ٦- د کونړ مشهورې درې:

الف: له کوز کونړ څخه پورته او د کونړ د سين ښی خواته:

- دره نور.
- مزار دره.
- د يو ګل (د نور دره)
- د باډيل دره

[1] لرغوني او اوسني کونړ. پوهنوال رازقي نړيوال. قلمي نسخه. ۵۸ – ۶۸ مخونه
[2] د پورتني اثر ۶۹ – ۷۰ مخونه

- د لچك دره
- دا ډوال دره

له ښکته نه پورته د کونړ د سین کینې غاړې ته:

- شالي وولي
- شونکړي دره
- ناوې دره
- مرورې دره
- د انګام دره
- د کوريکا دره
- د خارا او قاسم دره
- د شنه ګل دره: د ناړي په خوله کې.
- د ساو او ثونك مقابل دره.
- د شال او سنګر مقابل دره

ب: له چغسراى پورته د کونړ سين ښي غاړې ته:

- د پیچ دره
- شیګل دره
- او يو بله کوچنی دره.

ج: د کونړ داخلي درې:

- کامديش دره
- باشګل دره
- وايګل دره
- د کانتيوا دره
- د کتاى دره
- د پارون دره
- د شومان دره او درې نورې لويې او ورې بې شمېره درې او خوړونه. ١

---

پورتني اثر ٧١ – ٧۶ مخونه

## ۷-د کونړ د مشهورو کوتلونو، غاښو او کنډوونو نوم اخستنه:

الف: هغه کنډوونه او غاښې چې د کونړ په سرحدي برخو کې موقعیت لري: له ښکته پورته:

- د شالي وولی کنډو
- د میتی کنډو
- د میا غاښې
- ګلونو غاښې
- چرتنې غاښې
- ګنډیرو غاښې
- سوران کنډو
- ګنډیرو غاښې
- ناوه پاس کنډو (ناوې غاښې)
- ښه رود کنډو
- مرورې کنډو
- لیتی کنډو
- بنشی کنډو

او داسې نور.

ب: هغه غاښې چې نورستان د نورو سیمو سره نښلوي:

- د زیرك غاښې
- مندال غاښې
- کیتوي غاښې
- پارون غاښې
- پوښال (پوشال) غاښې
- چمار غاښې

ج: د نورستان هغه کوتلونه چې د ننه په نورستان کې سره سیمې نښلوي:

- د پیرو دم غاښې
- کاما کوتل
- ځیسین غاښې
- کوکجاني دا غاښې

- حامين دا غاښې
- کنجل واټ کوتل
- ساوات کوتل
- بامي کوتل
- پريت غاښې
اګن باداغاښی
- پت کيون (پچيکيون) غاښې او داسې نور.[1]

## ۸- د کونړ لرغوني ښارونه:

کله چې د کونړ د ښارونو په باب موضوع مطرح کيږي د ټولونه د مخه د جغرافيايي ممتاز موقعيت او د ښه مناسب توب د مشخصاتو له مخې چې کلاسيك ښارونه په دغسې غورو محلاتو کې آباد شوي دي بې له شکه د کونړ هغه مناسبه نقطه پام ته راځي چې د پيچ سين د لوی سين سره او يا د اسمار دره د پيچ د درې سره د دمکلي او کوزي کرهالي په برخه کې مروري (اندراج) ته مخامخ يو ځای کيږي او مخ په ښکته امتداد پيدا کوي، د دې محل د ښار اوسني نوم اسعد آباد (اسد آباد) په چغسرای مشهور دي. مګر په تاريخي اسنادو کې د کونړ د دې لرغوني ښار په متعلق معلومات يو څه ګونګ او په تورتم کې ليدل کيږي، ما تر وسه پورې هڅه وکړه چې د دې ښار (ښارونو) په متعلق په يو څه مستدللو او منطقي شواهدو ولاړ حقايق وړاندې کړم چې هغه به د کونړ د دې ښار په مختلفو نومونو کې تر څيړنې لاندې ونيول شي لکه:

الف: چغان سرای (چغان غونډی)

ب: د نيسا ښار

ج: د کونړ ښار.

د: ننګرښار.

هـ: چغته السرای

و: دمکلی.

الف: د چغان سرای تاريخي ريښه يوازې د چغان غونډی په نوم کې څيړل کيدای شي او که د نورستان قبيلې وڅيړل شي نو يوه مشهوره قبيله يکې چغانيان دي چې په مختلفو تاريخي آثارو کې ترې

---

[1] ريشه هاي تاريخي و فرهنګي نورستان ص ۱۴ - ۱۶

يادونه شوې ده. لكه مرحوم حبيبي د زين الاخبار د پاورقۍ په ۱۵۷ مخ، بيقهي تاريخ په ۴۶۵ او مقدسې د چغانيانو څخه تذكرات لري او په نتيجه كې ويل شوي دي چې چغانيان د كاموجي يعنې كمبوجاس له قبيلې څخه دي او په دوو اساسي قبيلو ويشل كيږي لكه كام دكته قبيلي څخه، او كامتوز. ۱

نو په قوي احتمال سره كله چې چغانيانو د كونړ په دې برخه كې واكمني درلوده دلته يې ودانۍ جوړې كړي او د چغان غونډۍ د دې په نوم مسمى شوه.

په يو بل روايت سره د چغان غونډۍ د كلا بنسټ ايښودونكي يا ننگرشاه ؤ چې د مخه پرې بحث وشو او يا د چغانيانو د واكمنۍ په وخت جوړه شوې ده.

خو د مداركو له مخې د دې استحكامي كلا د جوړولو نسبت ننگرشاه ته زيات محقق دي د دې كلا د جوړولو مقصد هماغه د كلاسيكو كلاگانو د جوړولو د سبك له مخې ؤ چې د دغې محلاتو په حاكمو نقطو كې جوړېدلې.

د چغان غونډۍ د كلا څخه د شاوخوا درو خولې او سيمې په ډېره آسانۍ سره د څارنې لاندې نيول كېداى شي او د دې كلا په واسطه څاريدونكي سيمې پرته د كوم طبيعي مانع څخه مدافعه كيداى شي، او د ننگرښار ساتنه يې تامينولاى شو.

همدا اوس د دې استحكامي كلا خپل تدافعي ارزښت له لاسه وركړې نه دي او د يوې پوځي چوڼۍ په حيث ترې گټه اخيستل كيږي. او د دې ښار بالاحصار شمېرل كيږي. ۲

متاسفانه په پورتينو مداركو برسېره په دې باب نور اسناد مې تر لاسه نه كړاى شول.

## ب: د نيسا ښار:

په تاريخي آثارو كې تر ۱۰ د زياتو نيساگانو له جملې څخه يو هم د كونړ هغه ښار دي چې د مقدوني سكندر د لښكر كشۍ په وخت كې ورته نيسا ويل شوي ده.

كله چې په افغانستان كې د مقدوني سكندر د لښكر كشيو جريان ته وكتل شي نو نيسيا، نيسه، نيسا يا نيكايه او داسې نورو تقريباً مترادف ډولو د يو شمېر محلونو او ښارونو د نومونو څخه يادونې شوي دي او د دې جريان د موضوع نه خارج هم په مرو او بلخ كې د نيسا په نوم تذكارات راغلي دي.

دلته دا فكر پيدا كيږي چې په دې تقريباً يو نوم. به دا ځايونه او محلونه د مقدوني سكندر د سفر د جريان پورې مربوط وي، حال دا چې دغسې نه ده، نو په تاريخ كې به بيخي په ندرت سره داسې يو نوم پيدا شي چې د جلا جلا محلونو او ښارونو نوم وي، ما تر يو حده پورې په يوه مقاله كې دغه نيساگانې وخيړلې خو دلته يوازې په هغه نيسا بحث لازم گڼل كيږي چې د كونړ د نيسا پورې تړاو لري.

---

۱ ريشه هاي تاريخي و فرهنگي نورستان، ۶۶ مخ

۲ د افغانستان استحكامي كلاوې، حصارونه او بالاحصارونه، رازقي نړيوال خطي نسخه، ۱۰۸ مخ

په کونړ کې د نيسا د ښار بيلګې چې په يو شو نيساګانو کې هغه څرګندې شوي دي لکه چې احمد علي کهزاد د نيسا د ښار د موقعيت د تثبيتولو په مقصد په لاندې ډول په تفصيل سره داسې ليکلي دي:

... شرق ته د يوناني سکندر د لښکر کشيو څخه لا د مخه له دې جملې نه د افغانستان په خاوره کې د نيسا ښار زيات شهرت لري، د دې ښار د شهرت علت د هغه په زياتو انګورو په تېره بيا د اُومانو (هومانو) د شرابو له مخې ؤ چې حتی د يونان په داستانونو او اسطورو کې يې نقلونه راوړل کېدل.

ويل کيږي چې د (ديونيزوس) د انګورو د شرابو رب النوع د دې ښار د تاداو اېښودونکي ؤ او له دې کبله دا ښار په (ديو نيزوس) مشهور شوي ؤ چې د يوناني ژبې له مخې د يو (خدای) او نيزوس د (ښار) په معنا دي.

او د نيسا ښار يعنې (د خدای ښار) نوميدلي او دغه صفت ورته يونانيانو د لقب په توګه ورکړي دي.

لکه چې د مخه اشاره وشوه شرق ته د يونانيانو تر راتګ نه مخکې دا خبره مشهوره وه چې د ميترولوژي (د شرابو رب النوع) په اصل کې د دې ښار اوسيدونکي ؤ، د هغې يوې تاريخي پيښې په استناد چې يې سکندر د پوځي کارنامو په ګزارشونو کې مشهور کړي دي هغه دا دي، کله چې سکندر دغه ځای ته راورسيد نو د دغه مقدوني ځوان فاتح او (اکوفيس) د ښار (نيسا) د مشر تر مينځه ملاقات وشو، نوموړي مشر د سکندر څخه وغوښتل چې د بکوس د يونانيانو د شرابو رب النوع په خاطر د دې ښار د خلکو د آزادي درناوی وکړي او په چارو کې يې مداخله و نه کړي او سکندر د هغه دا غوښتنه ومنله.

د نيسيا يا نيسايا د ښار موقعيت دي د افغانستان په ختيز کې د کابل او ننګرهار، د ولايتونو تر منځه سيمو (سروبي يا لغمان) کې وپلټل شي.

د هغو ننبو ننبانو څخه چې دې ښار درلودلي يوه يې يو جګ غره ته چې په مروبي مشهور ؤ نژديوالی او بله علامه يې د پيچکو (پيروتی) او عشق پيچان د ګل بوټو شته والی ؤ چې يوناني سرتيرو به هغه د تاج په ډول له خپلو سرونو څخه تاوه ول او دا له دې کبله چې په پخوانی يونان کې دا د افتخار او ميړانی د علايمو څخه شمېرل کېده.

ځينو مؤرخانو د دې ښار موقعيت په هډې او د ننګرهار ولايت په منځنۍ برخه کې او ځينو په لغمان (قرغه اي) کې ښودلي دي.

په يو بل روايت چې يو څه ښايسته ښکاري دا ښار د کونړ د سين او د پيچ د سين د يو ځای کېدو په برخه کې موقعيت لري چې دغه ځای د چغسرای په نوم شهرت پيدا کړي د پيچ او د اسمار د درو په خولو کې پروت دي او د پوره توجه وړ دي د نيسا ښار د دې ننبو ننبانو د مطابقت له مخې د کونړ په همدې محل کې واقعيت لرلای شي لکه هغه څه چې د نيسا د ښار د ريس بکوس سره د سکندر د ملاقات

موضوع او د شرابو رب النوع ؤ. [1]

که موضوع لنډه شي نو د کونړ د دغه ځای ښار يو وخت د نيسا په نوم زيات شهرت درلود.

## ح: د کونړ ښار:

په تاريخي مدارکو کې د اسلامي د لومړي دورې د تاريخونو او جغرافيه په جمله کې حدود العالم چې په کونړ کې کوم ښار په ګوته کړي دي د هغه مشخصه يې داسې ښودلې ده:

(کونړ شهريست خورد اندرو بتخانه ها.)

پوښتنه دا مطرح کيږي چې دا ښار د کونړ په کومه برخه کې واقع دي او که د بتانو خبره وي خو په دغه زمانه کې د کونړ په هره سيمه کې بتان او معابد موجود وو په قوي احتمال سره چې حدود العالم د کونړ کوم ښارته اشاره کړې ده همدغه د کونړ د کرهالی په سيمه کې د چغان غونډۍ د لاندې محل دي او دا ځکه چې دلته د تاريخي ابنيې نښانې شته دي او په يو ښار دلالت کوي.

## د: ننګرښار:

د اسعد آباد د ښار بل پخواني نوم ننګرښار دي چې د ننګر کنډ نوم يې ښه نښانه ده.

د تاريخي آثارو او شواهدو او ګرګندونو له مخې د دې ښار موقعيت بيخي ځرګند دي او هغه د چغان غونډۍ يعنې د چغان ښار په خرابو باندې جوړ شوي دي.

د کونړ يو تکړه ليکوال او واقعه ليکونکي محترم عدالخالق اخلاص د کابل په مجله کې د ننګرښار په باب يو لړ معلومات په لاندې شرح وړاندې کړي دي:

د جلال آباد د شمال ته د ۲۷ کروه - ۹۲ کيلو مترو په فاصله ننګرښار موقعيت لري. دا يو مهم او تاريخي ښار دي او لرغون ډوله اثار د هغه په يوه تپه کې چې په چغان غونډۍ مشهوره ده ليدل کيږي دا تپه د اسمار د سين او پيچ د سين د يو ځای کېدو په شمال شرقي کونج کې پرته ده او اوس هلته يوه عسکري چوڼۍ ده.

د دې ښار په متعلق پخواني خلك وايي: چې د دې ځای واکمن د ننګرشاه په نوم يو بت پرست ؤ او د دې غره پر څوکه يې د تيږو او چونې (ګچ) څخه يو محکم ډېرين عمارت د خپلې استوګنې او پناګاه په مقصد جوړه کړې ؤ، لکه چې اوس هم د دې غره څوکې ته په پښتو ننګر کنډ وايي.

د دې تپې نه ګرد چاپېر يو لوی او آباد ښار موجود ؤ چې همدا اوس د هغه د ځلورو ديوالونو، کوټو، ښکلو او مقطعو صفو نښې نښانې د توږل شويو تيږو او چونې څخه تيار شوې ؤ موجود دي.

د دې حکمران وزير شامير نومېده، ده هم ځانته يو عمارت درلود چې اوس د وته پور د پاسه کلی د

[1] افغانستان در پرتو تاريخ، کهزاد، ۱۶۰ - ۱۶۱ مخونه

شامیر کوټ په نوم مشهور دي.

د چغان غونډۍ ګرد چاپیر پخوانی شیان او آثار او ابنیي د هر ډول لوښو لکه ډبرین ډېر ښکلي خاورین لوښي، کوزې، صراحي ګانې او د چونې څخه جوړ شوي بتان پیدا شوي دي. او څرګنده ده چې د حدود العالم د کونړ ښار همدا ننګرښار دي او طبیعي ده چې دا وخت دلته بودايي مذهب رواج ؤ.

په پورتنی روایت کې د ننګرښار موقعیت او پراختیا د هغه له عمومي دروازو څخه څرګندیږي چې په لاندې ډول ښودل شوي دي:

- شمال دروازه: د شیګل په حد کې د ننګرشاه په مقام.

- لویدیزه دروازه: د پیچ درې په حد کې.

جنوبي دروازه: د نرنګ د نو آباد په حد کې (چې د دیوالونو نښې نښانې یې همدا نن د سرکانو پل ته مخامخ د کونړ سین ښي غاړې ته په نژدې غرګوټي کې موجودې دي.)

- د شرق خواته یې څکه دروازه نه وه چې د اسمار لوی سین هلته بهیده.

دا درې واړه دروازې د هغو درو عمومي لارو پر سر چې ښار ته راننوتلي دي ودرول شوي وي، چې هم د دې دروازو په واسطه د دښمن د تعرض څخه د ښار ساتنه او دفاع کیدله او هم د هغو سوداګرو هغه مال التجاره چې له کاشقار، بدخشان او هندوستان څخه ښار ته راوړل کېدله یو اندازه محصول او باج اخیستل کېده چې په دغه وخت کې یې رواج درلود.

تر اوسه پورې د دې درې واړو دروازو د دیوالونو آثار، د تیږو ټوټې په دغو ځایونو کې شته دي. ۱

دا چې د ننګرشاه په وخت کومه بده پیښه رامنځ ته شوه چې د ده واکمنۍ ته یې خاتمه ورکړه نو محترم اخلاص د هغې کیسه په کابل مجله کې داسې بیان کړې ده

د ننګر د سیمې پاچا ننګرشاه چې بودايي مذهبې ؤ وروسته د دوو مغلي شهزاده ګانو سلطان پګهل او بهرام شاه د ده په ښار حمله وکړه او د ده لور چې بې نظیره نومیدله د نومړو شهزاده ګانو سره د مراودې له لارې او د تعهد له مخې د پلار سره خیانت وکړ، مغولي شهزادګانو چې په دو شاخیلو کې یې (دا ځای د دوی په نوم یعني دو، شاخیل باندې مسمی دی) قرارګاه نیولې وه.

هر څو چې دوئ هڅه وکړه د سختې محاصرې سره سره یې د دغه ښار په نیولو لاس بر نه شو، تر څو چې نومړې شهزاده ګۍ د دوئ سره ارتباط پیدا کړ او دوئ ته یې لیک واستاوه او ورته څرګنده یې کړه که چېرته تاسې زما سره تعهد کوئ چې هم به مې له وژلو معافوئ او هم به مې یو تن په نکاح کوئ نو تاسې ته به هغه حکمت در وښیم چې په یقیني ډول پرې ښار فتح کولای شی. او زما په پلار غلبه حاصلولای شئ.

---

۱ کابل مجله، حوت ۱۳۱۲ ش، د اخلاص لیکنه، ریشه هاي تاریخي و فرهنګي نورستان، ۹۱ – ۹۳ مخونه

دوارو شهزاده ګانو دا لیك ولوست او د دې د وعدې په منلو یې ورته مثبت ځواب ورکړ، بې نظیرې ورته په لیك کې هغه غار وښود چې د مځکې لاندې له دې ښاره سین ته وتلی ؤ.

د ښار خلك د دې غار له لارې او به اکمالوي که چېرته تاسې سل کاله هم دا ښار محاصره کړئ څرنګه چې دلته د غلو او ماکولاتو ګودامونه زیات دي هیڅوك لـه محاصرې نـه تنګیږي، نو کـه چېرتـه تاسې د دغه غار خوله ونیسي دا ښار نیولای شئ.

شهزاده ګانو همداسې وکړل او له دې لارې یې ښار ونیو، زیات شمېر خلك چې نه شو تېښتیدلای عـام قتل یې کړل، بې نظیرې هغوی ته ځان تسلیم کړ.

کله چې شهزاده ګان د ښار د چارو له تنظیم څخه فارغ شول نو یې د بې نظیرې پـه هکلـه داسـې فیصله وکړه، څرنګه چې بې نظیرې د خپل پلار سره خیانت وکړ زموږ سره به هم خامخا خیانت وکړي او د بلې خوا نه د دې په نکاح کولو چې ډېره ښکلي ده زموږ د دوارو ورونو مخالفت هم رامنځ ته شي نو یې بې نظیره لوڅه د یوې هوارې تیږې د پاسه سره لمرتـه لاس او پښې تړلي واچولـه تر څو چې دا نازك بدنـه او ښکلي نجلۍ د لمر په تودوښه کې مړه شوه اوس هغه تیږه چې د هغې ځوانیمرګی په وینو سره او بیا تـوره شوه په توره تیږه شهرت لري.

تر دې وروسته دوارو شهزادګانو د دین په تبلیغ کې ډېره هڅه وکړه او هم د دوئ د ودانیو پـه وجـه د ننګرښار لغوه او پر ځای یې د چغه سرای نوم پرې کیښودل شو.[1]

باید وویل شي چې د دې کیسې په هکله اروا ښاد حبیبي هم په تفصیل سره لیکلي دي.

**خاطره:**

ښایي دې موضوع ته اشاره وشي چې د دغو دوارو مغلي شهزاده ګانو نومونه د کونړ د حکمرانانو او یوسفزایانو په جمله کې لومړي سلطان پکهل بن کهجامن بن هندو ۸۰۰ هجري/۱۳۹۷ میلادي او سلطان بهرام بن کهجامن بن هندو ۸۱۰ هجري/۱۴۰۸ میلادي راغلي.

د کونړ د حکمرانانو او د یوسفزایانو په بحث کې بیا سلطان بهرام ننګرشاه هم بللي شوي دي.

نو دا ده چې دا موضوع پوره دقت او څېړنه ایجابوي او د مدارکو د نشتوالي لـه کبلـه مې و نـه کړای شو چې څېړنه پرې وکړم. خو قوي احتمال لري د دغو مغلي شهزاده ګانو نومونه غلط روایت شوي وي.

## هـ: چغه سرای (چغته السرای):

د کونړ د دې محل د ښارونو په نومونو په تیر بحث کې یو څه معلومات وړاندې شو او دا نتیجه په

[1] کابل مجله، ۱۳۱۸ کال، ۹۱ - ۹۴ مخونه، د اخلاص مقاله

لاس راغله چې د ننګرښار نوم د چغتاي د کورنۍ د شهزاده ګانو د واکمنۍ په وخت کې په چغته السراي واړول شو.

افغانستان در پرتو تاريخ کې د محمد ظهير الدين بابر د تزك په قول د دې ښار په باب ليکي:

... د پيچ دره د کونړ د درې ډېره لويه او اوږده فرعي دره ده چې د چغسراي په مقابل کې د کونړ د عمومي درې چې دا دره په داخل کې لري له هغو څخه لغمان او د هغه د مربوطو درو او بيا برنۍ نورستان (بلور) ته په يو ډول سره ورغزېږي.

د دې جغرافيايي معرفي او پراختيا څخه زموږ مطلب د يوې هغسې جغرافيوي او تاريخي نقطې ښودل دي چې د تاريخ په اوږدو کې خاص اهميت لري چې معمولاً دا نقطه د چغان تپه يا چغان غونډۍ په نوم يادېږي، بابر په خپل تزك کې هغه د چغان سراي يا چغانيان سراي په نومونو ياد کړي دي.

د چغسراي څخه ښاغلي کهزاد داسې يادونه کوي، مقدوني سکندر او بابر دواړو د دوو زرو کلونو په زماني فاصله کې چغسراي ته راغلي وو.

د بابر په عصر کې نژدې څلور سوه کلونو پخوا کې که څه هم د چغسراي اوسېدونکي مسلمانان وو خو بيا يې هم د داخلي نورستان د اوسېدونکو سره چې کافران وو رګډ شوي وو او دا وضعه نه يوازې په چغسراي کې، بلکې له نجرابه تر پاسنی نورستان پورې د هندوکش د غره د جنوبي لمنو په درو کې ليدل کېدله.

مير غلام محمد غبار په خپل اثر افغانستان در مسير تاريخ کې داسې ليکلي دي:

بابر په شپاړسمه پېړۍ کې (۱۵۰۴ ميلادي) نه يوازې چترال او نورستان د کافرستان په نوم ياد کړي بلکې چغسراي يې هم د کافرستان يوه برخه ګڼلې وه د بابر د تزك له روايته چې وايي:

(په ۹۲۰ هجري، چې مې چغسراي ونيو هلته نارنج، ترنج او کرنج (ممکن چوکوتره) زيات ليدل کېږي او تند شراب يې له نورستان څخه راوړل چغسراي يو محقر ځاى دى چې د نورستان په خوله کې پروت دي.

د چغسراي او چغان سراي د محل او موقعيت په باب دومره ويل کېداى شي چې ډېر امکان لري په راوروسته وخت کې چې ننګرښار او چغان سراي په چغسراي تعويض شوي ؤ د هغې موقعيت هم د چغسراي په اوسني محل کې يعنې د کرهاړې څخه رادې غاړه د مکلي لاندې عمومي شهرت پيدا کړي وي، او دا ځکه چې په قوي احتمال سره د اوسني چغسراي محل نوې آبادي ده او د چغان سراي څخه تاريخي قدامت نه لري.

دا چې ولې مؤرخان چغته السراي ته چغان سراي وايي زما په عقيده که د دې ښار مؤسس د مغولي کورنۍ چغتاي واکمن بولي او دغه نوم هغوئ ته منسوبوي حال دا چې د چغان نوم د نورستان د چغانيانو

د قبیلې سره تعلق لري.

په هر صورت چغسرای د کونړ د ښار وروستي نوم دي چې د اسعد آباد د ښار د نامه مخکینی افاده یې کوله.

دا خبره هم د یوره یادونې وړ ده چې بر چغسرای ولې په چغان سره نه یادیږي، نو د مغلي یادو شوو شهزاده ګانو د واکمنی په وخت کې ممکن هغوئ په دې محل کې هم کومه آبادی کړي وي.او د بر چغسرای نوم یې ورکړي دي.

د دې یو دلیل دا دي چې د ننګرشاه وزیر شامیر هم هلته ودانی درلودله او د بلې خوا ممکن مغلي شهزاده ګانو د پیچ له درې نه په ننګرښار باندې تعرض کړي وي.

## و: دمکلي:

دمکلي د کونړ د اسعد آباد ښار سره خوا پخوا یو ډېر پخوانی کلي دي او دا چې په عمومي محاورو زیاتره د چغسرای په ځای استعمالیږي نو په دې باب هم یو څه لیکل بې ضرورته نه دي.

د ژبپوهنې له مخې چې (دم- کلي) له دوو کلمو څخه ترکیب موندلي دي دا دواړه کلمې هم جلا جلا معنا وي دي او د ترکیبي شکل معنا یې هم توپیر لري.

- که چېرته (دم-کلي) ورته وویل شي نو (دم) لکه لودم، دړی دم یوه یوه نورستاني کلمه ده. او ګلي له ګل څخه په اشتقاق د دره ګی معنا ورکوي چې د ترکیبي معنا هم که ړتـه د دم معنا مشخصه شي هغه داسې تعبیرولای شي.

- په پښتو کې (دم) د خولې یا دهن معنا ورکوي او (کلي) چې قریه او دهکده ده نو د ترکیبي شکل معنا یې کیږي د (خولې کلي) او که لا ورتـه صراحت ورکړ شي (د ذرو د خولې کلي) چې د جغرافیوي موقعیت په اساس دا معنا منطقي ښکاري.

- ځینې وایي چې دا (دم کلي) نه بلکې د دمې کلي یعنې د توقف او استراحت کولو کلي دي، او د وخت په تیریدلو سره یې تر (دم) وروسته (ه) حذف شوي او دمکلي شوي دي چې دا هم د منطق سره برابر یو روایت دي، ځکه کله چې سوداګر او مسافرین درو ته ور ننوتل هم دلته یې د دمې د پاره توقف کاوه او کله چې د کامدیش او یا د پیچ له درو او نورو سیمو څخه ځوك د کونړ ښکتنیو برخوته تلل هم دلتـه بـه یې توقف کاوه.

په عمومي ډول د دمکلي درې واړه معناوې د هغه جغرافیایي موقعیت په اعتبار سمې او په منطقي استدلال ولاړې دي او ممکن نورې معناوې به هم ولري.

که د دې کلي د خصوصیت په مورد کې وویل شي دا کلي د کونړ په یوه ډېر مناسب محل کې جوړ شوي او پخوا یې د یوې مستحکمې کلا شکل درلود، خو د ساختماني سبك له مخې د دې کلا جوړښت

د کونړ د ښکتنیو تاریخي کلاګانو سره په ځینو مواردو کې توپیر درلود.

## ز- دا سپي ښار:

د کونړ د لرغونو ښارونو څخه یو ښار هم د اسپي ښار ؤ.

وایي چې اسپي یو لوی ښار ؤ چې د افغانستان په ختیزو سیمو کې یې موقعیت درلود او په پخوانیو زمانو کې د اسپسیانو (یوسفزو) د قوم پورې یې تعلق درلود، معلومه نه ده چې دا ښار د اوسپلا د سین (د کونړ د سین معاون) په غاړه پروت ؤ او که له هغه څخه لیرې خو قوي ګومان دا دي چې له دې سینده دومره لیرې نه ؤ. ١

اوس د دې ښار په باب څه معلومات نشته دي.

## ۹- د کونړ لرغوني کلي:

کله چې د کونړ لرغوني کلي وایو نو طبعاً د کونړ هغه استحکامي کلاوې باید وګڼل شي چې د تاریخي کلیو (ښارګوټو) په شکل یې موقعیت درلود.

که تاریخي واقعیتونو ته ور وګرزوو نو ګورو چې په لرغوني افغانستان کې په تیره بیا د مهاجرتونو په بهیر کې چې د شمال څخه جنوب او جنوب ختیزو سیموته د سیندونو او رودخانو د مسیر او مجراګانو په غاړو او دغسې طبیعي لارو کې پرتې دي وکتل شي نو هر چېرته چې آریایي قبیلو او قومونو په کوم محل او سیمه کې همیشنی هستوګنه غوره کړې ده هلته یې ځانته مستحکمې کلاوې جوړې کړي دي، چې دغه کلاګانې زیاتره د ساختمان د کلاسیك په سبك جوړ شوي دي چې په سیمه کې په یو خاص او مناسب جغرافیایي محل کې جوړیدلي او تر وروستی حده پورې یې د دښمنانو او پردیو له زیان او خطره څخه خوندي وي، چې د کسیلا کوف روسي عالم له نظره د نورستان کلاوې هم په دغسې مشخصاتو بناوې.

که د کونړ د کلاګانو عمومي ساختماني شکل او مشخصاتو ته وکتل شي نو:

- په یو جغرافیایي مناسب محل کې واقع دي لکه حاکمي نقطې. درو لارو او څلورو لارو، د سیندونو د تلاقي په نقطه کې.
- پاخه دیوالونه یې درلودل او په هغو کې تیرکشونه ایستل شوي وو.
- یوه او یا دوې عمومي دروازې یې دلودلي.
- په څلورو کونجونو کې یې پاخه تدافعي برجونه لرل.
- او خودکفا وې یعنې ټول کسبګر پکې موجود وو، د اوبو د اکمالاتو منابع یې درلودلي. او داسې

١ آریانا مجله، ۱۷ ګڼه، انجمن تاریخ، ۱۳۲۳ ش، ۴۴ مخ

نور.[1]

د دې د پاره چې دا اوږده موضوع لنډه شوې وي نو يوازې د هغو په نوم اخستنه بسنه لازمه ګڼل کيږي.

## د کونړ لرغوني کلي:

- د خلغتک کلي په ښيوه کې
- د ښيوې کلي (کوز کونړ کلی)
- د خاص کونړ کلی.
- د پشت کلی.
- د سرکانو کلی.
- د کوز نرنګ کلی.
- دبر نرنګ کلي (زوړ نرانګ)
- د ديو ګل کلی.
- اندراک کلي (ښارګوټی)
- د کولی ګرام کلی (په خاص کونړ کې)
- د مروري (اندراج کلی)
- د بر کونړ (اسمار) کلی
- د ننګلام کلی (پيچ دره کې)
- دليچه لام کلی (د پيچ په دره کې)
- د کامديش کلی.

او داسې زيات شمېر کلي.

بايد وويل شي چې په عمومي ډول د ټول کونړ د لويو او کوچنيو کليو شمېر له ۸۰۰ کليو څخه زيات دي.[2]

## ۱۰- د کونړ تاريخي آبداتو او آثارو ته لنډه کتنه

• دا يوه طبيعي پديده ده هر چېرته چې انسان ځانته استوګنځي جوړوي او ژوند پکې کوي د خپل ژوندانه ننبې نښانې هلته پرېږدي يعنې د ژوند د سويې سره سم د خپل مدنيت او کلتوري بيلګې په ياد

[1] د افغانستان استحکامي کلاوې حصارونه او بالاحصارونه، خطي نسخه، رازقي نړيوال

[2] اطلس محلات افغانستان کنرها. ګڼه ۷، اداره مرکزي احصائيه ۱۳۶۴

ګار پرېږدي.

په کونړ کې هم د هغه ځايونو پخوانيو اوسيدونکو، د خپل ژوندانه بيلګې يعنې تاريخي اثار لري چې د پښتو آريانا دايره المعارف په دې هکله ليکلي دي:

په کونړ کې ځينې تاريخي شکلونه، رسمونه او خطونه د تيرو پر مخ شته دي ښايي چې دغه آثار د کونړ د زړهاوو کلونو د واقعاتو او پيښو شاهد وي د نړۍ لويو فاتحانو کله چې افغانستان ته مخه وکړه په کونړ کې يې هم زور آزمويلي دي يوناني لوی فاتح مقدوني سکندر د يرغل څخه کونړ هم په امن پاتې نه شو او نوموړي په همدغو درو کې ټپي شو او په ډېره پريشانۍ له کونړه سوات ته ورغی.

په کونړ کې د مغولي دورې آثار هم ليدل کيږي او په ځينو ځايونو باندې تر اوسه مغولي نومونه ثبت دي. ۱

همدا شان تر کومه ځايه چې د کونړ پخواني اوسيدونکي بودايي مذهبه وو نود ګريك بود يك صنعت هم په کونړ کې زيات عموميت درلود او دغه صنعت په خاصه توګه په هيکل تراشۍ (يعنې په لرګي کې کيندنې) د يادونې وړ مقام درلود.

بر علاوه په لرګيو کې د تزئين کاري د فن ښې نښانې د جوماتونو په دروازو، د کورونو په دروازو کړکيو، رواقونو، ميزونو او څوکيو او د مقدسه اماکنو په ځينو برخو کې همدا نن ليدل کيدای شي.

د موضوع د لنډيز په منظور د کونړ د آبداتو د تاريخي آثارو په باب داسې معلومات ورکول کيدای شي.

## الف: د کلوم کتيبه:

دا تاريخي کتيبه د کولم يا کالم د دروازې په خوله کې په يوه لويه تيږه حك شوې ده چې دوې برخې لري.

يوه برخه يې د امير تيمور پورې مربوطه ده چې محتويات يې داسې دي:

(امير تيمور پادشاه مغل اول فاتح مسلماني بود که ولايت اين طايفه سرکشي را تا اين نقطه تسخير نمود ولی قلوم را نسبت استحکام آن نتوانست متصرف شود.) ۲

بله برخه يې د امير عبدالرحمن خان پورې تعلق لري چې داسې پرې ښکل شوي دي:

(در وقت امير عبدالرحمن خان غازی در سنه هزار و سه صد و سيزده (۱۳۱۳ هجري قمري) تمام کافرستان با کلوم مسخر گرديد و اهالي آنجا دين مبين اسلام را قبول نمودند، و جا الحق و زهق الباطل

---

۱ پښتو آريانا دايره المعارف ۷، ۱۳۵۵، ۸۵۳ مخ

۲ ريشه هاي تاريخي و فرهنگي نورستان، ۸۱ مخ

انالباطل كان ذهوقا ۱

## ب: د چغان سراى ابنيي و آبدات:

د كونړ د تاريخي ابنيو او آبداتو په جمله كې د ننگرښار د مهمو ودانيو بقاياوې او د هغه د هديرې كتيبې دي چې د دغه ښار په مخروبو كې په زياته اندازه خښتې، د مرمرو د تيږو لويې او پنډې تختې ليدل كيږي.

تر كومه حده چې د مخروبو تهدابونه او ديوالونه ښيي نو جوتيږي چې يوه ورځ دلته يو شمېر مهمې ودانۍ موجودې وې چې له دې جملې څخه د يو عمارت په ديوالونو كې دغسې خښتې او د تيږو تختې د كنډوالو د پاسه د غره په لمنه كې ښكاري.

د آباديو په ډېره ښكته لمنه كې يوه هديره هم پرته ده چې د هغې اوږدوالي ۱۵۰۰ مترو د پيچ درې په استقامت رسيږي پرته ده د مرمرو د تيږو زياتې لوى خښتې، د مرمرو ستنو ټوټې، د هغوى قاعدې او سرونه چې په گلانو او پاڼو تزئينكارۍ شوى دي تر سترگو كيداى شي.

په ظاهره كې د دې ودانۍ بقاياوې د ډېرو لوحو د ليكنې له مخې چې په عربي او فارسي پكې نومونه ليكل شوي دي داسې فكر كيږي چې په اسلامي دورې پورې تعلق لري د هديرې په شناختو د سلطان پگهل او بهرام شاه او داسې نور نومونه ليكل شوي دي. ۲

ج: د برنرنگ د غره په لمنو كې هم يو شمېر آثار موجود وو:

خو اوس يوازې هغه آبدات پاتې دي چې په (اندرگلي) كې د غره په يوه لوړ گټ د سړي او ناوې عكس د يو آس سره ښكل شوي دي په ډنډرنو نومې كلي كې هم په يوه كمر كې په اس سپور سړي چې په لاس كې يې توره ده ليدل كيږي.

د برنرنگ په مزار نومي سيمه، په شنه غوندۍ او دلچه گلي د ورغالي په سيمه كې هم تاريخي آثار موجود وو.

د: د كولي گرام د كلي د پاسه هم د تاريخي آثارو سيمه موجوده ده.

هـ: د نورستان په زياتو سيمو كې هم د غرونو په گټونو رسامۍ او نور آثار پيدا كيږي چې مشهور يې د مركزي نورستان د يوه غره په لمنه كې يوه كيندل شوي ژوره كاسه ده.

هـ: په كونړ كې غارونه او مغارې:

په كونړ كې د ننگرښار غر خورا مشهور دي چې د ننگرشاه په بحث كې ترې يادونه وشوه.

يو بل غار د ډنډونو د كلي د پاسه د يو غره په لمنه كې چې د نو آباد ويالـه ترې تيريږي هم ممكن

---

۱ پورتني اثر ۱۲۹

۲ د ساپيانو پيژندگلوى، عبدالمالك ساپى، د سرحداتو وزارت ۱۳۷۰، ۱۳۷ مخ

موجود وي.

او د پشت د کلي د پاسه هم يوه لويه مغاره او سمڅه موجوده ده.

## ۱۱- ضروري يادښتونه:

د کونړ په اقتصادي او فرهنگي ژوند کې د هغه ځنگلونه او معدنونه ټاکونکي نقش لري او تاريخي آثار د لرغوني ژوند په اړوند کلتوري تمثالونه تمثيلوي خو تر کومه ځايه چې ليدل شوي دي د کونړ د خلکو د دې سرشارې ملي شتمنۍ او عامه پانگې سره دلسوزانه او مسؤولانه برخورد نه کيږي، چې په ډېره خلصه توگه په دې باب يوه لنډه کتنه او يادونه کيږي.

الف: لکه چې په تېرو بحثو کې وويل شو کونړ د گڼو ځنگلونو درلودونکي سيمه ده او بيا په دې ځنگلونو کې که څه هم د نښتر ونې ميوه لرونکي ونې نه دي خو بيا هم تر ميوو لوړ مقام لري او که لرگينه طلاوې نو لرگينه طلا ورته ويلای شو او نښتر واقعاً د ځنگلونو د پاچهانو حيثيت لري، په دې نښترو کې ځينې داسې ونې هم شته دي چې د دنيا تر پيدا ايښته تر نن ورځې پورې په پيړيو پيړيو عمر لري او جگوالي يې له سلو مترو هم لوړ دي.

د کونړ د نښترو چارتراش چې په بيگانه ژبه ورته سيليبر وايي د خپل عالي جنسيت له پلوه نړيوال نوم لري.

خو افسوس چې نن د کونړ دا دنگ غرونه سپيره کيږي او درنې لمنې يې له ځنگلي بوټو څخه خالي کيږي، چې همدا اوس د نړنگ غرونه بيخي سرلوڅي دي لکه چې گورو د کونړ په هره ځنگلي برخه کې د نښترو دا تاريخي ونې په ډېره بې رحمۍ او بې مسؤليتی رانسکوريږي او دا ټولنيزې شتمنۍ يوازې د يو څو ځواکمنو کسانو په جيبونو کې لويږي.

په کونړ کې د ځنگلونو سره دا بې ساری ظلم او بې رحمی د لاندنيو زيانونو د رامنځته کېدو سبب شوې ده.

- که غرونه له ځنگلونو څخه پاك شي نو واورې ژر ويلي کيږي يعنې د اوبو منابع يې بې موقع جاري شوي او د سندونو د وچيدلو عامل گرزي لکه چې همدا اوس د کونړ سين پخواني اوبه نه لري.

- بې ځنگلونو غرونه د موسمي سختو بارانونو په وخت کې توپاني سيلابونه جوړوي او د سيمو خلکوته د يادونې وړ ځاني او مالي تاوانونه ور رسوي.

- که غرونه له ځنگلونو خالي شي د کونړ په ښه هوا ناوړه اغيزه کوي.

- که غرونه گڼ ځنگلونه و نه لري د کونړ (کشمير توب) د گمبيرى دښته گرزي.

- او بالاخره په راتلونکي کې افغانستان له دی بې ساري شتمنی څخه محرومه کيږي.

ب: معدنونه:

په کونړ کې یوه اندازه د قیمتي ډبرو کانونه شته دي لکه د پیچ په دره او د باډیل په دره کې، له دې ځخه هم شخصي ګټه اخیستل کیږي.

ج: تاریخي آثار:

څه رنګه چې کونړ د لرغوني بډایه مدنیت درلودونکي وو او د ګندهارا د مدنیت ځلانده دوره یې تیره کړې ده نو د زیاتو، تاریخي آثارو درلودونکي دي چې چاته دومره زیاته پته نشته، خو اوس د دې آثارو ځینې لرونکي سیمې په خپل سري راکیندل کیږي او اثار ترې وباسي چې د برنرنګ د غره د لمنې په مزار کې تاریخي آثار او د کولي ګرام د کلي د پاسه ورل شوي آثار یې مثال راوړلای شو.

زما پیشنهاد دا دی چې په پورتنیو درې واړو مواردو کې د اسلامي او ملي روحیې په مقتضا قومي او دولتي چارواکي ښایي دلسوزانه پاملرنه وکړي.

یوه بله موضوع چې کونړ او نورستان کې لکه د پخوا غوندی د یو بل سره یو تن او یو وجود ساتلای شي او ور سره جوخت د دې غرنیو سیمو ستونزې حل کوي هغه دا ده چې که بېرته دواړه ولایتونه یو واحد ولایت شي خو را ګټور اقدام به وي.

**خاطره:**

څه رنګه چې مې ساحوي ریسرچ نه دي کړي نو د خپلو معلوماتو د نیمګړتیاوو له کبله به معذور وګڼل شم.



*Bamiyan*



# ۱۲ - غور

## (د ښکلو ښارونو،ماڼيو او مستحکمو کلاګانو مجتمع)

غور زموږ د هېواد له تاريخي لرغونو او له برمه ډکو سيمو څخه يوه سيمه او پوځي او سوق الجيشي بې ساری ورټيا او پياوړتيا درلودونکي يو غرني ولايت دي هغه چې د زماني زياتې تودې او سړې يې ليدلي او د جهاني جهان کشايانو او مهاجمانو بې رحمانه او بې شمېره تاړاکونه يې ګاللي دي.
غور د هغسې لوړو، مستحکمو او نه تسخيريدونکو کلاګانو او استحکامي د ژونو درلودونکي وطن چې د يرغلګرانو په تيره بيا د چنګيزي خونخوارو لښکرو د توپاني وحشيانه بريدونو په مقابل کې يې په ډېره ميړانه او بې ساری اتلولۍ سره د ډېرې کلکې مدافعې سنګرونه ګرزيدلي دي او حتى موږ د غور په استحکامي کلاګانو او ښارونو کې داسې ښارونه او کلاوې معرفي کولای شو چې د هغو هستوګنو باتورانو د مهاجمانو د سختې او اوږدې محاصرې په شرايطو کې يې د خپلو مړو غوښې خوړلي او تر وروستی غړي پورې يې دښمن ته د ور تسليميدلو په ځای شرافتمندانه مړينې ته ترجيح ورکړې ده.
غور دا زموږ د هېواد د وتلو اتلانو او تاريخي قهرمانانو سيمه ده چې د هغوی د شهامت او شجاعت

جاج د امير کروړ، جهان پهلوان په دې بولله کې په پوره ځالانده ډول انعکاس موندلي دي:

زه يم زمرى پر دې نړۍ له ما اتل نشته
په هندو سندو پر تخار او په کابل نشته

موږ د امير پولاد جهان پهلوان د غښتلي او پياوړي څېرې ته په غير د المار پښتون، شعيب افغان، سندان (مسندان) هغه حماسه هستوونکي اتلولۍ د هېواد د تاريخي وياړونو، ځلانده سمبول بللای شو چې د چنګيزي وحشت ګرو په مقابل کې يې په يادګار پرېښي دي د غور د استحکامي دژونو، لوړو او ښکلو کلاګانو له جملې څخه چې د تاتاري پوځونو د سيلاب په وړاندې لکه غرونه ودريدلي د فيوار، خيسار، کاليون او دوکي کلاګانې د غوريانو د آزاد منشۍ او فداکارۍ وياند ه تمثالونه وو.

لکه چې د (جغرافياي تاريخي سرزمين هاي خلافت شرقي) د ۴۴۴ مخ د ليکنې له مخې چې وايي:

د غور زياتره کلاګانې د چنګيزي تاړاکونو په وجه په ۶۱۹ هجري کې خرابې شوي دي، خود خيسار (خستار) کلا له دې مصيبت څخه په امان پاتې شوې ده.

د غور ښارونه، پلازمينې او شاهي ماڼۍ ډېرې ښکلي او دنګې وې د هغوئ ساختماني سبکونه او هنري خصوصيات د غوريانو د دورې د صنعتونو د ظرافت او د معمارۍ د لوړې فنکارۍ ډېرې ښې بيلګې ګڼل کيدای شي.

غور د هغه د غرونو د غزيدلو لړيو د بې شمېرو چينو د درلودلو له کبله په (هزار چشمه) باندې، مشهور دي، په لرغونو زمانو کې غور د پوره آبادۍ، سرشارۍ، سمسورتيا، لوړو او ښکلو ودانيو په زړه پورې ماڼيو، پخو او له دبدبې ډکو کلاګانو، معمورو ښارونو، د تر و تازه شنو درو، رڼو ويالو او صافو چينو په درلودلو يوه بډايه سيمه وه.

## د لرغوني غور جغرافيايي موقعيت او پراختيا

غور زموږ د هېواد بشپړه غرنۍ منطقه ده چې د لويو غرونو، خوړونو، درو او غونډيو څخه متشکله ده، هوارۍ او د کرنې ځمکې يې محدودې دي.

د لرغوني غور حدود د يو څه پراختيا درلودونکي محدوديت او څلور خواوې يې په لاندې ډول ښودل شوي دي

د طول البلد په ۶۴، ۶۵ درجو، ۳۸ دقيقو او ۴۹ ثانيو په منځ کې پروت او عمومي مساحت يې ۳۸۷۵۸ کيلو متر مربع دي.

- د شمال له خوا نه: د بابا په غره او باميانو.
- د جنوب له خوا: په ارزګان، تيرى، هرات او اوسنى زميندا ور.
- په ختيز کې: په اجيرستان (تاريخى وجيرستان) او غزني.

- د لویدیز له خوا نه: په فراه، اسفزار، بادغیس او د هرات په سمسوري ناوې پورې تړلي دي.
اوسنی غور د لاندنیو څلورو سیمو څخه عبارت دي:
- ختیزه برخه: چې لعل سرخ، سرلینك، خواجه وجیهه الدین او پساوند پکې شامل دي.
- لویدیزه برخه: چې نوروز، ملي علي، اندر او سین پکې شامل دي.
- په شمالي برخه کې دا کلي شامل دي: چشمه میران او سرنای عاشقان.
- او جنوبي برخه یې د غارك، پشو، ارسیو او نورو کلیو څخه مرکبه ده. ١

مګر غور د اوسنیو اداري تشکیلاتو له پلوه د یو ولایت په حیث د جوزجان، فاریاب، بادغیس، هرات، هلمند، ارزګان او بامیانو د ولایتونو په منځ کې موقعیت لري.

غور چې نن ورځ د افغانستان په لویدیز کې یو کوچنی ولایت شمېرل کیږي په پخوانیو زمانو کې نسبتاً ډېره پراخه سیمه ګڼل کېدله چې د هرات او غزني تر منځه د بابا د غره او د سپین غره (سپید کوه) د غرنیو سیمو او درو څخه متشکله وه.

په یو بل روایت دا پراخه غرنۍ سیمه چې غور او غورجستان نومیده د غرجستان په ختیز او جنوب کې پرته وه له هراته تر بامیانه، د کابل او غزني تر پولو پورې یې اوږدوالي درلوده نو هر څومره چې تاریخي اسنادو ته ورستنیږو هغومره د غور د سیمې ارتوالی زیاتیږي او زیاتې سیمې رانیسي.

غور په تاریخي دورو کې یو وخت ډېر زیات شهرت درلود ځکه چې غور د غوري پاچهانو ستر مرکز ؤ او له دې ځایه څخه یې لیرو لیرو ملکونو پورې حکمراني درلوده.

داسې یو وخت هم ؤ چې غور د خراسان، سیستان او تر ډهلي پورې د پنجاب د ولایتونو مرکز ؤ چې په شمالي خواوو کې د مرو، بلخ او تخارستان ولایتونو پکې شامل وو او پولي یې د پامیر تر غرونو او چترال پورې رسیدلي.

د انګلیسي هولدچ په قول د غور د نامه د اوریدلو سره سم د انسان سترګو ته یوه داسې لویه ځمکه ودریږي چې له هند څخه تر ایران پورې او له آمو نه تر هرمز پورې غزیدلې وه د منځینو پیړیو جغرافیه پوهانو د غور سیمه د لویو او جګو غرونو او سردنګو تاترو په واسطه د هریرود، هلمند، خاشرود، فراه رود د سیندونو سرچینه بولي تر دې اندازې پورې چې د مرغاب د سیندونو سرچینه هم دغه ځایونه ګڼي. ٢

## د لرغوني غور د کلمې تاریخي ریښې:

زیاتو هېوادنیو او بهرنیو جغرافیه لیکونکو او تاریخ پوهانو د لرغوني غور د کلمې د ریښو په هکله خپل نظریات وړاندې کړي دي چې په لاندې ډول پرې بحث کیږي:

١ پښتو آریانا دایره المعارف، ٧ ج، اطلاعات او کلتور وزارت، دولتي مطبعه ١٣٥٥ کال، ٦٣٥ – ٦٣٦ مخونه
٢ د غور لرغوني کلاګانې، پوهاند رازقي نړیوال، ٢ مخ

ښاغلي مير غلام محمد غبار د «غوزيان» د کلمې په هکله چې د «غور» کلمه ترې اشتقاق شوې ده په تحقيقي شکل داسې ليکي:

... له سيحون او جيحون څخه د «آرين» د څانگې د مهاجرت په جريان کې تر پنځه زرو کلونو زياته موده د مخه د «آرين» شعبه د نورو څانگو څخه راجلا شوه او جنوبي سيمو ته يې حرکت وکړ او تر يو وخته پورې د سيحون او جيحون په څمکه کې و اوسيدل، تر دې وروسته يې د «باختر» او «آريانه» «هرات» ولايت ته نقل مکان وکړ د همدې آريايانو يوه بله برخه چې په باختر او آريانه کې يې استوگنه غوره کړې وه له دې ځايه هم د افغانستان د مملکت نورو واديو ته خپره شوه، د افغنستان آريانه يانو خپل نوم په هرات باندې کيښود يعنې دا ځاى يې په آريانه مسمى کړ او بيا د دوو څانگو په شکل په مملکت کې وويشلي شوى، زياتره د مقاماتو «محلاتو» او طايفو نومونه يې د همدې «آريانه» کلمې د طبيعي بدلونونو له مخې رامنځ ته شول لکه چې د «غوريان» نوم د هرات د اوسني ولايت په ختيزو سيمو کې د «آريان» د کلمې تحريف دي، چې بيا وروسته په «اوريان» او «غوريان» واوښت او د محل او وگړو نوم د هرات په ختيزه خوا کې د هماغو اوريان او غوريان تحريفات دي.[1]

تاريخ پوهان د غور کلمه د لرغونو کلمو لکه «گيرى» د گيرى کلمه د اوستا او سانسگريت له ريښې نه د غر معنا افاده کوي، غرج، غرچ، گرياغوش او داسې نورو کلمو څخه مشتق گڼي.

«گر» او «غر» اوستايي کلمې دي او په دري کې چې د کوه په معنى راغلى دى او په پښتو کې هم د غر معنا لري لکه چې د گرشا په کلمو کې د «ملك الجبال» په مفهوم او «سنگر گروده» او «گردريه» کلمې چې[2] په دري افاده کيږي او په ځينو نورو کې لکه «گردين» کردژ او گرديژ چې د غرنى. کلا په معنا راغلي دي.

د توماسك په عقيده «د غور، غرچه، غرچ، غج» کلمې ټولې د يوې ريښې درلودونکي دي چې د غر په معنا دي.

په يو سند کې چې بيا هم د مرحوم غبار د ياد شوي روايت سره يو څه نژديوالي لري داسې ليکل شوي دي:

په هغه زمانه کې چې د آريانانو يو ښاخ د دوو زرو کلونو په شاوخوا کې پخوا، له بخدي څخه په مهاجرتونو پيل وکړ د دوئ له جملې څخه هغه برخه چې د جنوب لار يې پر مخ کې ونيوله او د يوې مسافې تر وهلو وروسته د افغانستان د مرکزي غرونو لمنو ته راورسيدله، نو دا سيمې د ښکلو درو، شنو ورشوگانو او د طبيعي په زړه پورو منظرو د درلودلو له کبله د هغوى د استوگنې د پاره ډيرې مساعدې وگڼل شوې او هماغه ؤ چې په همدغو محلاتو کې ميشته شول.

---

[1] جغرافياي تاريخي افغانستان، غبار، ۱۳۴۶، ۷۶ مخ

[2] د غور لرغوني کلاگانې، ۳ مخ

څرنګه چې د دوئ دا لوی تاتوبي یوه غرنۍ سیمه ده نو یې د غور په نوم ونوموله چې د کوه معنا ورکوي. ۱

د ژبپوهنې له مخې (هور) یا (خور) چې د خاوران کلمه ترې مشتق شوې ده او په سانسکریت کې ورته (سور) یا (سیر) چې د سوري کورنۍ ورته منسوب ده ویل کیږي او هغه لمر دي چې د همیشه د پاره په زړه پورې توده ځلا لري، د خراسان او منځنۍ آسیا په فرهنګي تاریخ کې د غور اهمیت او موقف خورا زیات او په زړه پورې دي (اتلس محلات افغانستان، اداره مرکزي احصائیه، ۱۳۶۴).

د ناصري طبقاتو په تعلیقاتو کې چې مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبي پرې لیکلي دي، لیکي:

د غرش او خرچ کلمې (رچ)، (رګ) او (د) دي چې ګراد غر له هغو څخه جوړیږي او (ش-ج-چ) دا وروستنی حروف ممکن د عربانو له راتګ وروسته ور سره نښتلي او اضافه کلمې دي. نوموړې زیاتوي چې د غرخه (کوهي) پښتو او غلجه د معروفه افغاني قبیله) د غور د غزني کلمې سره نسبت لري. ۲

زیاتره ګومان کیږي چې د غور کلمې د یوناني مؤرخینو په آثارو کې نه ده یاده شوې او که د سترابو (۶۴ق.م – ۲۰ قبل از میلاد) نقشې ته مراجعه وشي ګورو چې د افغانستان د پخوانۍ برخه یې (پارو پامیزاد) په نوم ثبت کړې ده د مجمل التواریخ و القصص په حواله د غور نوم د هغې د سیمې پر پاچا باندې د رستم زال د ژوندانه په وخت کې اېښودل شوې دي لکه چې د هندوانو د القابو او نسب د یادونې په لړ کې لیکي:

(د کابل او سند د خاورو پاچهانو ته یې رتبیل وایه او د غور پاچا د رستم زال په زمانه کې له رتبیل شاه څخه جلا شو په پاچا او ځمکې یې د غور نوم کېښود، د غرجستان پاچا ته یې (شار) ووایه او د بامیان پاچاته یې (شیر) او دا ولایتونه د رستم سره وو د زابلستان په جمله کې او دا لقب پرې ده اېښودلي دي او اوس هماغه رستم پر خپل ځای پاتې دي. ۳

په دې توګه ویلای شو چې د غور کلمه ډېره پخوانۍ سابقه لري او دا چې د یوناني مؤرخانو په آثارو کې ترې یادونه شوې نه ده د دې خبرې علت دا دی چې یونانیانو د خپلو فتوحاتو په لړ کې د دې سیمې د غرونو بېخونو ته نه ؤ راغلي چې نوم پرې کیږدي، د پورتنی اثر د مؤلف د روایت له مخې که څه هم افسانوي شکل لري خو سره د دې هم د غور د خاورې او د هغې د واکمنانو د لقبونو تاریخي قدامت دا خبره په ډاګه کوي چې د (غورشاه) د (غرجستان شار) او د (بامیانو د شیر) لقبونو د عربو او غیر عربو

۱ پورتنی اثر، ۳ مخ

۲ د غور لرغوني کلاګانې، ۴ خ

۳ مجمل التواریخ و القصص، تالیف ۵۲۰ هجري طبع ۱۳۱۸ تهران، ۴۲۲ مخ په حواله

- جغرافیاي تاریخي غور، ص ۱۴ - ۱۵

مؤرخانو او جغرافیه لیکونکو په آثارو په تیره بیا د اسلام په لومړیو کې زیات راغلي دي. ١

لنډه دا چې که په نتیجوي ډول د غور د کلمې د تسمیې وجه وڅیړل شي نو د برهان قاطع په روایت غور د اول او دوهم توري په پیښ د مور په وزن تلفظ کیږي او وایي چې دا د یو ولایت نوم دي کندهار ته نږدې. ٢

د غور د کلمې باستاني ریښه په اوستا او سانسکریت کې د ګیري په شکلونو او پخواني باختري کې د (ګر) ده چې په پښتو د غر معنا لري او د آریایي ژبې له پخوانیو کلمو څخه شمېرل کیږي، د اویستا په کتاب د هوم لیښت په برخه کې (ګیری) راغلي دي او هم په خرده اوستا کې چې د اوستا پنځمه برخه ده هم لیدل کیږي. د سانسکریت د فرهنګونو څخه څرګندیږي چې په هغو ژبه کې د ګیر یا (ګیري) معنا غر دي.

## د تاریخ پوهانو او جغرافیا لیکونکو له خوا د غور په باب یادونې:

له کومه ځایه چې غور یوه لرغوني، تاریخي غرنۍ سیمه او د هر اړخیزې ارزښمندی، اهمیت او ممتازو خصوصیتونو څخه برخورداره ده نو د تاریخ پوهانو او جغرافیا لیکونکو له خوا په زیاترو مواردو او تاریخي واقعاتو کې ترې پراخې یادونې شوي دي.

د دې یادونو حجم د غور د لویې امپراطورۍ له تاسیس وروسته مخ په زیاتیدو شو او د غزنویانو په وخت کې هم غور د دې سیمې د ثقافت او فرهنګ په وده کې څرګند نقش درلود

مسالك و الممالك یو مهم جغرافیایي کتاب دي چې ابو اسحق ابراهیم اصطخري د غور په هکله پکې لیکي:

... او غور ډیرې زیاتې ناحیې لري... غرنۍ او آبادي دي مستحکمې کلاوې زیات رودونه چینې، باغونه او بڼونه لري او د غور حدود له (هري) را ونیسه تر فراه تر زمیند اور د کروان تر رباط پورې (٢١۴ مخ) غور یا غورستان د غرجستان په ختیزه او جنوبي برخه کې پروت دي. او یوه غرنۍ ناحیه ده چې له هرات څخه د بامیان کابل او غزني پورې غزیدلې ده. دا ولایت په ٢٢۵ هجري قمري د یعقوب لیث صفاري په واسطه فتح شو.

له ٢۵٠ هجري قمري راهیسې د سیمه ییزو کورنیو څخه یوې په غور حکومت کاوه چې د فیروز کوه مستحکمه کلا د هغوی په لاس کې وه، د دې کورنۍ لومړنۍ نامتو واکمن محمد سوري دي.

غزنوي سلطان محمود په ۴٠١ هجري قمري غور خپل تابع کړ، مګر سوري کورنۍ لاهماغسې واکمنی درلودله.

١ پورتنی اثر ١۵ مخ

٢ برهان قاطع، محمد حسین، ١٣۴٢، ص ١۴٢۶

بل کرت غیاث الدین محمد چې په سلطان شهاب الدین باندې ملقب ؤ د غور برم او دبدبه بیا رانوي کړه، نوموړي نه یوازې خراسان بلکې ټول هند یې په لاس کې درلود او د ده د واکمنی په وخت کې ټولو هندیانو اسلام ته مخه وکړه. ۱

تر دې وروسته غوري دولت متلاشي شو او ۹۱۹ هجري قمري د غور ګردی سیمې د چنګیزي لښکرو د هجوم په واسطه پایمال او فیروزکوه د خاورو سره خاورې شو او تر دې وروسته غور خپل تاریخي رونق له لاسه ورکړ. ۲

غور چې د سیندونو او چینو لویه سر چینه ده د هریرود، هیرمند، خاشرود او فراه رود د دې غرنی سیمې څخه سرچینه اخلي، نو د زیات ارزښت د لرلو له امله په تاریخ کې ترې زیات تذکرات راغلي دي لکه چې د حدود العالم مؤلف لیکي:

غور ناحیه ایست اندر میان کوه ها و شکسته گی ها و او را پادشاهیست که غور شاه خوانند. او را قوتش از میر گوز گانانست و اندر قدیم این ناحیت غور کافران بودندی، اکنون بیشتر مسلمانان اند.

و ایشانرا شهرك ها و دهها بسیار است و اندرین ناحیت برده و زره و جوشن و سلاحها نیکو افتد و مردمانش سپید اند.

حافظ ابرو د غور په باب لیکي:

... و در غور پنج باره کوه بزرگ عالي است که اهل انجا اتفاق دارند که از راسیات جبال عالم است.

د غور په مورد کې په تقویم البلدان کې راغلي دي:

غـور ناحیتیـست کوهـستانی در خراسان نزدیك به هرات، غـور مملکت بزرگی است بیشترش کوهستان است، جای ابادان با چشمه ها و بستانها، نهرها استوار و تسخیر ناپذیر.

اصطخري، ابن حوقل او حافظ ابرو هم د غور د غرونو او مستحکمو حصارونو په باب یادونې لري چې د اقتباس څخه یې صرف نظر کیږي خو داسې ښکاري چې دوئ ممکن له یو ماخذ څخه استفاده کړې وي.

په عجایب المخلوقات کې راغلي دي:

(غور شهریست بر کوه منیع، زبان ایشان غیر از زبان خراسان بوده و برابر شهر غزني است.) ۳

ابو الفضل بیهقي و محمود غزنوي د فتوحاتو د بحث په یوه برخه کې د غور په باب لیکي: (و آن ناحیتی و جایی است سخت حصین از جمله، غور و مردم آن جنگی تر و نیرومندتر و دار الملك غوریان

۱ بررسي هاي تاریخي، ۴۰ ګڼې، ۱۲۳ – ۱۳۸ مخونه په حواله، جغرافیاي تاریخي افغانستان، ۳۱۱ – ۳۱۲ مخ
۲ جغرافیاي تاریخي افغانستان، ۳۱۲ مخ
۳ جغرافیاي تاریخي افغانستان، ۳۱۴ مخ

بوده، به روزگار گذشته هر والي که آن ناحيت او را بوده‌ي همه ولايات او را اطاعت داشتندي.

ابوالقاسم فردوسي په شهنامه کې په دغه حماسي دپر لوی منظوم اثر کې د غور او غوريان په باب داسې وايي:

سر غوريان بود بسطام مشير - کجا پشت پيل اور دي به زير

د سر غوريان څخه مراد د بسطام سوري دي.

اسدي طوسي هم په گرشاسب نامه کې له غور څخه داسې يادونه کوي:

زرنج و هم غور و زابلستان

هم از بلخ تا بوم کابلستان

د عبدالحی گرديزی په تاليف زين الاخبار کې (۴۴۰ هـ) هم له غور څخه يادونه شوې ده، چې د دې واقعي په وروستی پاراگراف کې داسې ويل شوي دي.

... و اورا به نيشاپور آورد و همين ابو جعفر زبادی به غور شد و چند حصار از غور فتح کرد.

د سيستان د تاريخ نامعلوم مؤلف (۴۴۵ - ۷۲۵هجري) د ښارونو د ودانی او بنسټ ايښودونکو په ترڅ کې له غور څخه داسې يادونه کوي.

... اسفزار و بوزستان و لوالستان و غوربسام نريمان کرد نظامي عروضي سمر قندي د څلورو مشهورو مقالو مؤلف د غور په اړوند کله چې يې د ملك الجبال قطب الدين محمد څخه يو بيش قيمت بخشش واخيستنو د غور د تاريخي سيمې او د هغې د کانونو په باب يې يو گزارش وليکه:

په تاريخ جغرافيا په يو بل گټور کتاب کې چې (جهان نامه) نوميږي او د محمد نجيب بکران له خوا په ۶۰۵ هجري کې تاليف شوي دي د غور په باب يادونې شته دي لکه چې د هغه د غرونو او سينونو د يو رود په هکله ليکي:

(هيرمند رود معروفی است از حدود کوهای غور و غرجستان ختيز پس بر زمين داور بگذرد پس بر بست پس به ولايت شبستان رود و بحيره زره ريزد.)

د فخرالدين مبارکشاه تاليف کتاب اداب الحرب و الشجاعه (۶۲۶ - ۶۲۷ هجري) کې د غور په باب ليکل شوي دي: (... و بادشاهان غور به تيغ و نيزه بيشتر جنگ کردي...) حمدالله مستوفي په خپل اثر نزهةالقلوب کې د غور د ستاينې په برخه کې ليکي:

(غور ولايتی است و شهرستان آنرا آهنگران خوانند از اقليم چارم است و قريب سی پاره ديه از توابع آنجا است.)

د اسلام نامتو گرځندوی ابن بطوطه په خپله تاريخي سفرنامه کې چې د اتمي پيړۍ په نيمايي کې يې وليکه د غور څخه يې يادونه کړې او ليکي:

ايل غور در قريه ها و صحراهاى بادغيس (مرغيس) سكونت دارند و اين صحرا به مساحت چار شبانه روز راه سرتاسر سبز و خرم چراگاه فيل و گوسفندان، بيشتر، درختان اين منطقه پسته است كه محصول آنرا به عراق مى برند.

معين الدين محمد زمچي اسفزاري هم په خپل كتاب (روضات الجنات في اوصاف مدينة الهرات) كې د غور په باب داسې يادونې لري: در قديم الايام عظيم معمور بود، عمارات رفيع و قصور بدايع و قلاع منيع داشته و هميشه نواحي آن ديار از لوث بدعت و ناشايسته گى ها پاك مي بوده...

تاريخ حبيب السير في اخبار ابناء بشر و خواند مير تاليف (٩٢٧ – ٩٣٠ هجري) كې راغلي دي: و ورخان از غوريان اول كسي است كه در سلسله سلاطين شمرده اند علاوالدين است.

د امين احمد رازي تاليف هفت اقليم هم د غور په باب ليكي: و غور مابين غزنين و خراسان واقع شده و آب و هواى نيك دارد و اكثراً فواكش خوب مي شود و بيشتر ولايت وى كوهستان هاست. ١

كه څه هم غور په تاريخي اثارو كې د يوې ناحيې، ولايت او ښار په شكل ياد شوي دي، خو كله چې د غور عمومي جغرافيايي او تاريخي منظرې ته وكتل شي نو څرګنده ده چې غور په حقيقت كې د ښكلو او معمورو ښارونو، مستحكمو كلاګانو او حصارونو، ښكلو او دنګو ماڼيو مجتمع ده چې په مجموعي ډول د دوئ ټولو شمېر ٩٦ ته رسيږي.

بې مورده به نه وي چې د معلوماتو د تر لاسه كولو په غرض يوازې د ماڼيو او مشهورو كلاګانو د نومونو په راوړلو اكتفا وشي او بيا وروسته يې ښارونه معرفي شي.

<u>الف د غور قصرونه او ماڼۍ:</u>

- خوړ ماڼۍ (قلعه سنگي يا سنجه)
- سركاليون
- كجوران
- فيورا
- تيرى
- كهيرا
- دوكى
- سيفرود
- خاسك ٢

١ جغرافياي تاريخي غور، عزيز احمد پنجشيري، ١٣٦٠، ١٧ – ٢٠ مخونه
٢ د غور لرغوني كلاګاني، ١٠٧ مخ

چې په عين حال کې دا پورتني ماني چې د معماري د صنعت په اساس په خورا زيات ظرافت او مهارت جوړې شوي دي. مستحکمې کلاګانې هم دي.

ب: د غور کلاګانې:

- اشيار
- والشتان (بالشتان)
- تمران
- تمزان
- تکاني کوټ
- وجيرستان (قلعه وجير)
- شهرك
- کاسي
- شورسنګ (شيرسنګ)
- فيروز
- ګزيو
- ساجي
- تير دهنده
- بند راو
- بلروان
- کوهتيز (کوهشير)
- سبکجي
- خوست
- ايثار
- فخر آباد
- بشلنګ
- خوابين
- خلج
- روزګاران
- قره باغ

- دولت يار
- چغچران
- چهل آباد
- چار در
- جوز درې کلا
- يامان
- پساوند
- ورشك
- بشوره (پشوره)
- سرمژگان
- لروند
- حصار دره
- گرزيوان

او ځينې نورې کوچنۍ کلاگانې لکه:

- رنگ قلعه
- لاغري قلعه
- ساخانه
- ناى
- مرنج
- کوه سنگ
- گچي گرد
- خطيف
- حصار تور

ح: د غور ښارونه:

د دې د پاره چې د موضوع اساسي بحث ښارونه تشکيلوي نو د غور د ښارونو په باب په يو څه تفصيل سره خبرې کيږي.

د ښارونو په موضوع کې د ښارونو مشخصات لکه مؤسسين، د جوړېدو نيټه، موقعيت، د معماري د صنعت بيلگې او استحکامي څرنگوالي او په ډېر محدود صورت تاريخي پيښې بيانيږي او په دې

توګه د يو کل او اجمال په شکل د غور د ښارونو سره معرفت پيدا کيږي.

## ۱- د منديش ښار کلا (۴۰ – ۸۰ هجري قمري):

منديش د غور د ډېرو پخوانيو پلازمينو او مشهورو ښارونو څخه يو پايتخت او د غور د محلي واکمنانو استوګنځي او اداري مرکز ؤ چې امير پولاد سوري (۱۳۰ هجري قمري) له دغه ځايه د غور په ټولو غرنيو سيمو حکومت کاوه د امير پولاد نه د مخه شنسب بن خرنك (۴۰ – ۸۰ هجري قمري) په شاوخوا ؤ کلونو کې چې په غور کې يې حکومت کاوه په قوي احتمال سره د ده اداري مرکز همدا منديش ؤ چې دا سياسي او اداري مرکز د صفاريانو تر دورې پورې د غور پايتخت ؤ. ۱

په پټه خزانه کې د جهان پهلوان امير کروړ، په مبحث کې د منديش په هکله څو ځايه يادونه شوې ده او ليکي:

... شيخ کته عليه الرحمه هسې وايي چې په تاريخ سوري کې راوړي چې امير کروړ د امير پولاد سوري زوی چې په کال ۱۳۹ سنه هجري د غور په منديش کې امير سو او (جهان پهلوان) يې باله. ۳۰ مخ.

... وايي چې امير کروړ په دوبی (زمين داور) کې ؤ او هلته يې مانۍ درلودله چې کټ مټ د منديش په شان وه. ۲

د پورتنۍ يادونې څخه مطلب دا دی چې منديش په پلازمينې او اداري مرکز سربېره يوه ښکلي او په زړه پورې مانۍ هم وه.

طبقات ناصري د منديش د موقعيت، ساختماني مشخصات او د هغې زمانې د معمارۍ د صنعت د بې سارو بيلګو په هکله داسې معلومات ورکړي دي:

منديش د غور يوه پخه، محکمه، سخته او ښېسته زياته جګه کلا وه دا کلا د منديش د (زار مرغ) د غره په تړو کې پرته وه چې د تيرې ليك (ډبرين ليك او خط سنګي) د ليکنې له مخې د دې کلا تاداؤ بسطام اينبي ؤ او څرګنديږي چې د هغې د ودانولو د پاره يو شمېر تکړه استادان ګمارل شوي وو.

د دې کلا ديوالونه د بارو په ډول د منديش د غره د يوه تلي (هموارې سطحې) د پاسه اينبودل شوي ؤ چې ۱۲ برجونه يې درلودل او په هر يوه برج کې ۳۰ کړکې موجودې وې (شپږ برجونه د ختيز او شمال خواته او شپږ نور برجونه د لويديز او جنوب خواته) چې په هر يوه برج کې د آسمان رسم کښل شوی ؤ په داسې ترتيب سره چې هره ورځ لمر په تاکلي درجه له يوې کړکۍ څخه راختلو او په څرګند ډول يې ښودله، دغه ورځ لمر په کومه درجه او کومه مياشت راخوت.

دا خبره په دې دلالت کوي چې د امير عباس بن شيش د خلافت او استادۍ په زمانه کې د نجوم علم

---

۱ جغرافياي تاريخي غور، عزيز احمد پنجشيري، مطبعه پوهنتون کابل، ۱۳۶۰، ۴۳ مخ

۲ پټه خزانه، محمد هوتك بن داود دوهم چاپ ۱۳۳۹، ۳۲ مخ

وده کړې او د غور زياتې ماڼۍ په دې ترتيب ودانې شوې وې او بيا يې عموميت پيدا کړی ؤ. ۱
محمد عثمان صدقي د طبقات ناصري د معلوماتو په تاييد داسې ليکلي دي:
... د شنسب د کورنۍ پايتخت او دارالملك د غور په يوه سيمه کې چې په دې نوم «منديش» ياديده چې نښې نښانې يې د زار مرغ په کوتل او د «ابدال غر» د څوکې او غاښې په منځ کې شته دي
هغه ماڼۍ چې د غوري شنسب زوی امير عباس د منديش په ولايت کې جوړه کړې وه، د اسمان د برجونو په څير له دولسو برجونو څخه مرکبه وه چې هر برج يې ديرش کړکې درلودلې او د پوهانو په نزد د زيات ارزښت لرونکي وه، هره ورځ چې به لمر راوخوت د هغو برجونـــو له يوې کړکۍ څخه به ځليده. ۲
د پورتنيو روايتونو له مخې د منديش تاداو د بسطام په زمانه کې اينبودل شوي او په دويم روايت دا ماڼۍ د امير عباس شنسبي په زمانه کې جوړه شوې ده، داسې څرګنديږي چې د ماڼۍ بنسټ د بسطام په وخت کې اينبودل شوي خو بيا وروسته د امير عباس په دوره کې د نجومي علم څخه په ګټه اخستلو سره د هغې ودانۍ بشپړه شوې ده چې پخپله د ناصري طبقاتو د پورتنۍ ليکنې له مخې په وروستی پاراګراف کې دا مصداق صدق پيدا کوي او ويل شوي دي چې د نوموړي امير په وخت کې د نجوم علم وده موندلې او د هغه په اساس زياتې ماڼۍ جوړې شوي دي.
منديش او خولې ماڼۍ «سنګ قلعه» د غور د نامتو ښارونو څخه وو چې د غزنويانو او غوريانو په زمانه کې يې پوره شهرت درلود.
ابوالفضل بيهقي د هغې زمانې نامتو مؤرخ چې د امير محمد د محمود زوی د خپل ورور مسعود له خوا د کوهتيز «کوهشير، کوهژ» په کلا کې بندي شو او له هغه ځايه منديش ته راوستل شو د دې کلا په باره کې داسې ليکي:
«منديش يوه ډېره پخه، سخته، محکمه او جګه کلا ده او کله چې سړي د ... اياز له ځنګل تيريږي او ګورو الشت ته رسيږي د کيڼې خوا له لياري له‌ورايه د منديش کلا ښکاري، ډېره زياته لوړه، له شمېره وتلي پوړۍ يې درلودلې او په ډېر زحمت سره ورته سړي ورختلای شو. ۳
تر بيهقي وروسته عبدالحی ګرديزي «۴۴۰ هجري» دا کلا د مملکت د ډېرو پخو کلاګانو څخه شمېرلې او وايي چې «ناي» او «مرنج»، «د سيستان هغه کلاګانې دي چې شاهي خزانې پکې ساتل کيدلې» د کلاګانو په شان پاچهي ګنجونو او خزانو د ساتلو د پاره ټاکلي شوي وي.

---

۱ طبقات ناصري ج۱، قاضي منهاج سراج جوزجاني، انجمن تاريخ افغانستان، ۱۳۴۲ شمسي، دولتي مطبعه، ۳۳۱ - ۳۳۲ مخونه
۲ شهرهاي آريانا، محمد عثمان صدقي، نشرات بيهقي، ۱۳۵۴، ۹۳ مخ
۳ طبقات ناصري، ج۱، ۳۳۳ مخ

د غزنويانو تر دورې وروسته (۳۵۱هـ-۹۶۲/۵۸۳-۱۱۴۸ م) په طبقات ناصري کې يادونه شوې.
مينورسکي ليکي چې منديش د شنسب د کورنۍ اصلي ټاټوبي دي چې د زار مرغ د لوړ غره په لمنه کې پروت دي. ۱

د پټې خزانې تعليقات هم د منديش په باب يو لړ څرګندونې لري لکه چې وايي:
راجع به عمران و آباداني اين خطه منهاج السراج شرح خوبي مي نويسد که: (عباس بن شيش در ولايت منديش به خط سنگه براى بناى قلعه استادان کامل از اطراف حاصل کرد و ديوارها به رسم باره از آن قلعه برد و طرف شخ کوه زار مرغ بر کشيد و در پاى آن کوه در بالاى تلى قصر بلند بنا فرمود. ۲
بعد از آن در جاى ديگر گويد: بهاءالدين سام را خط سنگه که دار الملك منديش بود معين شد....
از تصريحات فوق مؤرخين بر مى آيد که منديش از مشهورترين حصص ارض غور است و مرکز آن هم سنگه بود.

موقعيت اصلى منديش و سنگه را نمى توان اکنون به صورت يقين تعيين کرد و اگر تحقيق به عمل آيد شايد اکنون هم در غور همين نام ها باقي مانده باشد. ۳

د پورتنيو ليکنو او څېړنو څخه جوتيږي چې منديش نه يوازې له برمه ډکه، پخه، ډاډمنه پوځي کلا او ښکلې ماڼۍ وه بلکې د غوريانو د يو مشهور فرهنګي او سياسي ښار هم بلل شوي او د غور د يو لوی غر نوم هم دي. ۴

په تاريخ کې د منديش څخه د يو زندان په توګه هم يادونې شوي دي لکه چې وايي:
د منديش ښار د مستحکمې کلا او برجونو او متينو بارو لرونکي ؤ او د غور د پخوانيو پاچهانو امارت ځای ؤ او د غزنويانو په دوره کې د سياسي زندان په توګه ترې کار اخيستل کېده لکه چې سوري امير محمد په همدې کلا کې د غزنوي سلطان محمود له خوا بندي شوی ؤ. ۵

## ۲- د فيروز کوه ښار (کلا) ۵۴۳ - ۶۲۰ هجري/۱۱۴۸ - ۱۲۲۲ (ميلادي):

د فيروز کوه د ښار د تسميې وجه د غور د يو مشهور غر څخه نشئت کوي چې فيروز کوه نوميږي چې د دې غره لړۍ د غور ولايت د دولت يار څخه پيل کيږي او د څلورو سوو کيلو مترو په اوږدوالي د هرات د شمال لويديز د قزل بولاق په کلي پای ته رسيږي د دې غره په جنوبي بيخ کې هريرود بهيږي چې هغه له

۱ پورتنى اثر، ۳۳۴ مخ
۲ طبقات ناصري، ص۱۸۳ په حواله، پټه خزانه، ۲۲۷ مخ
۳ پټه خزانه، ۲۲۷ - ۲۲۸ مخونه
۴ د غور لرغوني کلاګانې، پوهاند نړيوال، ۴۰ مخ
۵ جغرافياي تاريخي غور، عزيز احمد پنجشري، ص ۶۹ مخ

سياه کوه څخه بېلوي.

الفدا د خپلې جغرافيا په کتاب کې چې تقويم البلدان نوميږي (تاليف ۷۲۱ هجري) فيروز کوه په بيروز کوه ثبت دي او ليکي چې بيروز کوه د (شين غر) په معنا دي او هغه يوه کلا ده ډېر مستحکمه او د غور د غرونو دارالملك دي. ۱

فيروز کوه د غور ډېر لرغونی ښار او د غوري پاچهانو ډېر لوی سياسي مرکز شمېرل کيږي، دا ښار د ملك الجبال قطب الدين محمد په واسطه تاسيس شو او د سلطان شهاب الدين غوري په دوره کې د خپلې ترقۍ لوړې پوړۍ ته ورسيد.

د منځنۍ پيړۍ مؤرخان او جغرافيه پوهان د دې ښار او د هغه د ماڼيو او عمارتونو له عظمت څخه زياتې يادونې کړيدي.

د طبقات ناصري صاحب منهاج السراج جوزجاني د فيروز کوه په باب ليکي:

چون ملك عزالدين حسين که پدر سلطان بود در گذشت و سلطان سوری به جای پدر نشست ولايت ميان برادران قسمت کرد در اين قسمت، ولايت و رشاد به ملك الجبال داد و دار الملك خود ملك الجبال انجا کرد و بعد از آن او را چنان اتفاق افتاد که موضعی طلب کرد تا قلعه حصين و موضع شگرفی بنا کند که آنحضرت را شايد به اطراف معتمدان فرستاد و تارای او بر موضع فيروز کوه قرار گرفت و قلعه و شهر فيروز کوه را بنا کرد.

طبقات ناصري په لومړي ټوك کې د فيروز کوه په هکله پورتنی موضوع په يو څه توپير سره داسې ياده شوې ده:

فيروز کوه ډېره زياته پر تمينه ډېره پخه او ډېره سخته کلا او ډېر آباد ښار ؤ او د غوري پاچهانو سياسي مرکز بلل کېده.

دا کلا د فيروز کوه د ښار شمال ختيزې خواته په (ورشاده) نومي سيمه کې د فيروز کوه د غره په يوه لوړه او نيغه څوکه باندې د غور د پاچهانو په زمانه کې جوړه شوې ده.

وايي کله چې ملك قطب الدين محمد چې خپل وطني لرغوني لقب يې (غرشاه) په عربي (ملك الجبال) واړوو او ځانته يې انتخاب کړ نو يې تصميم ونيو چې يوه مستحکمه کلا او له عجايبو څخه ډك محل کوم چې د پاچهی دربار سره مناسب وي ودان کړی نو يې د مربوطو سيمو څخه تکړه او ماهر معماران راوغوښتل او د فيروز کوه په غره کې يې ورته ځای وټاکه تر څو يې د همدغه غره په نوم د فيروز کوه کلا او ښار تاسيس کړ. ۲

۱ جغرافياي تاريخي غور، ۶۴ مخ

۲ طبقات ناصري ج۱، منهاج سراج جوزجاني ۱۳۴۲، مخ ۳۳۷

فرشته هم پورتنی قول تاييدوي او وايي: کله چې ملك الجبال د فيروز کلا او ښار په بشپړه توګه ودان کړ نو يې هغه خپل دارالملك وګرزاوه او د ښکار د پاره يې نژدې دوه فرسنګه ديوال وغزاوه دا قصر ملوکانه مانۍ شوه او د سترو پاچهانو روش يې په مخ کې ونيو. ۱

د طبقات ناصري په دوهم ټوك کې فيروز کوه بيا داسې معرفي شوي دي:

د فيروز کوه کلاګانې د لوړو کوشکونو، ښکلو ماڼيو درلودونکې وې چې هم د متانت او ځګوالي له مخې او هم د تجمل او ښکلا له مخې يې هيڅ ساری نه درلود.

په دې اثر کې د فيروز کوه د ښار مشخصات په يو څه تفصيلي ډول داسې ښودل شوي دي:

اين قلعه بود بر شمال شرق شهر، بر سر کوه بلند و شامخ و بدان موضع در عهد سلاطين غور يك قصر بزرګ بيش نبود و رفتن ستورها بران ممکن بود و در ګرد سر آن کوه بر کشيد و راه آن قلعه چنان کرده بود که شتر با بار بران قلعه برفتی و مردم هزار را امکان مقام بودی. ۲

د فيروز کوه ښار پرته له دې چې زياته دبدبه او عظمت يې درلود د ستراتيژيکي وضعيت له مخې د بې سارو پخو کلاګانو څخه ؤ لکه چې ياقوت حموی په معجم البلدان کې د فيروز کوه ستراتيژيکي اهميت په ډېره لنډه توګه داسې بيان کړي دي.

فيروز کوه يوه ښکلې کلا وه او اوبه يې له چينې څخه وې، يعنې د اوبو اکمالات او تهيه د يوې جنګي کلا د پاره چې په ننه کلا کې وي په مدافعوي چارو کې ستر نقش لري.

د ناصري طبقاتو په دوهم ټوك کې راغلي دي:

هغه وخت چې ملك ضياءالدين د سلطان غياث الدين محمد سام څخه وروسته د فيروز کوه پر تخت کښيناست او ځانته يې د ملك علاوالدين لقب اختيار کړ نو غور او غزني د ده تر واکمنۍ لاندې راغلل او د فيروز کلا يې جوړه کړه.

پورتنی روايت دا خبره رامنځ ته کوي چې د فيروز کوه ښار، ماڼۍ او کلا په يوه پلانه دې ودان شوي، د غور پاچهانو د هغې د خاص اهميت په وجه يو د بل پسې د هغې په بيا بيا جوړولو کې خاصه ونډه اخستلې ده.

د منهاج سراج په قول چې دی پخپله د فيروز کوه او د غوريانو په دربار کې روزل شوي ؤ وايي:

ملك الجبال قطب الدين محمد د ملك عزالدين حسين زوی د دې کلا او ښار تاداؤ کيښود او سوري سلطان (سلطان سيف الدين سوري ۵۴۳ هجري/۱۱۴۸ ميلادي د غوريانو لومړنی پاچا چې د سلطان لقب يې واخيست او د پاچهي مرکز يې د رستيه حصار ؤ.) د ورسل (ورشاد) ولايت ملك الجبال يعنې هماغه

۱ د غور لرغوني کلاګاني، ۴۰ مخ

۲ طبقات ناصري ج۲، ۱۳۲ مخ

قطب الدين ته ورکړ او ده د فيروز کوه د کلا تاداو وکيش او جوړه يې کړه خو بيا وروسته تر ده سلطان بهاءالدين سام د فيروز.کوه د دغه ودانی بشپړه کړه يو کال وروسته (۵۴۴هـ/۱۱۴۹م) د هغه ځای پر تخت کښيناست او د ده څخه را وروسته دغه ځای د دارالملك يا حضرت په نوم شهرت وموند.

دا پورتني ليکنه ځکه پوره سمه او ثقه ده چې منهاج سراج د عيني مشاهداتو له مخې چې د دغه زمانې او دربار سړی ؤ، کړې ده.

د يو بل سند له مخې چې وايي: څه وخت چې علاوالدين جهانسوز (د وجيرستان حکمران) د غور د مملکت پايتخت او د فيروز کوه حضرت (دربار-ارگ) باندې کښيناست د سوري سلطان او ملك الجبال د وينو د کسات اخيستلو په مقصد يې پر غزني باندې لښکر وايست، د سلطان محمود مربوطي سيمې يې ورانې کړې او چې غور ته راستون شو او چې يې د غزني له خاورې څخه هر څه راوړي وو نو د فيروز کوه په غره کې يې څو برجونه جوړ کړل چې دغو برجونه له ۵۶۰هـ – ۱۲۶۵م) پورې باقي پاتې وو. ۱

د ځينو مؤرخانو په عقيده چې فيروز کوه يوه لويه کلا ده خو افسوس چې موقعيت يې معلوم نه دي، مگر دا نظريه معقوله نه ده ځکه چې په ډېرو زياتو شواهدو او د نامه د شهرت له مخې (فيروز کوه) د هغه موقعيت بيخي څرگند او معلوم دي.

د فيروز کوه کلا د يوه رود په غاړه ودانه شوې وه چې ښايي دا رود د هريرود پاسنۍ برخه او يا د مرغاب پاسنۍ برخه وي.

خو هولدج چې په ۱۸۸۴ – ۱۸۸۵ ميلادي کې يې د غور سيمې ليدلې وې د تيورې پراخې خرابې چې د هغې د اوسيدونکو په قول په غور مشهورې او د فراه رود مرستيال رود په غاړه پروت او فيروز کوه ورته وايي او د تيورې موقعيت داسې مشخص شوی چې د هرات، فراه او هريرود د پخوانۍ وادي سره په آسانۍ مراوده کولای شي، نو ښکاره ده چې د فيروز کوه اصلي ځای تيواره (تيوري) ده. ۲

په يوه بل روايت فيروز کوه د هريرود په پورتنۍ برخه کې او په ظاهره آهنگران ته نژدې پروت دي او د دې ښار چې د دولسمې پيړۍ په وروستۍ او د ديارلسمې پيړۍ په لومړيو کې د ډېرو مقتدرو، ښکلو او لوړو ودانيو او قصرونو درلودونکي پايتختونو څخه شمېرل کېده په دقيقو توگه نه دي معلوم او وايي چې د فريه خبره سمه ده. (۳) بيا هم دا قول سم نه دي لنډه دا چې د فيروز کوه د ښار او يا جنگي کلا د دبدبې، عظمت او متانت د دورې وروسته د ۶۱۹ – ۶۲۰ هجري د چنگيز د تباه کوونکي لښکر د حملو په اثر د چنگيز د زوی (اوکتای) په واسطه د فيروز کلا بيخي ورانه شوه چې هيڅ نښه نښانه يې پاتې نه

۱ پنځوس مقالې، پوهاند عبدالحی حبيبي، دولتي مطبعه، ۱۳۵۴ کابل ۴۵۰ مخ
۲ شهرهاي آريانا، محمد عثماني صدقي، ۱۳۵۴، ۷۱ خ
۳ (بار تولد، جغرافيايي تاريخي ايران تهران ۱۳۰۸، ۴۴۵ مخ

شوه او له همدې ځايه دي چې اوس يې پېژندل يو څه گران دي او د موقعيت خبره يې يو څه ابهامونو ته وځي.

د فيروز کوه د ښار په متعلق په تاريخي آثارو کې زياتې او مهمې پيښې ثبت دي چې د موضوع د اوږديدلو له کبله يې د بيانولو څخه صرف نظر کيږي

## ۳- د آهنگران ښار (کلا) ۴۰۱ - ۶۱۹ هجري:

آهنگران د غور د لرغونو ښارونو له جملې څخه ؤ او تر ۴۰۱ پورې د امير محمد سوري سياسي مرکز ؤ او په همدې کال د سلطان محمود غزنوي له خوا فتح او د غزني دولت تابع شو.

د آهنگران ښار د اوسني چغچران په لويديز او د هرات د ختيز په ۲۶۰ کيلو مترۍ کې د دې ښار کنډوالي موجودې دي.

يا په بل عبارت دا ښار د هرات ختيز ته د ۲۶۰ کيلو مترو په واټن په هغه نقطه کې چې د ميمنې (يهودان) شمال د هريرود لار د شورك د دري جنوب ته قطع کوي پروت دي.

د آهنگران ښار د زيات شمېر جغرافيه ليکونکو او مؤرخانو په آثارو کې ياد شوي او د ده د متانت او مستحکموالي څخه ستاينه شوې ده، لکه چې پټې خزانې له محتوياتو څخه څرگنديږي د محمد سوري د دربار شاعر، سوري شيخ اسعد (د محمد سوري او د غزني سلطان په جنگ کې د سوري پاچا سره همرکاب او حاضر او د پيښو شاهد ؤ.)

آهنگران يې د سوري محمد د امارت په وخت کې د نوموړي امير عدل له مخې آباد او معمور گڼلې دي.

ابو ريحان البيروني په خپل اثر د (قانون په کتاب) کې د (رف) ښار د آهنگران ښار بللي او موقعيت يې ورته د غور د غرونو په منځ کې ښودلي دي، او د غور د ډېرو مستحکمو کلاگانو څخه يې شمېرلې ده چې په ۴۰۱ هجري د غزني د امپراطور له خوا فتح شوه.

حمدالله مستوفي په نزهه القلوب (په ۷۴۰ هجري کې تاليف) له آهنگران څخه داسې يادونه کوي:

غور يو مشهور ولايت دي او د هغه شهرستان ته آهنگران وايي، دا يو لوی ښار دي گرم سير او هوا يې په جوړوالي او روغتيا کې د انگورو او خربوزو له ميو څخه ډېره ښه ده او موقعيت يې د طول البلد د ۹۹ خطونو او عرض البلد ۳۵ خطونو په منځ کې دي.

مينورسکي د حدود العالم په حواشي او تعليقاتو کې ليکي:

د لرغوني غور د پايتخت نوم د عربو د جغرافيه ليکونکو په کتابونو کې نه ښکاري مگر د سلطان محمود غزنوي د فتوحاتو او هم د مغلو د حملو په وخت کې آهنگران د غور د ډېرو لويو ناحيو څخه ياد

شوي او د آهنګران په باب د نزهه القلوب روايت د هغه د اوسني موقعيت سره سمون خوري. ۱

په څرګنده او رښتينې توګه آهنګران د کاسي په جنوب او د برنی هريرود په برخه کې موقعيت لري او د زياتو پوهانو په عقيده لکه روسي محقق بار تولد (چې د مخه يې هم روايت را واخيستل شو) چې پخپله تاريخي جغرافيه کې يې ليکلي دي: د آهنګران کلي هماغه کلي دي چې اوس د هريرود په سيمه کې پروت دي مګر راورتي د ناصري طبقاتو په ترجمه کې سخته غلطي کړې ده او هغه يې د غزني د آهنګ د نهر په شاوخوا کې ګڼلي دي.

خو د ارواښاد حبيبي د اهنګران لومړنی موقعيت سم بولي او وايي چې آهنګران هم په همدغه نوم شهور او نښې نښانې يې ښکاره دي او د برنی هريرود په غاړه د کاسي په جنوب کې پروت دي.

احمد علي کهزاد د آهنګران د موقعيت يو څه نورې بيلګې په ګوته کوي او ليکي: د آهنګران کلا د ۲۲ کيلو مترو په اندازه د کاسې جنوب ته د وادي په منځنۍ برخه کې د يوې خاورينې غونډۍ د پاسه د ۵۰ مترو په واټن د هريرود کينۍ خواته پروت او د هغه د مات شوي ديوال دوی توټې لويې تيږې هم هلته پرتې دي. ۲

لکه چې د مخه وويل شو د آهنګران د ښار څخه يو ازې يو کلي پاتې دي چې د هريرود په پاسنۍ برخه کې موقعيت لري، د آهنګران ښار د غور پاچهانو د ودانيو له جملې څخه شمېرل کيږي چې خرابه يې اوس هم په چغچران کې موجوده ده.

د آهنګران د ښار (کلا) بنسټ اينبودونکي او د هغه د تاداو اينبودلو او جوړولو نيټه معلومه نه ده او هم دا پته نشته دي چې د کوم غوري پاچا په زمانه کې جوړه شوې ده، خو په تاريخي پيښو کې چې له آهنګران څخه يادونې شوي دي او وايي چې آهنګران د غور د پخو کلاګانو او ښارونو څخه دي او د شهرستان نوم هم ورته په دې ورکړ شوي دي چې ممکن نور واړه ښارونه او يا کلاګانې يې په ساختماني ترکيب کې شاملې وي.

آهنګران په ۴۰۱ کې د سوري د کورنۍ د حکمرانۍ مقر باله کېده چې د فيروز کوه څخه يې تاريخي سابقه مخکې وه، د دې دورې وروستنی امير محمد سوري نوميده چې د قاضي منهاج سراج په وينا کله به يې د سلطان محمود غزنوي څخه اطاعت کاوه او کله به يې ترې سرغړونه او تمرد ښکاره کاوه، تر څو چې سلطان محمود د لوی لښکر سره غور ته راغی او محمد سوري هم د لسو زرو عسکرو سره مقابلې ته راپورته شو او د آهنګران له کلا څخه يې په پوره ميړانه دفاع کوله، خو چې په دغه جګړه کې محاصره او سلطان ته تسليم شو، سلطان محمود هغه غزني ته راووست او د ده پر ځای يې د ده زوی شيش د آهنګران

۱ جغرافياي تاريخي غور، ۶۶ – ۶۷ مخونه

۲ غوريان، عتيق الله پژواک، دولتي مطبعه، ۱۳۴۵ کابل، ۱۲ – ۱۳ مخونه

حاکم وتاکه.

د دې پېښې تفصیل په یو بل روایت کې داسې راغلي دي:

په یوولسمه میلادي پېړۍ کې چې سلطان محمود د غور د بت پرستانو په مقابل کې لښکر کشي وکړه او هغه یې ونیو او په خلکو یې رسماً د اسلام دین ومانه او د غزنوي دولت تابع یې کړ. مګر ځینې برخې چې د سوریانو د سلطنت د سلسلې د اصلي سلالې څخه وي خپلواکې پاتې شوي چې د دې سلسلې له پاچهانو څخه یوه پاچا د غور د آهنګران په ښار کې سلطنت کاوه او دغه پاچا امیر محمد سوري و او کله چې د سلطان محمود غزنوي له خوا د یوې لښکر کشۍ په ترځ کې د آهنګران په کلا کې محاصره او بیا بندي شو نو دا وه چې هلته یې ځان په زهرو وواژه. جوزجاني عقیده درلوده چې په ۱۰۴۴ د غور شهرستان ته آهنګران ویل کېده، او حمدالله مستوفي د غور د مهمو ښارونو په جمله کې آهنګران په (هنګران) ثبت کړی دی تر څو چې په ۶۱۹ هجري د آهنګران ښار د چنګیزي لښکرو د فساد په واسطه وران شو.۱

## ۴- د خیسار ښار (کلا) ۴۱۱ – ۵۵۸ هجري/۱۱۶۲ میلادي:

د غور د ډېرو لویو، جګو، پخو او ښکلو کلاګانو څخه چې د غور په لوړو غرونو (د خیسار د غره یا کوه روئین) کې پرته ده، یوه هم د خیسار کلا ده، کومه چې په برم او محکموالي کې یې هیڅېرته ساری نه درلود د یاقوت په قول د هرات او غزني تر منځه په سرحدي برخه کې دا غر موقعیت لري. چې بیقهي هم په ۴۱۱ هجري کې کله چې سلطان مسعود له هراته په غور حمله کوي لومړنی منزل یې (راباشان) او دوهم منزل یې خیسار یادوي او بیا په بل ځای کې تولك او اصطخري هغه له هراته د دوه ورځنی لارې په فاصله کې بیانوي، خو ځینې پوهانو د خیسار د غره موقعیت د اوسنی زرنی د غرونو د لړۍ لویدیزې خواته د (جهان کلا) محل اټکل کړې دي.

اوس هم قیصار د خیسار سم نوم دي چې د فیروز کوه د غرونو په سلسلو کې پروت دي.

د مستر فریه په قول دا کلا د سلطان غیاث الدین ابوالفتح په واسطه جوړه شوې ده.

احمد علي کهزاد چې د یوه سفر په ترځ کې یې د خیسار کلا او د هغې خرابې لیدلي دي داسې لیکي:

د خیسار کلا چې د غور ادیبان یې د (خونسار) او (قیصار) او عوام یې د (نجلۍ کلا) په نامه یادوي د غور د ډېرو زیاتو مستحکمو پخو او لوړو کلاګانو څه ده چې د دې کلا لوړوالي بیا هم د خرابکاریو او بشري لاس وهنو له کبله خوندي پاتې دي او دا یوازنۍ کلا ده چې تر ننه پورې یې د کُلا د باندنیو او د ننیو برجونو ډېر شواهد باقي پاتې دي چې شکل او محکموالي او آبادی د زمانې دبدبه یې په ډېره ښه توګه تصور کیدای شي.

۱ جغرافیاي تاریخي ایران، بار تولد، ۱۳۰۸ تهران، ۴۳ مخ

خيسار په مستقيمه توګه د تيوري په جنوب لويديز کې پروت دی په ناصري طبقاتو کې په څرګنده توګه د کومې کلا څخه يادونه نه ده شوې مګر د غور د پنځو غرونو په باره کې خيسار يا (خج خيسار) راغلي دي چې دې غره ته نن د جهان د کلا ګانو غر ويل کيږي او دا غر د غور د ډېرو ښکلو او لوړو غرونو څخه دی. ۱

## ۵- داستيه ښار (۵۴۳هجري ۱۱۴۸ ميلادي – ۵۴۴ هـ ۵۵۸هـ/۱۱۴۹):

داستيه ښار د غور د اداري او سياسي لرغونو مرکزونو څخه يو مرکز او د سلطان سوري د سلطنت په وخت کې د هغه د پاچهي پايتخت ؤ.

طبقات ناصري داستيه د ښار موقعيت د هرات او غزني په منځ کې ښيي خو مشخص محل يې معلوم نه دی. د دې ښار تاريخ د شپږمې هجري د نيمايي پورې تعلق لري. ۲

د ياقوت حموي په قول استيه د غور د مشهورو ښارونو (کلاګانو) څخه دی د سوري سلطان (سلطان سيف الدين سوري (۵۴۳ - ۵۴۴ هجري/۱۱۴۸ – ۱۱۴۹ ميلادي) په زمانه کې دا ښار د غور اداري او سياسي دارالملك په توګه وټاکل شو. نوموړی د غوريانو لومړنی پاچا دی چې په دې لقب (سلطان) باندې ياديږي.

د سلطان غياث الدين محمد د بل ورور ابو المظفر معزالدين چې د غور د سترو پاچهانو له جملې څخه ؤ او خپل ورو يې د سر جاندار (جبه رسان د ګارد قوماندان) په توګه د غور د کجوران او استيه د کلا د حکمران په توګه وټاکه (۵۵۸هجري/نسخه، ۵۵ مخ.)۳

## - د زرنی ښار (کلا) ۱۳۹ هجري:

زرنی د غوري واکمنانو د پايتختونو څخه يو پايتخت ؤ چې اوس د يو کلي په توګه راغلي دي او د تيوري د کلا د جنوب په ۵۳ کيلو متری کې واقع دی، دا ښار د ۶۴ درجو، ۳۰ دقيقو او ۶ ثانيو شرقي طول البلد او ۳۳ درجو، ۱۰ دقيقو او ۵۵ ثانيو شمالي عرض البلد کې موقعيت لري، د آب جوش نهر د هغه د لويديز څخه تيريږي او د فراه ولايت مربوط د زرنی تګاب په سيند کې توئيږي او د هغه د کنډوالو اثار اوس هم په دغه کې ليدل کيږي.

فرانسوي جنرال فريه په ۱۸۴۵ ميلادي دا کنډوالي ليدلي او ليکلي دي چې دا ځای د غوري لرغونو پايتختونو څخه شمېرل کيږي، په دې توګه نورو ليکوالانو هم زرنی په خپلو ليکنو کې د غور پخواني

۱ د غور تاريخي جغرافيه ۸۱ مخ
۲ جغرافياي تاريخي غور، ۴۸ مخ
۳ د غور لرغوني کلاګانې. رازقي نړيوال، قلمي نسخه پنځه پنځوسم مخ

پايتخت او هغه ته د غوري امپراطـــورۍ د دبدبې او برم په وخت کې معمور او آباد ښار ګڼلي دي. ۱
په يوه سل روايت زرنی د مساحت له مخې يو کوچنی ښار ؤ او پـه يـوه کـلا کې چې د تيرو او خښتو څخه جوړه شوې وه او زياتې برخې يې نړيدلي دي محاط ؤ.
د زرنی د ښار مؤسس د دې ښار د جوړولو د پاره د زرنی د رادي په منځ کې ډېر ښه موقعيت انتخاب کړې ؤ چې د تپې شاوخوا يې په ونو پټه وه او هرې خواته يې کرې ورې وياله رابهيدلې.
زرنی له هراته ۴۰ فرسخه مسافه لري او نفوس يې له ۱۲۰۰ تنو څخه تيرې نه کوي چې لـه سوريانو او تيمنی ګانو متشکل ؤ.
د ګير حو کورنۍ چې د لومړۍ ځل د پاره ورسره په افغانستان کې مخامخ شوم همدلتـه مې وليدلې. (راوي)
زرني چې په ورنی (يا) (ورنی) هم ثبت شوې دي. او که د طبقات ناصري مؤلف د غـور د پنځو غرونو د يادونې په ترڅ کې هغه (راسيات جبال عالم) بولي خو د کوم سند او ماخذ ذکر نه کوي.
مګر زيات شمېر پوهان همدا زرنی د غور د پايتخت په شکل پيژني نه پردې ورته، نوم بل ښار.
ويل کيږي چې زرنی يو لوی کلي دي چې د تيوري په جنوب کې موقعيت لري او د ننی غـور لـه مرکز څخه د (آيه) او (دو رودي) له لارو څخه ۶۰ کيلو متره ليرې پروت دي.
د زرنی کلا د يوې غونډۍ د پاسه پرته ده چې د ختيز لـه خوا د پنج شاه پـه غـره او د جنوب له خوا د نمکه غر او د لويديز خواته يې خچه ګك لورته غرونو احاطه کړې ده.
زرنی، نيلي او د مژګان دره د غور ډېرې جنوبي څنډې ګڼل کيږي چې د کندلان، بالشتان، ګلستان، زميندا ور او ګرمسير سره ګاونډيتوب لري.
ښاغلي کهزاد د طبقات ناصري د روايت په اشارې سره دا هم زياته کړې ده چې: د زرنی د موجوده کلا ګنجايش (ابعاد) د کجوران د مقر څخه نماينده ګي کوي د کلا حجم د غـور د ډېرو زيـاتو مستحکمو، ښکلو او جګو کلاګانو څخه دي.
د زرنی په لويديز افق کې د لومړنی غره (پنج شاه) په پورې او د زرنی په نژدې سيمو باندې حاکميت لري او د هغې د ښخو شوو خزانو په باب داستانونه لکل شوي دي.
بايد وويل شي چې د تاريخي اسنادو په اعتبار د زرنی نوم بيخي مؤثق دي.
نعيمي ليکي: که د غور جغرافيه وکتل شي د زرنی د اوسني ښار او سيمې پـه هکلـه (هولدچ) او فريـه په تفصيل سره خبرې کړې دي او پـه هم هغه موقعيت کې چې زرنی پرته ده مونږ يې پيژنو. ۲

۱ غوريان، عتيق الله پژواك ۱۳۴۵ کال، ۲۳ مخ په حواله جغرافياي تاريخي غور، ۴۸ مخ
۲ د غور لرغوني کلاګانې، ۵۶ ــ ۵۷ مخونه

په هغه تاريخي آثارو کې چې ماترې استفاده کړې ده د زرني ښار او يا کلا بنسټ ايښودونکي نه دي ښودل شوي، همدا راز د غور د پاچهانو څخه د مشخص پاچا نوم پکې نه دي اخيستل شوي. مگر څرنگه په مخکنيو رواياتو زرنې د غور د امپراطورۍ پلازمينه گڼلې شوې ده نو دا په دې خبره دلالت کوي چې د دغې دورې د پاچهانو د وخت د پيښو سره يې هم تعلق درلود د زرني ښار کلا د ستراتيژيکي وضعيت او موقعيت له پلوه په يو مناسب محل کې جوړ شوي او خاص پوځي او تدافعي اهميت لري.

## ۷- د زمينداور ښار (کلا) ۱۳۹ هجري:

زميندا ور (د اروا ښاد رشاد په قول زنيداور) د غور د غرنيو سيمو جنوب خواته په منځنيو پيړيو کې د هلمند ولايت په شمالي سرحدونو کې پروت دي چې د غوري واکمنانو د ژمني پلازمينې په تېره بيا د غور د ستر سلطان غياث الدين (۵۵۹ – ۵۹۹ هجري) د سلطنت پايتخت ؤ

که څه هم دلته له پخوا زماني راهيسې د غور واکمنانو استفاده کوله، خو د (پټې خزانې) په حواله امير کروړ د سوري امير پولاد زوی (۱۳۹ هجري) په مورد کې ويل کيږي:

چې امير کروړ به په دوبی (زميندا ور) کې و او هلته به يې ماڼۍ درلودله چې کټ مټ د منديش د ماڼۍ غوندې وه او په دغه ځای کې يې ښکار کاوه او عشرت. ۱

بايد وويل شي چې د غور د دې دوبني پايتخت زيات سياسي اهميت د سلطان غياث الدين د سلطنت په زمانه کې ښه پيژندل کيدای شي، چې له دې ځای څخه يې په ټول افغانستان، هندوستان او د ايران په يوه برخه حکمراني کوله.

په دغه زمانه کې په (داور) کې يې يو ښکلي او له دبدبې ډك باغ جوړ کړې ؤ چې د باغ ارم باغ حرم په نوم ياديده او قاضي منهاج سراج جوزجاني د سلطان غياث الدين په يادونه کې له دې ب غ څخه هم يادونې لري.

داسې روايت دي چې نوموړي سلطان د ځوانۍ په لومړني وخت کې يو لوی معاشر ؤ او د ښکار سره يې مينه درلودله، د فيروز کوه لـه ارگه چې د ده پلازمينه وه د زميندا ور تر ښاره پورې چې ژمنې دار الملك ؤ هيڅ ژوندي ته اجازه نه وه چې ښکار وکړي او د دې دواړو ښارونو ترمنځه واټن ۴۰ فرسنگه ؤ.

نوموړي پاچا په زميندا ور کې چې کوم باغ جوړ کړې ؤ، د باغ ارم نوم يې پرې ايښودلې ؤ او الحق چې د دنيا پر مخ د ښکلا او تازه گۍ لـه مخې هيڅ يو پاچا داسې باغ نه درلود. اوږدوالي يې له دوو ميدانو وار څخه زياتښت کاوه ټولې چيني يې په صنوبر، ابهلو او د رياحينو په بوټو ښکلي کړې شوی وي. سلطان امر کړی ؤ چې د دې باغ تر څنگه يو ميدان جوړ کړي چې د دغه ميدان اوږدوالي او لنډوالي

۱ پټه خزانه، محمد بن داود هوتك، پوهني مطبعه، ۱۳۳۹ کال، ۳۲ مخ

سره مساوي یعنې مربع الشکل ؤ او هر کال به یې یو ځل فرمان ورکاوه چې د ۵۶ فرسنګو په اندازه له نژدې سیمو څخه لس زره ښکاریان دغه میدان ته راټولیدل او په دې ترتیب د ښکاریانو پر تمین جشن یې جوړاوه. ۱

فخرالدین مبارك چې په دغه جشن کې موجود ؤ دا رباعي یې وویله:

اندر می و معشوق و نگار اویزی
به زان باشد که در شکار اویزی
آهوی بهشتی چو بدام تو دراست
اندر بزکوهی به چه کار اویزی

اوس په داور کې په دې نوم کوم باغ نشته خو په قوي احتمال سره دا نوم د باغران په ولسوالی کې چې په تاریخي زمینداور کې پروت دي موندلای شو، ځکه چې په اصل کې دغه باغ (باغ ارم) ؤ او د وخت په تیریدلو سره په باغران اوښتلي دي. د دې په خوا کې یو بل دلیل هم شته دي چې په دغه ولسوالی کې اوس هم طبیعي ښکلي منظرې خود رویه ښکلي ګلونه او زیات شمېر ځروبی موجود دي او د قاضي منهاج سراج هماغه خبره را یادوي چې دلته باغ ارم جوړ شوی ؤ.

نن زمینداور په کوچنی کلي بدل شوی چې د هلمند ولایت د موسی قلعه د دریو میلو په مسافه د جنوب خواته پروت دي. د شمال خواته د باغران ولسوالی او د جنوب له خوانه د هلمند د څپانده سین او د شرق له خوا د ارزګان ولایت او دهراوت ولسوالی او د لویدیز له خوا نه د موسی کلا سره نښتلی دي. ۲

## ۸- د غلغلې ښار (د بامیانو کلا) ۵۴۰ – ۶۱۸ هجري:

د غوري دولت د پلازمینو څخه یو هم په بامیانو کې د غلغلې ښار دي، پخوا تر دې چې بامیان د شنسب د کورنۍ سیاسي مرکزیت پیدا کړي د غلغلې ښار یو مذهبي مرکز ؤ او د نړۍ له هر ګوټ څخه د هغو د مشهور... د زیارت په مقصد ورته زایرین راتلل او بیا هغه وخت چې د غوریانو سیاسي نفوذ په دغه سیمه کې پراختیا وموندله او مسلمانان ورته راغلل نو یې وغوښتل چې په اسلامي سبك یو ښار او یو مرکز دلته ودان کړي، همدا وجه وه چې د بامیانو د غلغلې ښار چې د اسلامي دورې د خصوصیاتو مرکز ؤ د شنسبیانو د کورنۍ د سلطنت تر تاسیس وروسته د سلطان علاوالدین حسین جهانسوز په لاسونو دا ښار تاسیس او د شنسبیانو لومړنی امیر ملك فخرالدین مسعود بن حسین شنسبي چې د علاوالدین حسین مشر ورور ؤ په بامیانو کې قدرت ته ورسید او (۵۴۰ – ۵۸۰ هجري) پورې یې پاچهي وکړه. دې پاچا د شغنان او طخارستان د غرونو سلسلې، د درواز، بلور او ترکستان تر پولو پورې د خپل

۱ غوریان، عتیق الله پژواك، ۱۳۴۵، ۷۱- ۷۲ مخونه
۲ جغرافیاي تاریخي غور، (۵۹ – ۵۰ مخونه

دولت نفوذ ورساوه، خشن او بدخشان يې په خپل واک کې راوستل د شنسب د کورنۍ پنځو تنو په باميانو حکومت وکړ او وروستنی امير يې علاوالدين مسعود بن شمس الدين محمد ؤ (۶۱۰ هجري په حدود کې) تر ده وروسته جلال الدين منکبرتي د خوارزم د شاهي کورنۍ څخه د سلطان محمد خوارزم شاه زوی د يو څو مودې د پاره پر باميانو حکومت وکړ، تر څو چې دا ښکلي او تاريخي ښار د چنګيز د حملو له لاسه په ۱۲۲۲ ميلادي وران او د خاورو سره خاورې شو نن ورځ د دې ښار کنډوالې د بودا د مجسمو په مقابل کې د يوې جګې تپې د پاسه پرتې دي او د دې ښار اصلي اوسيدونکو دا ښار د پر لوی باله او ويل يې چې د دې ښار لمنې د پولادي درې يعنې د شمال لويديز خواته د ښار د ډېرو ليريو سيمو پورې پراختيا درلوده، د دې ښار له کنډوالو څخه يو پخپله ارګ دی چې د تپې د پاسه په ځانګړې توګه واقع ؤ او نورې بقاياوې يې اصلي ښار دي او زيات جمعيت يې درلود، تجارت او صنعت پکې زيات ترقي کړې وه او د سوداګرۍ کاروانونه له جنوبه شمال ته او له شماله جنوب ته تګ او راتګ درلود او د غلغلې ښار يې دمه ځای ؤ. ۱

د غور د تاريخي جغرافيه ليکوال د غلغلې د ښار او د هغه د پېښو په باب په تفصيل سره څرګندونې لري او وايي: ... د يوه لوی ديوال په مقابل کې .... په زرينځي رنګ په نيمه مخروطي شکل د بآميانو د نرۍ اوبو ښي څنډې ته د سرې پاملرنه ځانته را اړوي چې هغه د غلغلې ښار د بالاحصار څخه عبارت دي.

د ښار لمنه د بالاحصار د احاطې څخه څو کرته پراخه ده، پخپله د غلغلې ښار په تاريخي ماخذونو کې ليدل شوي نه دي خو د باميانو کلا يا کلاګانو لکه ضحاک او سرخشک ته اشاره شوې ده، د دې ښار اوسيدونکو د شپږمې هجري پيړۍ په لومړيو کې په سمڅو، پخو ودانيو، لويو برجونو، د پخو او موخښتو او تيږو څخه په جوړو شوو ودانيو کې ژوند کاوه. وروسته تر هغې چې علاوالدين محمد خوارزمشاه د ۶۰۷ – ۶۱۱ هجري کلونو په شاوخوا کې د غوريانو او غزنويانو اردوګانو ته ماتې ورکړه، زوی يې جلال الدين د غلغلې په ښار کې خپل مرکزيت ټينګ کړ، تر څو چې د چنګيز وحشتناک هجوم د شمالي برخو څخه د هندوکش جنوب ته سرايت وکړ او په زيات ګومان سره چنګيز د شکاري درې څخه باميانو ته راننوتلی او د ضحاک په ښار کې چې د باميانو د شمال ختيز په ۱۷ کيلو متری کې يې کنډوالې موجودې دي چې د باميان او کالو د ښار د ساحو اوبه يو ځای کيږي او څه وخت چې موتې جن د چغتای زوی او د چنګيز لمسی ووژل شو نو چنګيز قسم وخوړ چې په ښار کې به نوم ژوندي، انسان وي او که حيوان ژوندي پاتې نه شي نو د غلغلې ښار يې تر ډېر مقاومت وروسته په ۶۱۸ هجري ۱۲۲۲ ميلادي کې د خاورو سره خاورې کړ د مغلو فاتح ښار ته اور واچوو او هغه څوک چې د اور له لمبو څخه په امان پاتې شوي وو له يوه سره يې له تيغه تير کړل او بالاخره د غور شنسبيانو او خوارزمشاهانو د علم

۱ جغرافياي تاريخي غور، عزيز احمد پنجشيري، ۵۱ – ۵۲ مخونه

دوستو او هنر پالونکو پاچهانو د (آزاده ګان) کلا دغه د علم او فضيلت او هنر کانون پخپله اصطلاح (ما او بالغ) يعنې د مغصوب او نحس ښار لقب ورکړ.

د غلغلې جنوب لويديز ته د غلغلې د ښار کنډوالي د سيد آباد په کلي کې د يو مستطيل شکل کلا بدنه د هغې د لوړو ديوالونو سره موجوده ده چې د غلغلې د ښار د وګړو ورځنيو محاورو له مخې د (قلعه دختر) په نوم مشهوره ده.

په دې هکله زياتو پوهانو لکه پروفيسور هاکن، فرانسوي مشهور لرغون پيژندونکي، پروفيسور مينورسکي او داسې نورو پوره څېړنې تر سره کړې او د غلغلې د ښار پيښې يې بيان کړې دي. ١

## ٩- د غزنه ښار (کلا) ٥٥١ – ٦١٢ هجري:

د غزني د ښار په باب په مخکنيو ګڼو کې (٤٣٩- ٤٤٢) په پوره تفصيل سره لازم معلومات وړاندې شوي دي، خو دلته د موضوع سره د مناسبت له مخې په لنډ ډول يو څه نور زوايد پردې اسنادو برسيره د غلغلې د کلا دوه يادګاره هم د کابل په موزيم کې موجود وو چې يوه يې د لرګي دروازه چې د هغې په پورتنۍ برخه کې په کوفي رسم الخط (الملک لله) ليکلي شوي او بل يادګار يو خطي کتاب ؤ چې په فالنامو مشهور ؤ او هغه د څو رسالو څخه عبارت دي او ځينې نور يادداښتونه کوم چې په ٥٨٣ هجري کې ليکلي شوي دي او د شنسبيانې دوهم امير ملک شمس الدين د ملک فخر الدين زوی د سلطنت د دورې سره مطابقت چې تر ٥٨٦ هجري ليکل کيږي.

د غور د پاچهانو د لويو او سياسي مرکزونو څخه يو هم د غزنه ښار ؤ چې هلته د غوري کورنۍ پنځو تنو سلطنت کړی دی او په جمله کې لوی پاچا غوري سلطان معزالدين د سلطان سيف الدين سوري ورور ؤ چې د غور او ختيز د سترو پاچهانو څخه شمېرل کېده، دې علم دوست او مدنيت پالونکي پاچا د غزني د ښار بيا جوړونې ته چې د علاوالدين جهانسوز له لاسه وران او ويجاړ شوی ؤ ملا وتړله او تر يوه حده پورې يې د غزنين ښار بيا ودان کړ.

په دې دوره کې د غزنه د سياسي قلمرو پولې د ختيز خواته د کنګا تر غاړو، له لويديزه د خراسان خوارزم د سيمو، د نسا او بارور د پورې اوږدوالي درلود او د جنوب له خوا نه د عرب د بحيرې سره نښتې.

نوموړي پاچا په ٦٠٢ هجري چې د چنګيز د وتلو کال دی مړ شو ښايي ووېل شي چې د سلطان معزالدين ژمنې پايتخت د لاهور ښار ؤ او د اوړې پلازمينه يې غزنه او خراسان.

د غزنه پنځه تنه پاچهان دا دي:

١- سلطان سيف الدين سوري، ٥٥١ هجري.

---

١ جغرافياي تاريخي غور، ١١١ – ١١٣ مخونه

۲- سلطان معزالدین غوري، ۵۶۹ – ۶۰۲ هجري.
۳- سلطان علاوالدین محمد بن سام، ۶۰۲ – ۶۱۲ هجري.
۴- سلطان تاج الدین یلدز المعزي.
۵- ملك الکریم قط الدین ایبك المعزي. ۱

## ۱۰- د برکوشك ښار (کلا) ۱۳۹ – ۶۱۱ هجري/۸۵۶ میلادي:

د برکوشك کلا چې د برکوشك په مانۍ باندې شهرت لري او په سلطاني کوشك هم یادیږي په ځینو مواردو کې ورته ښار هم ویل شوي دي په فیروز کوه کې پرته وه.

یا په بل عبارت د فیروز کوه له ښارونو څخه یوه هم د برکوشك ډېره مجلله او له عظمته ډکه د غوریانو د دورې ودانۍ ده، چې د احنف بن قیس له خوا جوړه شوې ده، دا هماغه مانۍ ده چې د پاسه یې په سرو زرو مرصع کنګرې د درو مترو په لوړوالي او د دوو مترو په پسور جوړې شوي دي او د سرو د هما مجسمه د اوښ په اندازه پرې نصب شوې ده.

برکوشك هغه قصر دي چې په فیروز کوه کې آباد شوي او په ناصري طبقاتو ترې داسې توصیف شوي دي:

برکوشك قصریست در میان فیروز کوه که در هیچ ملك و مثل آن به ارتفاع و تدویر و ارکان و منظره ها، رواقات و مشرفات هیچ مهندسی نشان نداده است و بالای قصر پنج کنگره ازین مرصع نهاده اند هر یك به ارتفاع سه گز و چیزي در عرض دو گز و دو همای زرین هر یك به مقدار شتر بزرگ نهاده به آن شرفات زرین هما. ۲

په پورتنۍ اثر کې د برکوشك څخه په مکرر صورت یادونې شوي دي او وایي چې دا مانۍ د یو لوړ غره د پاسه پرته ده او له دې کبله ورته بر (پورته) ویل کیږي چې لوړتیا او جګوالي کې یې سارې نه درلود او د فیروز کوه له نامتو ښارونو څخه ګڼل کیږي. ۳

څرګنده ده چې په فیروز کوه کې د برکوشك سربېره نورو مشهورو کلاګانو هم موقعیت درلود.

د برکوشك مانۍ د معماري د صنعت له پلوه د هغې منظرې، رواقونه، (ګنبدیزي طاقچې) او داسې نور تزئیناتي ترتیبات په ډېر مقبولیت او ظرافت سره کار شوي دي.

په همدې ډول د دې مانۍ د مهندسي چارې په ډېرو لوړو هنري معیارونو تر سره شوي دي چې د نړۍ په نورو مدنیتونو کې یې بیخي نظیر نه لیدل کیږي.

---

۱ د طبقات ناصري، ۴۰۵ مخ په حواله، جغرافیاي تاریخي غور، ۵۲ مخ
۲ طبقات ناصري ج۱، ۷۵ مخ
۳ طبقات ناصري، ج۲، طبع ۶۵۸ هجري ۳۸۲ په حواله د غور لرغوني کلاګاني، ۶۴ مخ

د مانۍ د پورتنيو مشخصاتو په تاييد ويل شوي چې دې مانۍ پنځه كتارې (كنگرې) درلودلې چې هر يوه يې دوه په دريو گزو كې اوږدوالي درلود، د سرو زرو او جواهراتو څخه جوړې شوي وې دوه د سرو زرو گوربتان چې هر يو يې د اوښ په اندازه غټ ؤ د مانۍ د پاسه ځای په ځای شوي وو.

د دې مانۍ د كتارې دا د وه سيمرغه سلطان غياث الدين د اجمير تر فتحې وروسته د تحفې په ډول د نورو سوغاتونو سره يو ځای د غور د لوی سلطان غياث الدين د پاره فيروز كوه ته راليږلي وو. ۱

چې له دې جملې څخه زرينه كړۍ زرينو ځنځيرونو سره د يوې جريرې چې (۵X۵) مترو كې يې دايره وه د زريني غړې (....) چې په څرخ (گردونه) ځراوه، د سلطان غياث الدين په امر دغه كړې او جريره يې د فيروز كوه د جومات په طاق كې ځوړند كړل او كله چې يو وخت دا جومات سيلاب وران كړ نو يې هغه د هرات جومات ته واستول او بيا كله چې د هرات جومات هم ويجاړ شو د همدغو قيمتي شيانو په وجوه او ارزښت يې هغه بيا له سره ودان كړ. ۲

د بركوشك مانۍ په ۱۲۰۹م / ۸۵۶هـ كې د ډېرو نورو لوړو كلاگانو غونډې د امير كروړ په واك كې وه.

په پټه خزانه او نورو تاريخي اسنادو كې د دې ښار په باب يادونې شته دي چې د بيان څخه يې صرف نظر كيږي.

اوس د بركوشك حقيقي محل مشكوك دي او په اوسني غور كې د بركوشك په نوم كوم ځای نه ليدل كيږي، مگر بايد وويل شي چې د كوشك كلمه د غور په ځينو سيمو لكه د سركشك كلي، قلعه كشك، كشك عليا او كشك سفلي او قريه كشك كې ليدل كيږي چې دا ټول د غور ولايت د لعل و سرجنگل د ولسوالی په لويديز كې موقعيت لري او دا تاريخي نوم يې ژوندي ساتلي دي.

## ۱۱- د تولك ښار (كلا) ۳۵۳ هجري:

تولك د غور او غرجستان له لرغونو مهمو ښارونو څخه دي، د دې تاريخي ښار د جوړېدو نسبت ابو علي محمد بن العباس تولكی ته كيږي چې د غور زيات پوهان او شخصيتونه له دې ځايه راپورته شوي دي.

كه د تولك د تسميې وجه وڅيړل شي نو په پښتو (د غوريانو) ژبه داس پورته او ښكته ځغلولو ته ورلك تولك وايي.

اوس تولك د يوې ولسوالی په توگه د هرات په جنوب ختيز او د شهرك په جنوب لويديز كې د شرقي طول البلد په ۶۳ درجو او ۴۴ دقيقو او شمالي عرض البلد په ۳۳ درجو او ۵۸ دقيقو په خطونو پروت دي

---

۱ مدنيت غوري د ر افغانستان، شهزاده سيف زي، پوهنځي ادبيات و علوم بشري، ۱۳۵۵ كابل، ۲۳ مخ
۲ جغرافياي تاريخي غور، ص۶۵

او د بحر له سطحې څخه ۲۲۵۰ متره لوړ او ۲۹۵۶ کیلو متر مربع مساحت لري. ۱

د تولك د مشخصاتو او ساختماني خصوصیتونو په باب هم زیاتې یادونې شته دي، وایي چې د تولك کلا یوه هغسې کلا ده چې د هیڅ یو غر سره نښتې نه وه، د منوچهر په زمانه کې جوړه شوې وه چې د غور او خراسان په منځ کې یې موقعیت درلود، دې کلا د غشو د ویشتلو د پاره سوري (تیرکشونه) درلودل، د کلا د پاسه د تیږې او چونې (سنگ خارا) څخه خونې جوړې شوې وې چې ارشي ورته ویل کېده امیر نصر تولك د کلا د پاسه د اوبو حوض جوړ کړ چې د هغه گرد چاپیر د چونې او تیږې څخه شل په شلو مترو کې ؤ او اوبه ترې هیڅ نه تیریدلي (طبقات ناصري، ج۲) خو د دې اثر لومړی جلد په یو بل ځای داسې اشاره کوي چې تولك د هرات په غرونو کې واقع دي (۱۳۳ مخ).

په یو بل روایت سره چې وایي: د تولك کلا یوه هغسې کلا وه چې د یوه غره د پاسه چې په تندي کې یې د وریځو سره غاړه ایستله او پوخوالي کې یې د سکندر د دیوال سره سیالي کوله. ۲

د دې کلا د پوخوالي او نه تسخیریدلو حاج د یو روایت څخه اخیستل کېدای شي چې وایي: هغه وخت چې مغلو په تولك برید وکړ د تولك خلکو پوره ۸ میاشتې د هغوئ سره جگړه وکړه تر څو چې هغوی ناکام مراجعت ته مجبور کړل شول.

د تاریخي اسنادو له مخې د تولك کلا تر ۳۵۳ هجري نه د مخه ودانه شوې وه او دا ځکه چې په دې کلونو کې په زیاتو تاریخي پیښو کې د دې کلا یادونې شوې دي. ۳

نن تولك د هرات ښار جنوب لویدیزې خواته د څلویښتو کروړو په مسافه پروت دي او د یوې کلا په خوا کې چې اوس د حکومت مرکز هلته دي د مخه یوه لویه کلا وه چې تولك نومیده له همدې امله د تول شاوخوا ته تولك ویل کیږي.

تولك له تیرو څخه په ډکو غرنیو سیمو کې پروت دي په کوچنیو او لویو درو باندې ویشل شوي دي، دا درې تولك ته اوبه ورکوي او هغه رود ته کیکان وایي.

پخواني مدارك ښیي چې پخوانۍ آبادۍ پرته له هماغه خرابي نور چېرته تولك هم کم لیدل کیږي.

د تولك کینې خواته یو غار دي چې په (غار گوش) باندې مشهور دي او په ډېر عجیب شکل جوړ شوي دي چې د ورننوتلو لار یې له یوه کوهي څخه ده. ۴

۱ اطلس قریه جات افغانستان، ج۳، اداره مرکزي احصائیه، ۱۳۵۳، ۱۵۱۷ مخ
۲ تاریخنامه هرات، سیف محمد بن یعقوب الهروي، ۱۳۲۶، ۷۷۰ – ۷۷۳ مخونه
۳ افغانستان لنډ تاریخ، پوهاند حبیبي، تاریخ تولنه، ۱۸۰ مخ
۴ جغرافیاي تاریخي غور، ۷۵ مخ



# ۱۳ - تخارستان (تخار)

## (د قیمتي کانونو سیمه)

نن چې زموږ د لرغوني هېواد په اداري تشکیلاتو کې د بدخشان، تخار، کندوز، بغلان او سمنګان په نومونو کوم ولایتونه رامنځ ته شوي دي یو وخت دا ټول او حتی د ځینو نورو ولایتونو ځینې برخې هم د یو ستر تاریخي ایالت یعنې طخارستان په نوم موجود او مشهور ؤ او د تاریخي سابقې، پوځي، مذهبي، اقتصادي، اداري او داسې نورو ملحوظاتو له مخې یې خورا زیات تاریخي اهمیت درلود او د مؤرخانو او جغرافیا لیکونکو په آثارو کې ترې په پراخه پیمانه یادونې شوي دي.

د دې د پاره چې د دغه پراخې لویې او د زیاتو تاریخي مهمو ښارونو او محلاتو درلودونکې سیمې په هکله لیکنه او څېړنه یو څه فشرده شوې او د ضروري مطالبو په محتوا کې تر لیکنې او څېړنې لاندې نیول شوې وې او ور سره جوخت د لازمي استفادې وړ وګرزېدلې شي نو تر ټولو لومړی ښایي پخپله د طخارستان په متعلق بحث وشي او ورپسې د هغه د ولایتونو، ښارونو او مهمو محلاتو په باب معلومات هم په لنډه او مشخصه توګه وڅېړل شي.

په لرغونو زمانونو کې زموږ د لرغوني هېواد د هندوکش د غره هغې خواته شمالي برخې د باکتریا

(باختر) د مربوطاتو په نامه يادېدلې چې مرکز يې هماغه بلخ (بخدي) د ښکلو او لوړو بيرغونو ښار (بخدي سريرام اردو درفشام) ؤ.

باختر د آريانه (هرات) غونډې د شمالي له لويو ولايتونو څخه متشکل او بلخ د ام البلاد په لقب هغه د ستر مرکزيت حيثيت درلود، که څه هم د بلخ په خوا کې آريانه (هرات) هم د آريانا د دغسې لرغوني او لومړني ټاټوبي مقام درلود.

طخارستان په ځينو دورو کې د باختر څخه جلا رياست بلل شوي او حتی د بلخ څخه يې په ځينو ډېرو مواردو کې زيات اهميت او تاريخي لوړ موقف پيدا کړی دی.

## د طخارستان موقعيت:

د طخارستان جغرافيايي موقعيت په تاريخي اسنادو کې د امويه، امو درياب، ګوزګان، يا ګوزګانان (جوزجان) او مرګيانا په منځ کې ښودل شوي دي، خو په ځينو نورو منابعو کې د جوزجان د سيمو پر ځای بلخ ښودل شوي دي.

ويل شوي دي چې د اقتصادي مسايلو د اهميت له پلوه طخارستان د بلخ سره بيخي نژدې طبيعي ارتباط درلود، څکه چې باکتريا، د برنی طخارستان د سيمو له لارې د تبت او چين د هېوادونو سره مناسبات لرل او د بلخ يونانيانو کله چې طخارستان ونيو له همدې لارې يې د تبتيانو او چينايانو سره جګړې کړې دي او بيا يې د چين سره تجارتي مناسبات ټينګ کړې دي.

د مقدوني سکندر تر يرغل نه د مخه ۳۳۰ ق. ميلادي د تخارستان تاريخنامه لکه د يو شمېر زياترو هېوادونو غونډې مجهوله وه او په اغلب ګومان سره يې په منځنۍ پېرۍ کې د بلخ د مقدراتو سره ګډ برخه ليك درلود.

دا هم معلومه نه ده چې طخارستان پخوا په څه نوم ياد شوي دي او بيا هغه وخت دا أيالت د تخار په نوم مشهور شو چې د دې سيمې اوسيدونکو تخاريانو د تخار په نوم نړيوال شهرت پيدا کړ.

يوناني منابعو هم د تخار قوم د باختر د يونانيانو د فاتحانو په ډله کې تر ميلاده دوه پېړۍ د مخه ياد کړي دي.

روسي عالم بار تولد (د جغرافياي تاريخ ايران په دې باره کې يو لړ معلومات وړاندې کوي او وايي:

د تخار قوم پخوا په (يو لونسن) يعنې د چين په پولو کې موقعيت درلود په دې معنا چې د افغانستان په شمال ختيز کې يې استوګنه درلوده او تر اسلامي دورې راوروسته هم د باختر يوه برخه د تخار (تخارستان) د قوم په نوم يادېدله.

د تاريخي آثارو په استناد دا د تخار قوم په اصل کې آريايان وو، تخار قوم ځانته تاريخي سوابق درلودل او دې تخاريانو تر ميلاده دوه پېړۍ د مخه د لومړي ځل د پاره په بخدي کې قدرت پيدا کړ او

سل کاله د دوی تر استوګنې وروسته په باختر کې له دوې څخه یوه طایفه د کوشانیانو په نوم راپورته شوه.

## د طخارستان (د تخاري) د تسميې وجه:

د تخار کلمه د یو (ستي) کام له نامه څخه منځ ته راغلې ده، اساساً دې نوم د میلاد څخه مخکې له څلورمې پیړۍ راهیسې تر اتمې مسیحي پیړۍ پورې خارجي وجود درلود او د آریانا په شمال لویدیزه (د بلخ د شمال په شاوخوا کې) څنډه کې دستي کامونو یو ښاخ له میشته کېدلو څخه وروسته دغه برخه په خاصه توګه د هغوی په نامه مشهوره شوه او د تخارستان کلمه په منځنیو پیړیو کې ډېره استعمالیدله.

لویدیز (توکیوان)، (تورکان) د خپلو فتوحاتو په لړ کې لویدیز او جنوب لویدیز پلوه مخکې راغلل او د آریانا د یفتلي دولت له منځه وړلو او یرغل کوونکو ساسانیانو د مخ په شا ځغلولو وروسته د شپږمې مسیحي پیړۍ په دوهمه نیمایي کې تخارستان ته ننوتل، د دې وخت د طخارستان جغرافیایي مفهوم د باختر له کلمې څخه ډېر جامع ؤ او د هندوکش په شمال کې یې د پامیر له لمنو څخه ټول قطغن او بدخشان او د مزار شریف ولایت هم چې د میمنې علاقه یې هم احتوا کوله او د اکسوس (امو سین) په شمال کې سغدیان (مرو) هم پکې شامله وه.

چینایي هېوان تسانګ چې د کیوانا (کورکانو) د تسلط په عصر کې د افغانستان هېواد ته راغلی دی د آریانا دغه برخه یې د (تو-هو- لو) په نوم یاده کړې ده او د هغې پراختیا یې د شمال نه جنوب پلو یوزرلی (لي د چین مسافوي قیاسي واحد د ۵۰۰ مترو سره برابر دي) او له ختیزه لویدیز لورته یې درې زره ښودلي ده نوموړي لیکي:

څه رنګه چې د دې ځای پاچهي کورنۍ له منحه تللي ده نو مختلف رییسان د دې سیمې په هره برخه کې حکومت کوي او په عین حال کې هغوئ ټول د توکیوانو (تورکانو) تابع دي یا په بل عبارت په طخارستان کې د هغه د پراخ مفهوم سره چې یادونه ترې وشوه یو ډول ملوك الطوايفي منځ ته راغلې ده چې هر خان په خپله کوچنۍ سیمه کې حاکم ؤ.

او دوئ ټولو د کندوز مرکزي خان ته اطاعت درلود. او دغه خان په خپل وارد توکیو (تورکانو) د (ییغو) د لاس کنبینولي واکمن ؤ، دلته په کار دي چې د سیتي د موضوع سره یو څه آشنایي پیدا شي.

سیتي چې ساکا او اسکایان ورته وایي به اصل کې اسکاییان د (تیان شان) د غرونو او د خضر (تورې بحیرې) تر منځ پخوا د هندو اروپایي د خلکو یوې خانګې ته تګ راتګ درلود چې نن ورځ معمولا هغه د سیتي قومونو په نامه یادیږي او (اوستا) ورته (توریا) وایي، اثوریان یې (اشکوزي) بولي، هخامنشیان ورته (ساکا) او چیڼایانو به د (سي) په نامه یادوله.

سریتیان، ساجتیان، ساکیان (اسکایان) یوچیان، یفتلیان د هغوی مشهورې څانګې دي.

(ازي يې Asii)، (پازيايي Pasiai)، تخاري، (ساكارولئ Sacarai;o) د هغوئ برخې دي.

تخاري قبيله له سنګيانګ نه نيولي د پامير تر لويديزو لمنو پورې خپره شوه، د بدخشان او قطغن د منځينو پيړيو د تخارستان زړه او مركزيت يې تشكيلاوه.

د تخار او تخاري كلمه او د دې په بنا د تخارستان (طخارستان) د تسميې وجه د تاريخي آثارو په استناد داسې ښودل شوې ده.

(تخاري) په لومړي مرحله كې خامخا د سنګيانګ د يو (ستې كام) نوم ؤ چې په ترقۍ او اهميت سره دغه كام يو ښه لوی مفهوم پيدا كړ لكه چې ځينې هغه د سيټ، او (سيتي) كلمې مرادف بولي او سيتي كامونه (تخاري قومونه) هم بلل شوي دي.

همدا رنګه د ستې ژبو او يا كم له كمه د هغوئ د ښاخ د ټاكلو په باره كې يې تخاري كلمه استعمال كړي او د (الف) او (ب) تخاري په نامه يې ښاخونه تر مينځ ته راوړي دي. او په همدې توګه يې هغه ستر مدنيت او تهذيب چې د (ايكزاردت) د حوزې او د آمو د حوزې ټول سنګيانګ يې احتوا كاوه، د تخاري په نوم ياد كړي دي. مقصد دا دي چې د تخار كلمه چې دغومره لوی مفهوم يې پيدا كړ. په لومړي سر كې د يو كام او يا قبيلې له نوم څخه كوم زيات شی نه ؤ.

بطليموس د (تګوروا) د كام نوم ذكر كړي دي (البته دا نوم (ګ) د (خ) په تعويض سره (تخوز وا) ته نږدې والي لري) او د ده د معلوماتو له مخې د وريښمو د ستري معتبرې (لارې) پر سر يې د (توګارا Thogara) په نوم يو ښار هم درلود.

چينايي منابع د توګارا د كام پاتې شونې د ميلاد نه د مخه په دوهمه پيړۍ كې د (كان سو) په سيمه كې يادوي.

همدا راز نيتي مضامين دغسې نوم د (كانسو) په سيمه كې څرګندوي او حتی اسكايي اسناد چې د ميلاد څخه پخوا د ۸۰۰ كلونو په شاوخوا كې د ختن څخه پيدا شوي دي په (كان سو) كې د توګارا په نوم د يو ښار ذكر كوي.

د پورتنيو څرګندونو څخه جوتيږي چې د ستې كامونو يو بل ښاخ تركان سو پورې چې د نومړي كام د ورسيدلو د سيمې د ډېره ليرې ختيزه برخه ده خپور شوي او د مركزي آسيا د كامونو د جنبش په ترڅ كې له يو چيانو سره لويديز پلو ته راغلي دي، تر څو چې د يوناني مؤرخينو په وينا دوئ د (آمو) د سين جنوب خواته راورسيدل او د آمو د برنۍ حوزې ځمكې د هغوئ په نامه (تخارستان) مشهورې شوي دي او دا نوم د منځينو پيړيو تر پايه پورې معمول او مروج ؤ.

تخاري قبايلو د لرغونو ټاټوبي دود، دستور او ژبې له نقطه نظره د يوچيانو سره زيات شباهت درلود او له هغوئ سره يې په ګډه د آمو سين د حوزې پلو كډه وكړه او داسې يو تر بله سره خلط او همرنګ وو

چې د هندي مؤخذونو زیاترو مخصوصو منابعو یوچیان لوی او کوچنی د تخارا (توګارا) یا تخاري په نامه یاد کړي دي.

بطلیموس د (مارینوس) د یادداشتونو له مخې د کان سو او باختر تر منځ په څو مختلفو ځایونو کې د تخار د نامه څخه یادونه کړې ده. او دا هغه ځایونه دي چې (یوچیان) پکې اوسیدل او یا چې له دې سیمې څخه تیر شوي وو. دا نوم که څه هم په بیلابیلو ځایونو کې د تلفظ له مخې جزئي توپیر لري خو د هغه تسلسل د تخاریانو د حرکت په خط (خط السیر) باندې ښه رڼا اچوي.

په هر حال بطلیموس د کان سو په علاقه کې د (تاګوروا **Thagouroi**) او (داسا) اوس په شمال کې (تاکوري وا **Thakourio**) او د (اسیك کول) سیند ګوتې ته نږدې د تاګوروا او په سغدیانه کې د (تاخوروا **Tochoroi**) او په باختر کې د (تخارو **Tacharoi**) نوم یادوي.

څه رنګه چې یو چیانو (بیدو) د کان سو تر باختر پورې همدغه ځایونه طی کړي دي او ځینې د چینایي منابعو یوچیان او د یوناني منابعو تخاریان دواړه یو شي ګڼي لکه چې هندي ماخذ په دې باره کې کوم توپیر ته قایل نه دي بلکې د یوچي په عوض یې یوازې تخاري کلمه په هر ځای کې استعمال کړې ده.

په هر حال که تخاریان یوچیان وي یا نه وي خو د هغوئ یو ښاخ شمېرل کېده او د پیش قراولي ډلې په حیث له دوو درې سیتي قبیلو یعنې (آزي یې) یا (زیایي) او (سکارولي) سره باختر ته راغلل او زیاتره د هغو سیندونو په برنیو حوزو کې چې له پامیر راښکته کیږي په اوسني قطغن او بدخشان کې تیت او میشته شول او ورو ورو دې سیمې د هغوئ په نوم (تخارستان) یعنې د تخاریانو د استوګنې ځای باندې شهرت وموند او دا نوم د مسیحي میلاده پخوا له څلورو پیړیو راهیسې مشهور شو (چې یو مخکیني روایت کې هم دا نیته تایید شوې وه.)

همدارنګه د (توخري) یا (تخاري) کلمه په هغو اسنادو کې چې اخیراً له مرکزي اسیا څخه پیدا شول د هماغه وخت د اسکایي یا کوشاني ژبې د نوم په حیث استعمال شوې وه.

او هیوان تسانګ په اومه مسیحي پیړۍ کې له (توخري) څخه (تو-هو-لو **To-Ho-Lo**) جوړ کړی دی.[1]

ښاغلي میر غلام محمد غبار د تخاري ژبې په هکله لیکي:

تخاري ژبه د هند اروپايي له ډېرو مشهورو ژبو څخه ده، دا ژبه (داري) یا (آریایي) ژبې سره هم عصره او په ګاونډیتوب کې هم پرې خبرې اترې کیدلې.

ژبه لیکنې عمدتاً د برهمایي په خط او الفبا دي او زیاتره د بودايي دین پورې تړاو درلود او د سانسکریت د ژبې ترجمه ده.

---

۱ پښتو آریانا دایرة المعارف، ټ۴. ۱۳۴۴، ۹۵۷ مخ

ژبپوهان دا ژبه له دوو لهجو (کوليش) څخه مشتمله ګڼي.

- يوه يې (الف) تخاري.

- او بله يې (ب) تخاري.

پوهان ګومان کوي چې لومړنۍ لهجه (دراغني) او دوهمه يې (کوچي) په سيمه کې رواج درلود او په دقيق صورت دا معلومه نه ده چې دا دواړه لهجې څه وخت په بشپړ شکل له منځه تللي دي هغه آثار چې له دې ژبې څخه نن په لاس کې دي د شلمې پيړۍ په پيل کې د چين له ترکستان څخه کشف شوي دي. ۱

## د جغرافيا ليکونکو او مؤرخانو په آثارو کې د طخارستان حدود او موقعيت

په لرغونو زمانو کې د تخارستان د نوم تر څنګه پاسنی تخارستان او ښکتنی تخارستان هم زيات استعمالېده او له دې کبله چې تخارستان په عمومي مفهوم سره د قطغن او بدخشان يو مرکب نوم ؤ خو ځينې وخت بدخشان په مستقلانه مفهوم هم استعمال شوي دي.

پخوا د قطغن او بدخشان (تخارستان) لوی ايالت د لاندنيو محدودو په منځ کې ښودل شوي دي:

- د ختيز له خوا: د پامير په غره.
- د شمال له خوا: د امو په نهر (امو سين)
- د لويديز له خوا: په خلم، تاشقرغان او بلخ.
- د جنوب له خوا: د هندوکش د لړيو په منځ کې.

ښاغلي برهان الدين کشککي په خپل يو اثر کې د دې ايالت حدود داسې بيانوي:

- شمالاً د درواز له پولي د کندز د (بغري قول) تر تانې او د امويه (کوکچې) سين.
- په شمال مشرق کې: د پاميراتو د خط فاصل پورې.
- شرقاً د دورايي کوتل د خط فاصل پورې.
- د جنوب له خوا: د غوري سيمې.
- غرباً: د مهر علم د ابدال تر دښتې پورې چې د کندز او تاشقرغان په منځ کې موقعيت لري. ۲

دلته ګورو چې د تخارستان لويديزې پولې تر بلخ پورې نه دي غزولې شوي او د دې نه دا خبره جوتيږي چې په ځينو روايتونو د طخارستان پراختيا تو بلخه نه رسيږي.

خو په يو بل تاريخي سند کې د طخارستان پراخ ولايت د لاندنيو سيمو په منځ کې واقع ګڼل شوي دي.

- د بلخ په ختيز کې د امو سين نه تر بدخشان پورې

۱ جغرافياي تاريخي افغانستان ۲۱۱ – ۲۱۲ مخونه، د تاريخ زبان فارسي ټ۱، ۱۶۴ مخ په حواله

۲ رهنمای قطغن و بدخشان. ۷ – ۸ مخ

- د جنوب له خوا: د باميان او پنجشير د غرونو په څانګو محدود دي.

دا لرغوني ولايت يونانيانو د (تورخاري) په شکل ياد کړي دي چې د امو دريا د پاسني سيمې څخه عبارت دي.

په چينايي منابعو کې د (تو-هو-لو) په شکل يعنې تخارستان او د چين په سالنامه کې (پنځمه ميلادي پيړۍ کې) د شمالي Wel په حالاتو او هم د (تانګ) په تاريخ کې دا نوم ليدل شوي دي چې د (Tsung-ling) د غرونو په لويديز او د (وخش Hu Wa) د سين په جنوب کې پروت دي او د هغې زمانې چينايانو ورته (تاهيو-Ta-Hio) هېواد وايه.

هيوان تسانګ هم لکه چې د مخه ورته اشاره شوي د (To-Huo-lo) (طخارستان) له هېواده يادونه کړې ده او وايي چې طخارستان:

له شمال څخه تر جنوب پورې زرلې - ۵۰۰ کيلو متره او له ختيزه تر لويديزه پورې درې زرلې - ۱۵۰۰ کيلو متره پراختيا درلودله.

- د طخارستان په ختيز کې د (Tsun-ling) غر پروت دي.

- او په لويديز کې په (پوليز Po-li-sz) نښته.

- او په جنوب کې يې: له واورو ډک غر.

- او په شمال کې يې: اوسپنيزه دروازه ده.

حدود العالم د تخارستان په متعلق داسې تذکرات لري:

تخارستان يوه داسې ناحيه ده چې د غرونو له امله يې نعمتونه ډېر دي او په غرونو کې يې د خلخ د ترکانو ځای دي او له دې ناحيې څخه اسان پيدا کيږي، پسونه او غلې يې ډيرې او ميوې يې ډول ډول دي. (۹۹ مخ)

تخارستان چې د طخارستان او طخيرستان په شکلونو هم ضبط شوي دي، يعقوبي وايي:

دا يو پراخ او لوی ولايت دي د خراسان له سيمو څخه او له يو شمېر ښارونو څخه مشتمل دي چې يو پاسني ښار او بل ښکتني ښار د بلخ په ختيز کې او د جيحون رود په لويديز کې، د طخارستان او بلخ تر منځه واټن ۱۸ فرسخ دي.[1]

په اللباب کې راغلي دي چې طخارستان يوه پراخه سيمه ده او په څو ښارونو مشتمله ده، د بلخ النهر يعنې د جيحون په هغه خوا کې.

د دې اثر په استناد بدخشان د طخارستان څخه يوه جلا سيمه بلل شوې ده.

---

۱ د پورتني اثر د حاشيې او تعليقاتو د برخې، ۶۵ مخ

## د تخارستان سیمې او ښارونه:

پښتو آریانا دایرة المعارف، طخارستان د فیوډال ولایت (خان نشیني) د هغه د مشخصاتو سره په یو څه تفصیل معرفي کړې او لیکي:

لکه چې د مخه اشاره وشوه توکیوانو (تورکانو) د خپل تسلط په دوره کې تخارستان د یوې متمرکزې ملوك الطوایفي په صورت اداره کاوه او د اطراف ټولو خانانو به د کندز مرکزي خان ته اطاعت درلود یعنې دا وخت د کندوز ښار د دې ملوك اطوایفي د مرکزیت حیثیت درلود.

د هیوان تسانګ د یادداشتونو له مخې ویل کیدای شي چې تخارستان عموماً په ۲۷ خان کښیناستونکو سیمو ویشل شوي ؤ چې تر ټولې مشهورې سیمې یې په لاندې دول معرفي کیدای شي:

۱- (کیو-مي-تو- Kui-mi-to) یا (کومیدا Komedai) په نامه یاده کړېده او بطلیموس له دې نیتې څخه پخوا په خپله جغرافیه کې هغه د کومدي په نامه یاده کړې ده.

دا خان کښیناستونکي سیمه د پامیر د غرونو په بیخ کې پرته او جنوب پلو د (شي-کي-ني Shi-ki-ni) یعنې شغنان په سیمو نښتې ده.

۲- پو-تو-شنګ-نا Po-to-chang-na چې تعبیر یې بدخشان دي هیوان تسانګ د هغه چاپیریال دوه زره لي لیکي. او له دې سیمې څخه د ده د تیریدلو په وخت کې د دغه ځای خلك بودایان وو.

۳- شي-کي-ني Shi-ki-ni چې د شغنان غرنۍ او صعب العبوره سیمه ده پراختیا یې دوه زره لي او د مرکز چاپیریال یې ۵ – ۶ لي دي.

۴- (آن-تا-لو-پو An-ta-lo-po) یعنې اندراب چې د هماغه وخت د طخارستان د خان کښیناستونکو سیمو په جمله کې یې زښته زیاته پراختیا درلوده لکه چې چاپیریال یې درې زره لي او د مرکز چاپیریال یې ۱۴ – ۱۵ لي لیکلي شوي دي.

د دې چینایي زایر د مسافرت په وخت کې دلته درې بودایي معبدونه موجود ؤ او ۴۰ – ۵۰ تنه عالمان پکې اوسیدل.

۵- (پو-هو، Po-Ho) چې د باختر سیمه یې په دې وخت کې ډېره محدوده او د ختیز نه لویدیز ته ۸۰۰ لي.

او د شمال نه جنوب ته: ۴۰۰ لي اوږده وه.

سره له دې د بلخ ښار هم د (راجاګیر یهه Raga griha یعنې د کوچني پاچهي ښار) په نامه یادیده او ۲۰ لي چاپیریال یې درلود، سل بودایي معبدونه لا دلته آباد ؤ او ۳۰۰ راهبان پکې اوسیدل او ټول (هنایانا) یعنې د خلاصون د کوچنۍ لارې د طریقې پیروان وو، که څه هم په دې وخت کې د ساسانیانو او تورکانو د جنګونو او له هغوی سره د یفتلي دولت د مقابلې په اثر د بلخ او باختر اهمیت ډېر کم شوي ؤ

او تورکان د طخارستان د اداري په خوښه له بلخ نه مرکز کندوز ته نقل کړ خو سره له دې بيا هم د بلخ کوچنی پاچهي ښار د علم او پوهې او مذهبي کانون مرکز ګڼل کېده لکه چې د کندز تورکي خان د هېوان تسانګ څخه خواهش وکړ چې د بلخ ښار وګوري او سره له دې چې د ده د مسافرت له کرښې نه چپ دي، د هغه له معبدونو او عالمانو دې ناليدلي کتلي تير نه شي او په نتيجه کې چينايي زاير په بلخ کې د آريانا له زښته زيات لوی بودايي عالم (براجنا کارا) سره ملاقات وکړ او خپل پاتې مسافرت يې په جنوب آريانا کې د ده په ملګرتيا او مصاحبت اجرا کړ. ٢

بر علاوه له پورتنيو خان نشينو سيمو څخه ځينې نورې سمې (ښارونه) هم د طخارستان په ايالت کې شامل وو.

- (کو-زي-تو Kowh -si-to) يعنې خوست.
- (هي-موتا-لو Hi-mota-lo) يعنې درايم.

د چينايي زاير په يادداشتونو کې راغلي دي او د هغو تولو څخه څرګنديږي چې لوی او کوچني خانان د تخارستان په درو او وادي ګانو کې تيت و پرک وو. ١

د هېوان تسنګ د ليکنې له مخې دا څو لاندې ټکي د پاملرنې او يادونې وړ ښکاري:

- په پورتينو يادو شوو او يا وروستنيو روايتونو کې چې کوم ښارونه معرفي شوي او يا معرفي کيږي د هغوئ په متعلق د هېوان تسنګ يادداشتونه ډېر ثقه، د پوره صراحت او وضاحت درلودونکي دي.

- د طخارستان د شهرت او عروج په وخت کې بلخ (کوچني ښار) بلل شوي دي، حال دا چې په تاريخي اثارو کې تر طخارستان زيات له بلخ څخه يادونې شوي دي ممکن په دې وخت کې طخارستان او د هغه مرکز کندوز د تجارتي، مذهبي او اداري موقعيت له مخې تر بلخ ممتاز موقعيت پيدا کړي ؤ او بلخ په دې بودايي دوره کې هغه پخواني برم او عظمت نه درلود نو ځکه هېوان تسنګ هغه د (کوچنی شاهي ښار) په نوم ياد کړي ؤ.

- بله موضوع چې طخارستان تر بلخ يو څه مهم تلقي شوي دي هغه ممکن د بلخ په نسبت د طخارستان د مربوطو سيمو پراختيا ده ځکه د کومو مهمو ښارونو څخه چې طخارستان يې احتوا کاوه بلخ په هغه کې شامل نه دي.

اصطخري د طخارستان ښارونه داسې معرفي کړي دي:

- خلم
- سمنګان

١ پښتو اريانا دايرة المعارف ټ ۴، ۱۳۴۴، ۹۵۶ – ۹۵۷ مخ

- بغلان
- سکند
- او اليز يا ولوالج (رستاق)
- طابقان (تاليکان يا تاليقان)
- ارهن
- روب
- داون
- سرای عالم
- خوست
- اندراب
- حذر گاه (۲۱۶ ـ ۲۱۷ مخونه)

ښايي وويل شي چې د طخارستان د پورتنيو ښارونو ځينې ياد شوي ښارونه دومره مشهور ښارونه نه دي.

خو يعقوبي د دې ښارونو له جملې ځينې ښارونه د بلخ مربوط بولي لکه چې وايي:

هغه ښار ته چې خلم ورته ويل کيږي او هغه ښار ته چې سمنجان (سمنګان) ورته وايي او هغه ښار چې ولوالج (رستاق) ورته ويل شـــي او هغه ښار چې (هوظ) ورته وايي او هغه ښار چې نورمن ورته ويل کيږي. ۱

مګر دلته چې کومه خبره د يو څه تامل وړ ده هغه دا ده چې ممکن يعقوبي د نورو مؤرخانو په پرتله د طخارستان د سيمو او ښارونو له موقعيت سره دومره بلدتيا نه درلوده نو ځکه يې حتى په طخارستان کې د ننه ښارونه لکه رستاق هم د بلخ له مربوطاتو شمېرلي دي.

ابن حوقل بيا د طخارستان د ښارونو په اړوند داسې معلومات ورکړي دي:

د طخارستان ډېر لوی ښار طاليقان (طالقان) دي چې په هامون کې واقع دي او له غره څخه د يو غشي ګوزارولو په مسافه ليرې پروت دي.

او بل ښار چې د تاليقان څخه وروسته دي هغه ورواليز (ولوالج او يا رستاق) دي او په دې پسې اندراب دي.

اندراب يو ښار دي چې د غرونو په منځ کې پروت دي

که د طخارستان د ښارونو په اړوند د مؤرخانو او جغرافيا ليکونکو او پوهانو پورتنيو څرګندونو ته

۱ جغرافيای تاريخي افغانستان، ۶۴ مخ

وکتل شي نو معلومه به شي چې په ټولو مواردو کې واحد مفاهیم افاده شوي او ممکن دغو ټولو له یوه ماخذ نه استفاده کړې وي او دا ځکه چې یو له بله سره دومره توپیر نه لري.

## د طخارستان کانونه:

طخارستان په خپلو یو شمېر سیمو کې سرشاره، قیمتي او بې ساري قیمت بها معدنونه لري. او ځای لري چې د قیمتي کانونو او (کریمه احجارو) سیمه یې وبولو چې د بیلګې په توګه د بدخشان لعل نړیوال نوم لري.

د طبیعت دا سرشاره شتمنی د طخارستان د لاندنیو سیمو په لمنو او سینو کې پرتې دي چې په لاندې ډول دي:

- لاجورد: په غنج خواه، جرم او کران.
- لعل: په غاران، زاورده.
- مالګه: کلفکان، درونه، قرلق، ولوالج، چال او نمک آب.
- چودن: فیض آباد
- سرب: زیباک
- ډبرو سکاره: نهرین، چال او تاله و برفك
- رانجه (سرما) نراك.
- ګوګرد: زیباك، سنګیچ، خان آباد سیمه، کران.
- اوسپنه، اوشان

او داسې نور معدنونه چې د طخارستان په ځینو سیمو کې وجود لري.

## د طخارستان د مرکزونو او ښارونو معرفي:

## د طخارستان مرکز:

### کندوز (د بې شمېرو لارو د تلاقي نقطه):

کندوز چې اوس د هېواد په اداري تشکیلاتو کې یو جلا ولایت دې پخوا یې نه یوازې د طخارستان د لرغوني ښار او مرکز حیثیت درلود بلکې د هغه د نوم د مفهوم له مخې دا یوه پخوانی مستحکمه او زړه کلا وه چې د پوځي ماهیت له پلوه یې خاص اهمیت درلود په تاریخي مدارکو کې کهندوز، کهندژ، کهندز او قندوز یعنې د زړې کلا او پخې کلا په معنا وې او یا د کیان د قبیلې په انتساب سره (کیان دیس) یا (کیان دژ) ضبط شوي دي. او دا چې (ك) یې په (ق) لکه قندهار په معرفي شکل قندوز او پښتو

کندوز تعویض شوي دي.

که د کندوز د ښار او یا د هغه د نوم تاریخي سابقې ته نظر واچول شي نو ویل شوي دي چې تورکانو د خپل مؤقت تسلط په دوره کې تخارستان د ملوك الطوایفي او داسې خان نشینو په صورت اداره کاوه چې شمېر یې د هېوان تسنګ د لیکنې په قرار ۲۷ خان نشینو ته رسیده او د ټولو مرکز د کندوز ښار ؤ.

که څه هم د بلخ د (یو- هو) په نوم او یا د (راجا ګیریه) یعنې (کوچنې پاچهي ښار) په صفت یادیده او د بودایي معبدونو د شهرت، د عالمانو او روحانیونو د ډېرښت له نقطه نظره یې زیات اهمیت درلود. خو د تخارستان اداري مرکز په دې وخت کې د کندوز ښار ؤ، کومې موضوع چې کندوز ته یې په تخارستان کې د مرکزیت اهمیت ورکړی ؤ دا د نورو بیلګو په سر کې د هغه مهم او جغرافیایي ممتاز موقعیت دي یعنې کندوز د تخارستان د ایالت د ټولو سیمو په منځنی برخه کې پروت دي. په دې کې شك نشته دي چې کندوز د مذهبي مؤسساتو، فاضلاتو، عالمانو او نورو حیاتي مسایلو له نقطه نظره بلخ ته نه شو رسیدلای خو جغرافیایي او اداري موقعیت یې هغه تورکي خانانو ته چې په تخارستان باندې حاکمان وو ډېر اهمیت درلود.

کندوز د باختر له ښارونو او د قطغن او بدخشان له هغو هوارو سیمو څخه تقریباً په یوه فاصله پروت ؤ دلته به بې مورده نه وي چې د کندوز اهمیت د هغو لارو د موقعیت په اعتبار معرفي شي چې له کندوز څخه د هېواد زیاتو بیلابیلو سیمو ته غزیدلي دي او په لاندنی ډول پرې بحث کیږي.

کندوز یوه لار، د پامیرونو د یو شمېر لارو خولې ته او بلې لار د لویدیز باختر د ورانو علاقو سره نښلاوه.

همدا راز دوی نورې لارې هم موجودې وي چې یوه یې له کندوز څخه سیخه شمال پلو ته د اکسوس (امو) د سین په غاړه ختمېدله لکه چې همدا اوس د حضرت امام صاحب په سیمه کې یوه سمه لار له کندوز څخه د آمو سین سره نښلي او د کلای زال ډیرې مهمې خرابې او کندوالي چې د افغاني هېواد یو ستر لرغوني ښار ؤ د هغې په څنګ کې پرتې دي. بله لیار د جنوب په استقامت د کندوز د سین د بهیدځي (مجرا) په اوږدو کې غزیدلې ده او د تخارستان مرکز یې د پلخمري او دوشي د خولې په حدود کې د هندوکش د شمالي لمنو له کرلیچونو او ژورو سره نښلاوه دا یوه داسې نقطه ده چې د هندوکش د جنوب دوې لویې لارې له شمالي لارې سره ترل کېدلي یوه یې هغه لویه تجارتي او کارواني لار ده چې د (تاکزیلا) له ښار څخه لیشکلاواتي (چارسده) او پاروشاپورا (پیښور) په استقامت غزیدلي وه او د ګندهارا، لمپاك (لغمان له علاقې څخه کاپیسا ته راتلله.

بله هغه لیار وه چې د اراکوزي له حوزې څخه د ارغند او سین د پاسنی بهیدځي په اوږدو کې راغزیدله د ژورو او کرلیچونو څخه وروسته په وجیرستان یعنې د جاغوري او ناور د دښتې په منځ کې د

خوادا (وردګو) خواته او د ارغندي له سیمې او د پغمان له لمنې اوسنی کوهدامن او کوهستان ته رسیدله او د غوري له درې او چار درې او کوشان له درې او اندراب څخه دوشي ته تلله.

همدا شان د (شبر) له غاښي څخه تر تیریدلو وروسته (لکه اوسني شکاري درې چې اوس د موټرو سرك دي او په منځنیو پیړیو کې دا لار د کاروانونو د تګ راتګ عمومي لار وه لکه چې د لرغونو کلاګانو په تیره بیا د (سرخشك) د ښار موجودیت دا نظریه تاییدوي) بیا د هندوکش د جنوب د مشهورې لیارې یو بل ښاخ دې د دوشي او کیله ګۍ په برخه کې د کندوز د سین د مجرا سره نښلیده او د دې سین بهیدځي یوه طبیعي کرښه وه چې کاروانونه د هغې په اوږدو کې تر کندوز پورې تلل. لکه چې همدا نن که څه هم سرك له علي آباد نومي ځای څخه وروسته خان آباد پلو ته ور ګرزي یو بل ښاخ د کندوز په استقامت سم امتداد پیدا کوي.

هیوان تسانګ په خپلو یادداشتونو کې کندوز د (هوه- Hwoh) په نوم یاد کړې دي.

دا (هوه) ښار نه بلکې داسې سیمه ګڼل کېدله چې خپل ځانته یې یو جلا مرکز درلود او د دې مفکورې او اهمیت په بنا اوس کندوز یو جلا ولایت دي چې دا دې دلته د هیوان تسنګ دغه یادداشتونه د دې موضوع د ښې خرګندونې سبب کېدای شي (دا سیمه هم د (تو-هو-لو) یعنې تخارستان د خاورې یوه برخه ده.

د دغې سیمې چاپیریال ۳۰۰ لي او د مرکز چاپیریال یې ۱۰ لي اوږدوالي لري. حکمفرمایي هلته نشته او ملك د تورکانو تابع دي. ځمکه یې یوه هواره جلګه ده چې په مرتب صورت پکې کرنه کیږي او زیات حاصلات ورکوي ونې او بوټې پکې زیات شنه کیږي، زښته زیات ګلان او میوې لري آب و هوا یې نرمه او په زړه پورې ده، خلك یې زیات امانت کار دي، نارینه یې طبیعتاً چابك او زرنګ دي او وړین لباس اغوندي.

د دیانت له نقطه نظره زیاتره د بودایي مذهب پیروي کوي او ځینې یې په برهمنی آئین دي. دلته سل سانګارامي (بودایي معبدونه) او څو سوه تنه روحانیون شته دي چې د بودایي مذهب په چوکاټ کې د خلاصون دوو طریقو یعنې (لویې لارې او کوچنی لارې) په قوانینو کې معلومات لري او په دواړو مسلکونو باندې عمل کوي.

پاچا د توکیو (تورکانو) له تبر څخه دي او د اوسپنې دروازې لري د جنوب په ټولو درو او کوچنیو ریاستونو باندې د ده حکم چلیږي او د مرغه غوندي خپل ځای بدلوي را بدلوي او همیشه په دې ښار کې نه اوسیږي. ۱

---

۱ پښتو آریانا دایره المعارف، ۴ ټ، ۱۳۴۴، ۹۵۵ – ۹۵۶ مخونه

## كندوز د تاريخي اثارو د اهميت له مخې:

قندوز يا (كهن دز) چې د خان آباد د لويديز په ۲۴ كيلومترۍ كې پروت دي په پخوانيو دورو كې يې خاص تاريخي اهميت درلود او د تخارستان پايتخت ؤ.

د يفتلي دولت په دوره كې تر دوو زرو كلونو زياته موده د مخه له دې ښاخ څخه تجارتي مهمې لارې چې د هندوكش جنوبي صفحات يې د كوهدامن، كوهستان د شمالي صفحاتو سره نښلول دا ټولې لارې دې ښارته را رسيدلې.

كه څه هم د دې لارو په باب د مخه پراخ بحث وشو خو دلته د هغو د تاريخي اهميت او ځينو نورو بيلګو په پام كې نيولو سره پرې بحث بې ضرورته نه دي.

قندوز چې د هندو كوه په شمالي صفحاتو كې د تخارستان او باكتريان تر منځه يو مهم تم ځاى ؤ او د دې لويې تجارتي لارې څخه درې ښاخه بيلېدل.

- يو ښاخ د بلخ په لور.
- بل ښاخ د تخارستان په استقامت.
- او دريم ښاخ مستقيماً د آمو رود په لوري غزيدلي ؤ.

تر اسلام د مخه قندوز هم د بودا د مذهب له مركزونو څخه يو مركز ؤ لكه چې د مخه وويل شول چينايي نامتو سياح شون تونګ (هيوان تسيانګ) دا ښار د (هوه) په نوم قيد كړې دي. بودايي معبد دلته موجود ؤ او څو سوه روحانيون دلته اوسيدل د اسلام د منځنيو پيړيو جغرافيا ليكونكو له قندوز څخه تذاكرات لري.

قندوز په حقيقت كې هماغه قندز او هماغه عام نوم دي چې په دري ژبه كې (قله كهنه) يا كهن دز په ځاى استعمال شوي دي.

په ۱۹۳۶ ميلادي د تصادف له مخې د هغه ځاى د آهنګرانو د كلا څخه بودايي معبد كشف شو، څو كوچنۍ او لويې مجسمې ترې تر لاسه شوې، د دې مجسمو كتلو د اركيالوژۍ پوهانو (لرغون پيژندونكو) په نزد يو مهم اثر ايجاد كړ او دا نظريه چې ويل يې د افغانستان مجسمه جوړونه د ګريكو بوديك د صنعت ايجاديت دي عوض كړه او موسيو هاكن په دې باب يو كتاب د باختر د صنعت په باب ليكلي دي او ښكندوي چې د قندوز مجسمې موږ دې ته ګماري چې دا مجسمه جوړونه د باختر صنعت دي.

قندز د آمو رود د جنوبي غاړې نه تر علي آباد پورې تقريباً ۷۰ ميله مسافه لري قندوز چې په يوه پراخ دښت كې موقعيت لري د تاليقان او اندراب رودونه د ده له منځه تيرېږي او د قندوز زياتره سيمې د دې رودونو په واسطه خړوبېږي.

د قندز ښار په تاريخي دورو کې هرې برخې ته چې د دې پراخې سيمې څخه نقل مکان وکړ څو ځلي وران شوی او ودان شوی دی.
د قندز پخوانی ښار د هغه د بالاحصار سره يو ځای په اومه هجري پيړۍ کې ودان شوی او د توول تخارستان مرکز شو، تر دې وروسته بيا دا له ګولو ډګر وګرزيد او وران شو د قندوز بالاحصار له يوې پيړۍ راهيسې بيخي ويجاړ شو.
څرنګه چې د اقتصادي مسايلو له پلوه د قندوز موقعيت ډېر مهم دی نو ځکه يې په ۱۳۱۳ هجري شمسي کې د دولت پاملرنه ځانته راګرزوله او د يو عصري ښار په شکل بيا له سره جوړ شو.
اوس د پنبې او صـابون جوړولو او د سپين زر غوړيو فـابريکې پکې موجودې دي او صنعتي ښار دی. ۱

## کندز د لرغوني مستحکمې کلا په توګه

کندوز د وتلي جغرافيايي او پوځي مناسب موقعيت له مخې نه يوازې يو تجارتي، مذهبي او اداري مرکز ؤ بلکې د دې تر څنګه يوه پخوانی کلا، مستحکمه کلا يوه چونۍ او بالاحصار هم ؤ او زموږ د لرغوني هېواد د پخوانيو استحکامي دژونو څخه شمېرل کېده او که د تاريخي اسنادو په استناد د دې پخې کلا مشخصات وڅېړل شي، نو ويل کيږي چې د آريايي قبيلو څخه په غير نور پوونده قبايل هم د منځنی آسيا څخه د آمو سين د دې غاړې سيمو ته د مهاجمو مهاجرو په بڼه راتلل او تلل او کله کله به يې د خپلو ګاونډيو قبايلو د فشار له امله دې سيمو ته په مهاجرت مجبوريدل، چې د دې مهاجرو قبايلو تر راتګ وروسته د باختري دولت او مدنيت د پاره يې يو لوی سرخوږي رامنځ ته کړ. د باختر حکومت هم د دوې د تهاجماتو د مخنيوي په مقصد تدافعي استحکامات تاسيس کړل او د هغوی له جملې څخه د ډېرو زړو ودانيو پاتې شوني اثار اوس هم باقي پاتې دي چې اغلب احتمال لري د کندز «زړه کلا» هم په اصل کې لکه د مخه ورته اشاره شوې وه «کيان ديس» يا «کيان دژ» «لکه ګرديس او ګردېز» وي چې د باختر د کياني کورنۍ د حکومت په وخت کې يوه پخه چونۍ او بالاحصار ؤ. ۲
په يو بل روايت کندوز يا کهندز چې د زړې کلا معنا افاده کوي او د پورتنۍ ليکنې له مخې دغې زړې کلا يوه جنګي کلا يعنې پوځي چونۍ او بالاحصار هم درلود چې د هغوی په پخوالي او اهميت يې دلالت کاوه. ويل کيږي چې قندوز د هندوکش په شمال کې د باختر ولايت او تخارستان ولايت په منځ کې د اوسني خان آباد څخه ۲۴ کيلو متره په لېرې مسافه پروت دی، او د منځنی پيړۍ را په ديخوا چې جوړ شوي دي د کوهندژ يعنې لرغوني مستحکمې کلا او د قندوز په نوم يادېده او د افغاني پنبې د مهم

۱ شهرهاي آريانا، محمد عثمان صدقي، ۷۳ – ۷۴ مخونه
۲ خير محمد ساد، لرغوني آريانان، ا.ع.ا دولتي مطبعه، ۱۳۶۳، ۷ مخ

مرکز په نوم یې شهرت درلود (فضل احمد رهنماي افغانستان شماره ۱۲، ریاست مطبوعتو ۱۳۲۸، مطبعه عمومي کابل).

د کهندژ دا تاریخي کلا زیات تاریخي واقعات لري چې له دې جملې څخه د بیهقي تاریخ د ۷۴۱ مخ په حواله د ۴۲۰ کال یوه پیښه بیان شوي او د دې کلا د پوخوالي د اثبات د پاره ښه دلیل کیدای شي لکه چې وایي:

... په دې سیمه کې یو سړي ؤ چې علي قهندزي یې ورته وایه او یو وخت یې په دغه ولایت کې تیر کړي ؤ، غلاګانې او لوټماری به یې کولې، د سیمې یو شمېر مفسدین ور سره ملګـــری شوی وو، دوی به کاروانونه لوټول او په کلیو کې به یې ډاکې اچولې، تر څو چې دا خبر امـــیر (مسعود بن محمود غزنوي) ته ور ورسید هر څومره چې یـــسې د خپلې شحنه (کوتوالي) ډلې ور پسې ولیږلې د ده شرارت دفع نه شو ځکه چې علي قهندزي په یو ځای کې چې کهندز یې باله او یو قوي حصار ؤ هستوګنه درلودله.

دغه حصار د غره پر سر یو سوري درلود او هغه د جنګ له لارې نیول کېدای نه شو. ۱

د پورتنې اثر په یوه بله برخه کې ویل شوي دي چې بالاخره امیر په یو چال سره دا کلا د علي سره یو ځای ونیوله او ورانه کړای شوه (سنه ۴۳۰ هجري قمري.) ۲

## برنی طخارستان او ښکتنی طخارستان:

د دې د پاره چې د طخارستان د ښارونو او مهمو محلونو پر مبحث په مشخص او ټاکلي شکل کتنه او څېړنه شوې وي، نو په کار دي چې په عمومي صورت یې په دوو عمده برخو برنی طخارستان او ښکتنی طخارستان جلا کړو او په هر یوه برخه په جلا جلا توګه بحث وکړو که موضوع د طخارستان په دوام وڅیړل شي نو له یوې خوا به مبحث ډېر اوږد او غیر مشخص شي او د بلې خوا به په یوه معین چوکاټ کې هغه تصنیف شوي نه وي او موضوعګانې به په یوه ټاکلي استقامت کې تر څېړنې لاندې نه وي نیول شوي.

لکه چې د مخه څرګنده شوه په تاریخي منابعو کې په عمومي شکل طخارستان د برنی طخارستان چې د بدخشان څخه عبارت دي او ښکتنی طخارستان چې د قطغن څخه عبارت دي او د دواړو واحد مرکز د کندوز لرغوني ښار ؤ.

۱ تاریخ بیهقي، ابوالفضل محمد بن حسین بیهقي؛ طبع کتب، مطبعه دولتي، ۱۳۶۳، ص ۷۴۱
۲ همدغه اثر، ۷۴۴ مخ

او دا هم د برنی طخارستان معرفي:

**۱- برنی تخارستان «بدخشان»، «د نجیبه ډبرو د کانونو او د طبیعت د عجایبو وطن»**

برنی تخارستان چې د مشهور او تاریخي بدخشان څخه عبارت دي یوه ډېره لرغوني تاریخي، اقتصادي، فرهنګي او اداري سیمه ده چې د وریښمو مشهوره تجارتي لار پکې تېره شوې په بدخشان یا په نړیوال کچ د لعلونو په وطن شهرت لري لکه کله چې د لعل نوم اخیستل کیږي نو دواره د سړي په ذهن کې د بدخشان نوم هم مجسم کیږي برنی بدخشان په تاریخي منابعو کې کله د طخارستان یوه مربوطه سیمه او کله کله هم د طخارستان د ایالت په خوا کې یوه جلا ایالت ښودل شوي دي، چې په دې دواړو صورتونو کې هغه یو شان له برمه ډک تاریخي مقام لري.

**د برني تخارستان «بدخشان» موقعیت او څلور خواوې:**

بدخشان چې پخوانی نوم یې «بلخشان» ؤ یعنې د یاقوتو وطن دا یو لرغوني ښار او پخپله د بدخشان د ولایت مرکز ؤ، مګر نن د هغه اصلي موقعیت مجهول او مشکوك دي.

احتمال لري چې لرغوني «بلخشان» د همدې اوسني فیض آباد په محل کې چې د بدخشان د ولایت مرکز دي واقع دي، ځکه چې د دې سمسوري ناوې مرکزیت همدا مقام تشکیلوي. ۱

برنی تخارستان «بدخشان» د ښکتنی طخارستان «قطغن» په شمال کې د ختیز طول البلد په ۷۰ درجو، ۴ دقیقو او ۳۶ ثانیو او شمالي عرض البلد ۳۶ درجو، ۵۵ دقیقو او ۱۶ ثانیو او همدارنګه په ۷۱ درجو، ۱۵ دقیقو او ۱۸ ثانیو د ختیز طول البلد او د شمالي عرض البلد په ۳۷ درجو، ۲۹ دقیقواو ۵۰ ثانیو کې واقع دي. ۲

رهنمای قطغن د بدخشان په اثر کې د بدخشان حدود داسې ښودل شوي دي:

بدخشان د کابل په شمال کې د آمویه «پنج سین» په غاړه پروت دي چې:

- جنوب ته یې: د هندوکش غر.
- ختیز ته یې: چترار، شغنان او درواز.
- لویدیز ته: کلفکان او د قطغن سیمې.

مګر د برنی تخارستان د مفهوم او برخې په اعتبار یې څلور خواوې یې داسې معرفي شوي دي:

- له شمال څخه: د آمویه سین.

---

۱ شهرهاي آريانا، ۲۲ مخ

۲ پښتو آریانا دایره المعارف، ټ ۴، ۳۷۲ مخ

- د لويديز له خوا: د قطغن ولايت.
- د ختيز له خوا: چترال او ختيز ترکستان.
- د جنوب له خوا: د هندوکش د غرو په سلسلو پنج دريا (آمويه سين) د هغه په خوا کې بهيږي.

په برنى تخارستان کې يو لړ لوړ غرونه شته دي چې د هغوى په لمنو کې شتمنى او سمسوري درې او بيدياوې ليدل کيږي. ١

## برنى طخارستان (بدخشان) د مؤرخانو او جغرافيا ليکونکو په اثارو کې:

په تاريخي اثارو کې د برنى تخارستان د زيات شهرت د وريښمو د مشهورې لارې پورې تعلق درلود، چې دا لار په لرغونو دورو کې ډېره مهمه تجارتي لار وه چې ختيز چين يې د اروپا سره نښلاوه.

بدخشان زموږ د هېواد د ډېرو لرغونو ښارونو له جملې څخه دي چې تر ميلاد دوه پيړۍ د مخه په چينايي منابعو کې د (Ts-Nag-Ling) (د پيازو غر) په شکل راغلي دي او په ٥ او ٦ ميلادي پيړۍ کې چينايانو دا ښار د تخارستان سره يو ځاى ذکر کړې دى.

د بدخشان نوم د هيوان تسنگ په سفرنامه کې د (پو-تو-شينگ-نو- Po-to-char-no) په شکل پاسنى سيمه راغلي چې په ظاهره سره همدا بدخشان دي. په (يوان شي) کې هم د (با-دو-ها-شينگ) نوم د (سي- باى-تي) په لست کې ليدل شوي دي. ٢

د بدخشان د سيمې د شتمنى او نامتو والى په باب په حدود العالم کې راغلي دي:

بدخشان شهريست بسيار با نعمت و جاى بازرگان و اندروى معدن سيم ست و ازو بيجاده و لاجورد و از تبت بدانجا برند.

يعقوبي بدخشان په دريمه هجري پيړۍ کې د طخارستان د مربوطاتو څخه شمېري او ليکي (و مملکت حمارك، پادشاه شغنان و بدخشان و رود خانه بزرگ که تا شغنان مى رسد از آن است و اينها همه اش مملکت طخارستان علياست.)

اصطخري د بدخشان د ښار په متعلق داسې يادونه کوي:

بدخشان يوه سيمه ده، ښار او کلي لري او کلي ته يې بدخشان وايي. (٢١٧) مخ نوموړي مؤرخ د بدخشان د شتمنۍ او سمسورتيا په هکله وايي:

بدخشان آبادې ناحيې لري د (جرياب) د سين په غاړه ډېر باغونه لري له بدخشان لعل تر لاسه کيږي او لاجورد. د بدخشان په غرونو کې ډېر معدنونه دي او په بدخشان کې مشك زيات پيدا کيږي.

بدخشان له ډېرې لرغوني زمانې څخه د قيمتي ډېرو د درلودلو په وجه په تېره بيا د لاجوردو او

١ پښتو اريانا دايره المعارف، ۴ توك ٣٧٢ مخ
٢ مرحوم حبيبي ليکنه، اريانا مجله ٣١٩ گڼه، ٣ مخ

لعلونو د لرلو له کبله تر یوال شهرت لري لکه چې ابن هوقل په دې تړاو لیکي:

له بدخشان څخه ډېره ښه بیجاده (سور یاقوت، عقیق او کهربا) او نورې قیمتي ډبرې چې په ښکلي توب او رونق کې یاقتو ته پاتې کیږي، لاس ته راځي، دا قیمتي ډبرې په خاورین او اماني (اناري)، سرو (احمرقاني) او سرابي رنګونو دي او هغه اصلي لاجورد دي.

د بدخشان په غرونو کې زیات ډول ډول معدنونه شته دي او په زیاته اندازه تبتي مشک دي ښار ته راوړل کیږي او له دې ځایه یې وخان (واخان) ته وړي.

اصطخري د مقدسي له قوله په څلورمه هجري پیړۍ کې داسې وایي:

په (وخان) کې سپین زر او سره زر زیات دي له اوبو څخه زر دلته تر لاسه کیږي او د رودونو په واسطه راځرګندیږي، خلك یې راټولوي او د (وخان) په حد کې بدخشان د تبت د پولي سره نښتې دي.

د جواهرو دکان په خوا کې یوه کلا ده چې د (زبیده) د هارون الرشید د میرمنې د کلا یعنې د دې په نوم جوړه شوې ده او د بدخشان له یاقوتو او لاجوردو سربېره د بلور تیږه او پا زهران تیږه (شنه او خړ رنګې تیږه) هم په دغه ایالت کې شته دي.

اسبست چې عربان ورته حجر الفتیله وایي هلته په بدخشان کې موندل کیږي دا یوه محترقه ماده ده او له دې مادې څخه څراغ او فتیله جوړوي، مقدسي زیاتوي د دې مادې څخه د دسترخوان تو ته هم اوبدې او هر کله چې په غوړیو غوړه شي دا کفایت کوي چې په ډېر کم وخت کې یې تنور ته واچوي او هلته په بشپړه توګه پاکیږي.

په همدې توګه د څراغ فتیله (باتۍ) ترې جوړوي او هر کله چې خیر نه شي او یو څه وخت یې په لیدونکي اور کې ږدي تر هغې چې پاکه شي، همدا شان په بدخشان کې یو ډول تیږې هم موندل کیږي کله چې یې په تور تم کوټه کې کیږدي نږدې شیان روښانه کوي.

قزویني هم تقریبا د پورتني قول په تایید لیکي:

په بدخشان کې زیات جواهر او د لعلو ډبرې موندل کیږي چې یاقوت ورته وایي. همدا راز زیاتوي عام وګړي معتقد دي چې حجر الفتیله د یو هغسې مرغه وزر دي چې که یې په اور کې واچوي نو نه سوزي.

په بدخشان کې د یاقوتو کانونه خورا زیات دي، د یمګان د ښار په شاوخوا کې دا کانونه وجود لري او د سپینو زرو معدن ته نږدې دي. ۱

په هفت کشور (صورت الاقالیم، تالیف، ۷۴۸) کې د بدخشان د لعل په هکله داسې راغلي دي:

پخوا لعل نه ؤ او په هیڅ کتاب کې هم له لعلو څخه کومه یادونه شوې نه ده.

---

۱ لسترنج، جغرافیاي تاریخي خلافت شرقي، ۴۶۵ مخ

وايي يو وخت په بدخشان کې يوه سخته زلزله وشوه او ټول غرونه ونړېدل دا وه چې يو کان را ښکاره شو چې په لومړي سر کې سور ؤ، بيا ژيړ، شين او بنفش، ۸۶ مخ.

همدا راز په هفت اقليم کې د (احمد رازي تاليف، ۱۰۱۰ هجري) په ۹۶ مخ کې راغلي دي: بدخشان به کسرت مراتع و وفور مراسيع و زيادی انهار و بسياری اشجار و اثمار خجلت کشمير و غيرت قندهار است.

و اهل ديار اکثراً الوس و احشام اند و بناً به لطافت آب و هوا و کثرت سبزه و چلکا هميشه در صحرا به سر می برند و اسپان قوی، قوايم فراخ، کفل ميان لاغر (سرين ميان لاغر) در ميان ايشان بسيار است اگرچه معادن بسيار در آن ديار باشد، اما آنچه توان ذکر کرد کان لعل و لاجور است. ۱

ښاغلي صدقي وايي چې اوسنی بدخشان چې د لان شي په نوم هم ياديده د تاهيتا پايتخت چې د چين په امپراطور سفيرد يوچيانو سره هغه په ۱۲۸ قمري ميلادي کې ليدلي ؤ، او د هغه موقعيت په اوسني بدخشان کې بولي.

## د بدخشان د قيمتي ډبرو کانونه:

لکه په مخکيني بحث د مؤرخانو او جغرافيه ليکونکو په يادونو کې ليدل کيږي بدخشان د معدنونو له بابته يوه ډېره بډايه او سرشاره سيمه ده، د لعلونو، لاجورود او نقرې (سيم، سپين زرو) لوی تجارتي مرکز ؤ، او دا قيمتي معدنونه د بدخشان په لاندنيو سيمو کې موجود وو.

- سره زر: په ديشو، راغ او د کوکچې په سين کې.
- لاجور: په کران منجان کې.
- اوسپنه: د فيض آباد د شمال ختيز په ۱۴ ميلې او تورو سيمو کې.
- کاولين (د لوښو خټه) په اشکاشم کې.
- گوگرد: په زيباك کې. ۲

## د پرنی طخارستان ښارونه:

د بدخشان ښارونو او مهم محلاتو په لاندې ډول دي:

- جرم
- ولواليز
- فيض آباد
- شهر بزرگ

---

۱ جغرافياي تاريخي افغانستان، ۲۰۳، ۲۰۷ مخونه
۲ پښتو آريانا دايره المعارف، ۴ ټ، ۳۷۲ مخ

- اشکاشم
- راغ
- کشم ۱

**د فيض آباد ښار د بدخشان د مرکز په حيث:**

د فيض اباد نوم دومره تاريخي سابقه نه لري ځکه چې دا د دې ښار د راوروسته وختونو نوي نوم دي د فيض آباد پخواني نوم (جوزګون) يا (جوزون) د غوزانو درې په نوم يادېده او اوس ورته فيض آباد وايي دا چې د جوزګون د درې نوم څنګه او څه وخت په فيض آباد واوښت او حقيقت دا دي چې په پخوانيو زمانو کې د بدخشان ولايت (فيض آباد) کې د جوز (غوزانو) ونې ډېرې وې نو ځکه دا سيمه جوزګون يا جوزون دره بلل کېدله چې معنا يې د چار مغزو دره ده.

په ۱۰۱۹ هجري قمري د بدخشان مرکزيت چې په خنجان کې ؤ فيض آباد ته را انتقال شو بيا هم تر دې وخته پورې دا ځاى د جوزون په نامه يادېده، تر دې چې د حضرت محمد (ص) د مبارکې خرقې چې (ويس قرن) ته ورکړ شوې وه او سلسلتاً بيا بلخ ته ورسول شوه نو له هغه ځايه د محمد شيخ ضيا او شيخ نياز په واسطه جوزون ته راوړل شوه، دا وه چې د هغې خرقې شريفې په احترام يې د جوزون نوم د تبارك په ډول په فيض آباد واړوو.

وروسته بيا د احمد شاه بابا په امر ۱۱۸۲ هجري قمري دغه مبارکه خرقه له فيض آباد څخه کندهار ته راوړل شوه. ۲

په تاريخي اسنادو کې د جوزګون جغرافياي موقعيت داسې ښودل شوي دي:

جوزګون د ختيز طول البلد په ۷۰ درجو، ۳۲ دقيقو او ۲۴ ثانيو او شمالي عرض ابلد په ۳۷ درجو ۶ دقيقو تر منځ پروت دي.

په يو بل روايت کې د جوزګون په اړوند داسې معلومات وړاندې شوي دي جوزګون په تخارستان کې يو ښار دي چې د جوزون د رود په غاړه پروت دي او د ختيز خواته يې د کوکچه سين موقعيت لري او د بدخشان د اعلى حکومت مرکز دي دا ښار دومره تاريخي سابقه نه لري ځکه چې په ۱۱۰۳ هجري قمري کې د بدخشان د ميريار بيګ خان له خوا بنا شوي دي او پخوا يې يوازې د جوزون يا جوزګون د هماغه رود په نوم شهرت درلود.

څرنګه چې په پورتني نيته خرقه مبارکه د ميريار بيګ په واسطه دې ځاى ته راوړل شوه نو په دې مناسبت په فيض آباد ونومول شو.

---

۱ جغرافياي تاريخي افغانستان، ۳۴ مخ
۲ پښتو آريانا دايره المعارف، ۷ ټ، ۶۸۶ مخ

دلته په دې ټکي يو څه تامل په کار دي چې په مخکيني قول جوزګون ته د خرقې مبارکې راوړونکي محمد شيخ ضيا او شيخ نياز معرفي شوي وو.

احتمال لري چې نوموړو دوو شيخانو د ميريار بيګ په امر مبارکه خرقه دې ځای ته راوړې وې نو ځکه يې په دې ډله کې دې هم معرفي شوي دي.

د فيض آباد ښار د شاه امان الله تر دورې پورې د بدخشان مرکز ؤ او د جرم، رستاق، زيباك، شغنان، واخان، راغ، شهر بزرګ، يفتل، کشم او دا هم يې د مربوطاتو څخه وو.

پخپله فيض آباد ۵۸ کورونه او د هغه په نورو ۷ کليو کې ۴۱۸ کورونه موجود وو.

د فيض د ښار بازار درې زره دکانونه درلودل، په دې ښار کې درې جامع يو سراجيه سرکاري رباط، درې کاروانسرايونه، پنځه مدرسې او دوه سرکاري باغونه موجود وو. ۱

د تاريخي پېښو په ترڅ کې په ۱۸۲۰ ميلادي مراد بيګ قندوزي دا ښار وران کړ او وګړي ورته کندوز ته را انتقال کړل مګر د امير عبدالرحمن خان په وخت کې بيا له سره آباد شو او ور پسې وروسته د سوداګرۍ د بر مهم ځای وګرزيد.

دا سيمه زرخيزې ځمکې، پراخ او ښته زيات باغونه لري.

د بدخشان ولايت اصلي مرکز د «بدخشان» په همدې نوم موجود ؤ، خو په تاريخ کې نور معلومات نه دي ورکړ شوي او داسې ښکاري چې د بدخشان په نوم د پخواني ښار محل په همدې فيض آباد کې ؤ. ۲

**د ولوالج (رستاق) ښار:**

رستاق چې د «رستا» له کلمې راوتلي او د کلي په معنا دي د بدخشان يو لرغوني ښار دي چې پخواني نوم يې «ورواليز»، «ورواليج»، «وليواليج» او «ولواج» دي. د خلم ختيز ته د دوو ورځو د لارې په فاصله موقعيت لري.

ابن حوقل او نورو مؤخذونو د «د ورواليز» څخه په څلورمه هجري پيړۍ کې د يو ښار په نوم يادونه کړې ده اوس په دغه سيمه کې په دې نوم کوم ښار نشته دي خو څه رنګه چې په سفرنامو کې د هغه موقعيت ښودل شوي دي نو په دغه مقام ولواج او يا اوسنی رستاق موجود دي. ۳

او داسې ښکاريږي چې د رستاق د ښار پخوا په پورتنيو نومونو يادېده.

د راوروسته وختونو په آثارو کې د اوسني رستاق په متعلق داسې ليکل شوي دي:

رستاق تخار ولايت يو غرنی حکومت دي چې څلورو خواوو ته يې لوړ لوړ غرونه پراته دي او مشهور

۱ رهنمای قطغن و بدخشان ۷۴، ۱۷۷ مخ
۲ آريانا مجله، ۹ ګڼه، ۱۳۲۳، ۲۷ مخ
۳ شهرهاي آريانا ۹۷ مخ او آريانا مجله، ۱۰ ګڼه، ۱۳۲۳ شمسي، ۲۹ مخ

غر یې د خواجه سرخ د غره په نامه یادیږي، رستاق د سمندر له سطحې څخه ۱۴۶۸ متره لوړ دي او په دوبی کې یې د تودوښې درجه د فارن هیټ ۹۵ درجو ته رسیږي.

د کوکچې مهم او مشهور سین په دې سیمه کې بهیږي، د دې سین سرچینه د بدخشان په جرم کې ده او وروسته په امو ورګډیږي، په رستاق کې زیاتې چیني شته دي او پوره ګته ترې اخیستل کیږي. ۱

په یو بل روایت کې ولواج چې د بحر له سطحې څخه ۴۷۷۰ فته جګ دي ښار یې ۳۰۰۰ دکانونه لري د کسبګرۍ عمومي ګذرونه او بیا هر یو یې ځانګړي ګذرونه لري چې شمېر یې ۳۶۶ ته رسیږي.

رستاق درې کاروانسرایونه، ۳۰ جامع او څلور مدرسې لري، په ۸۴ کلیو کې یې ۴۰۲۵ یا ۳۹۲۹ کورونه موجود دي.

د ولواج تودوښه زیاته او وګړي یې سپین څېره دي او زیاتره سوداګری یې د بخارا سره ده د پیښور او چترال سره هم تجارتي لارې لري. ۲

## چاه آب:

د رستاق له مربوطاتو څخه یو محل دی ۳۱ کلي او ګذرونه لري او ۱۹۵۷ کورونه پکې موجود دي.

ورقت دینګي قلعه څخه ۹ کروه لیرې پروت دي او د بحر له تله ۱۹۲۰ فته جګ دي. د چنګیزي ناورین د مخه پکې ۶ – ۷ کلي موجود وو چې په دغه پیښنو کې بیخي وران شول او یوازې ینګي قلعه ترې پاتې شوه. (همدغه اثر، ۴۰۱ مخ)

## کاکا:

کاکا د رستاق د مربوطاتو څخه دي د ورقت نه ۹ کروه فاصله لري له بحره ۱۹۰۰ فته لوړ دي او د کوکچې رود هم ترې دغومره لېرې بهیږي.

## د ینګي قلعه ښار:

تر اسلامي دورې د مخه ینګي قلعه د (نومي) په نوم شهرت درلود او د یو لوی افغاني ولایت مرکز و.

د دې ولایت والي د آمو د سین د دواړو غاړو په سیمو حکومت کاوه.

د دوشني، ختلان او نورو سیمې د دې ولایت پورې تړاو درلود.

د اسلام په لومړیو کې دا ځای د احنف بن قیس په واسطه فتح شو او د احنف د قلعه په نوم مسمی شو، د مغلي او ترکانو د تسلط په مؤقتي دوره کې دا ځای د (ینګي قلعه) په نوم یاد شو او تر ننه پورې په دې نوم یادیږي.

---

۱ پښتو آریانا دایره المعارف، ۶ ټ، ۱۳، ۷۱ مخ

۲ رهنمای قطغن و بدخشان، ۳۸۲ – ۳۸۱ مخ

ينګي قلعه د چاه آب د سيمې په لويديز کې او د فرخار د سيمې په جنوب کې د آمو دريا په جنوبي غاړه کې د يو کوچني کلي په شکل موقعيت لري، مګر په تاريخي دورو کې له فرخاره تر کوکچې پورې د ۴۲ ميلو په اوږدوالي او ۹ ميلو په پسور پرته ده او د آمو درياب يې له منځه تيرېږي.

ينګي قلعه د طخارستان د ډېرو په زړه پورې او بديعو ښارونو څخه يو ښار دي. ۱

د رهنمای قطغن د بدخشان د ليکنې له مخې ينګي قلعه چې له چاه آب څخه ۶۱ (کروه ۳۲ کيلو متره) لري موقعيت لري له بحره ۲۱۷۰ فته جګ او په ۲۰ قشلاقونو کې ۱۶۳۰ کورنۍ لري. (۳۹۸ مخ)

## جرم او د هغه تګابونه:

جرم د فيض آباد د ښار څخه ۱۵ کروه لېرې پروت دي او له بحره ۵۶۵۰ فته جګوالي لري د (دان خاش) له ښاره ۶ کروه لېرې دي او د کوکچې سين يې له منځه تيرېږي د خلکو عمومي کسب يې د کوکچې په سين کې د زرو چڼول دي.

د کوکچې سين د بهارك لاندې د يو پراخ دښت په وروستنۍ برخه کې د وردوج د سين سره ورګډېږي او د فيض آباد ښار ته بهيږي او مخ په انجمن او منجان ځي.

جرم چې د بدخشان په ولايت کې اوس هم يو آباد ښار دي.

يعقوبي د نهمې پيړۍ جغرافيه ليکونکي هغه د ختيزو وروستينو ښارونو څخه بولي چې د بلخ يوه برخه او د تبت د مملکت د لارې په سر پروت ؤ، شهرهاي آريانا دا قول تاييد کړي دي. ۲

## د جرم تګابونه:

### ۱- د يمګان تګاب:

د جرم د سيمې دواړه خواوې او تر هغه ښکته د کران تر تنګي پورې يمګان بلل کيږي د آريانا مجلې په يوه لومړنۍ ګڼه کې د يمګان په متعلق داسي معلومات ورکول شوي دي:

يمګان يوه سيمه ده د بدخشان په جنوب کې چې څلور خواوې يې په دې ډول دي:

- د شمال خواته، فيض اباد.
- جنوب خواته: نورستان.
- د ختيز يوه برخه په چترال او (دوراه) په مشهور غر او څه برخه يې د زيباك په سيمه او يوه برخه يې د وردوج او بله برخه يې د (پرړديو) او سرغلام په سيمو.
- له لويديزه: په خاشن، ځيني برخه يې په اشکان، يوه حصه يې د کشم په پولو څه برخه يې په فرخار

۱ آريانا مجله، ۱۰ ګڼه، ۱۳۲۳، ۳۱ مخ
۲ آريانا مجله، ۶ ګڼه، ۱۳۲۳، ۴۲ مخ

او اورسیچ او یوه حصه یې په پنجشیر تړلې ده.

د یمګان اوږدوالي له شماله تر جنوبه ۷ منزله او پسور یې له ختیزه لویدیز ته په ځینو برخو کې د یوې ورځې لار په فاصله او په لیریو برخو کې د ۲ - ۳ ورځو د منزل په اندازه دي.

که چېرته څوك وغواړي د دې سیمې په اوږدو کې داسې مزل وکړي چې هره ورځ ۱۶ میله مزل وکړي نو باید چې ۷ ورځې مسافرت وکړي کوم منزلونه چې په دې لار کې پراته دي د مزار او خواجه ابدال څخه عبارت دي منتها دا منزلونه د دې سیمې په شمال کې پراته دي جنوب خواته لومړي جرم بیا اشکان دریم حضرت سید. یعنې د حضرت حکیم ناصر خسرو علوي مزار، څلورم د لاجوردو د معدن، پنځم اسکازر یعنې د کران د سیمې مرکز. شپږم شهران چې د منجان په سیمه کې پروت دي، اوم د منجان هغه سرحد چې د یمګان د درې او نورستان تر منځه حد فاصل تشکیلوي.

دا ټولې درې په تاریخي مفهوم سره د یمګان په نوم یادیږي او د دې سیمې وګړو ته یمګي یا یمګاني ویل کیږي، دا ناحیه د (یمګ) په معنا افاده کیږي.

اوس د یمګان دره په هغه ځای اطلاقیږي چې د بدخشان د خرم د حکوم مرکز تړې پیل کیږي د لاجوردو د معدن په نقطه یعنې د رباط په کلي پای ته رسیږي په دې معنا چې اوسني یمګان له شمال څخه جنوب ته د څلور ورځنۍ لارې په پراختیا دې مګر طبیعي او تاریخي حدود یې یمګان دي. ۱

شهرهای آریانا کتاب په ۱۰۲ مخ کې لیکلي دي چې یمګان د بدخشان په ایالت کې یو ښار ؤ چې د هغه په خوا کې د سپینو زرو، بلخش یاقوت او بالاس معدنونه موجود وو

## ۲- د جرم وردوج تګاب

د وردوج تګاب د جرم له ملحقاتو څخه یوه شرقاً او غرباً غزیدلې دره ده چې رود یې له زیباکه راوځي او د بهارك په لاندنۍ برخه کې د کوکچې پر سین ورګډیږي، بهارك ته نږدې تر زیباك پورې یې اوږدوالي ۲۸ کروه دي لکه چې د بهارك د سراجیه رباط څخه د چاکران د سراجیه رباط پورې دو رودوج تګاب ۸ کروه لېرې پروت دي او له هغه ځایه د سفیدې درې تر رباط پورې هم ۸ کروه مسافه ده.

د دې پسور په ځینو ځایونو کې نیم کروه ۱۰۰ متره او په ځینو برخو کې تر دې کمتر ذي. پخپله وردوج دوه رباط لري یو یې د چاکران رباط دي چې د بحر څخه ۶۱۰۰ متره لوړ دي او بل یې د سفید درې رباط دي چې ۷۷۰۰ فته جګوالي لري.

د وردوج د درې په ۳۲ کلیو کې ۵۴۴ کورونه شته چې د نفوسو شمېر یې ۴۰۰ تنو ته رسیږي. ۲

---

۱ د شاه عبدالله بدخشي لیکنه، آریانا مجله، ۱ ګڼه، ۱۳۲۳، ۴۵ مخ

۲ رهنمای قطغن و بدخشان ۲۲۰ مخ

## ۳- د بهارك او زرديو تګاب:

د جرم د درې دريم تګاب د زرديو تګاب دى چې د بهارك ټوله آبادي د دې تګاب په واسطه ده، د دې درې مركز د بهارك قشلاقونه تشكيلوي چې په وروستۍ برخه كې يې زرديو موقعيت لري.

د زرديو تګاب شمالاً او جنوباً غزيدلى دى.

څرنګه چې زموږ په هېواد كې دوه نور تګابونه لكه د كاپيسا تګاب او شيرين تګاب هم شته او نور زيات شمېر تګابونه شته او كه په لنډه توګه يې د معنا څېړنه وشي، نو تګاب، تګاب دى چې معنا يې تك آب، يك آب، باريك آب، د اوبو لاندې په پښتو نرۍ اوبه او يا د هغې درې مفهوم هم افاده كوي چې اوبه يا رود په كې بهيږي.

**بهارستان (بهارك) ښار:**

بهارستان د جرم يو مشهور ځاى دى، د سمندر له سطحې څخه ۵۵۰۰ فټه لوړوالي لري د زرديو د ميوجوج څخه ۴ كروه لېرې په يو لوړ او هوا دار محل باندې پروت دى بهارستان ته چې د اسم تصغير له مخې بهارك هم وايي، د ده او د زرديو او سرغلان قشلاقونه په مجموع كې ۲۴ ته رسيږي چې ۶۳۶ كورونه پكې پراته دي او د نفوسو شمېر يې څلور زره تنه دى.

په يو بل اثر كې د بهارك په تړاو داسې ليكل شوي دي.

د بهارك لومړنى نوم بهارستان دى او زيبق هم ورته وايي او دا د تخارستان د تاريخي ښارونو له جملې څخه يو ښار دى. بارستان د كوشانيانو د پاچهي په دوره كې د (لان-شي) په نوم ياديده وروسته يې په تاريخي آثارو كې د بهارستان نوم واخيست او اوس په بهارك شهرت لري. دې ښار ته د بهارستان نوم په اغلب ګومان سره په اسلامي دوره كې وركړ شوى دى او بيا كله چې د مغلو له خوا دا ښار وران شو او زياتې خرابۍ يې ورته واړولې نو يې د تصغير د نوم په توګه په بهارك ونومول شو.

د بهارستان ښار د بدخشان د فيض آباد د جنوب ختيز په ۳۸ ميلي كې پروت دى د چين او تركستان لويه كارواني لار د دې ښار له منځه تيريږي، د وردوج، زرديو او كوكچې رودونه هم د دې ښار په منځ كې جريان لري. ۱

## راغ:

د بدخشان د مهمو محلاتو څخه يو هم راغ دى چې ذ ختيز طول البلد د ۷۰ درجو، ۷ دقيقو، ۲۸ ثانيو، ۴۸ دقيقو او ۶ ثانيو په خط او د شمالي عرض ابلد په ۳۷ درجو، ۷۶ دقيقو، ۳۷ درجو، ۳۹ دقيقو او ۱۲ ثانيو په منځ كې د فيض آباد لمر لويديز ته د ۲۷ كيلو مترو په مسافه پروت دى چې:

---

۱ آريانا مجله، ۶ ګڼه، ۱۳۲۳، ۳۹ مخ

- لمر خاته یې: د شبده دښت.
- جنوب لویدیز ته: شهر بزرگ سیمه.
- شمال ته: د (یش) یا (ایش) دښته.

راغ ۱۲ کلي او پـه اټکلي ډول ۸۰۰۰ کورونـه لـري پـه ژمـي سـوړ او پـه اوړي نـسبتاً تـود دي د راغ مشهور رودونه له درخال، سیاب او درونج څخه عبارت دي چې سرچینې یې د راغ په غرونو کې دي او د دې سمې د خړوبولو وروسته د پنج سین ته توئیږي.

د ثور نه تر سرطان میاشتې پورې یې اوبه زیاتې وې بیا وروسته کمیږي.

مشهور غرونه یې خواجه غلام غر، مزار جانان غر، مزار بزکش غر او د حضرت سلطان غر دي. ۱

راغ په ۴۸ قشلاقونو کې ۱۸۴۷ کورونه لري او نفوس یې ۱۵ زرو تنو ته رسیږي. ۲

## هلا ورد (شهر بزرگ):

شهر بزرگ لکه چې د نوم څخه یې څرگندیږي د بدخشان یو لوی ښار دي چې د فـیض آباد څخه ۲۰ کروه لرې موقعیت لري پخپله دا ښار یو سراجیه رباط او د هغې لار په اوږدو کې چې فیض آباد تـه تللې ده کوم رباط نه لري، په ۵۵ قشلاقو کې ۳۲۲۲ کورونه لري. ۲

د آریانا مجلې د لسمې گڼې په ۲۹ مخ کې بیا د شهر بزرگ په متعلق داسې لیکل شوي دي:

د شهر بزرگ پخواني نوم هلاورد دي. دا ښار د واخان پـه ایالت کې دخش آب د رود پـه غـاړه پـروت دي.

د مقدسي په قول دا ښار د ایالت د پایتخت هلبوک څخه ښکلي ؤ.

## د اشکاشم ښار:

اشکاشم د بدخشان یو ښار دي چې د سمندر له تل څخه ۹۴۵۰ فته جگ او د زیباك څخه ۷ کروه لرې او امویه (دریـای پـنج) پـه غـاړه پـروت دي ښـي خواتـه یـې د واخـان دره ده او کینـې خواتـه یـې د غـاران او شغنان درې پرتې دي. یو سراجیه رباط او یوه عسکري چونۍ لري.

اشکاشم د تاجکستان سره همسرحده په ۱۲ قشلاقونو کې ۶۵ کورونه لري. ۳

پښتو آریانا دایره المعارف د اشکاشم په باب داسې معلومات ورکوي:

اشکاشم د واخان د سیمې د کمیساری مرکز دي د آب پنجه (پنج آب، امویـه) پـه سـهیلي غـاړه کـې د سمندر له تله ۲۵۹۱ متره لوړ پروت دي.

---

۱ پښتو آریانا دایره المعارف، ۶ ټ، ۳۸ مخ
۲ رهنمای قطغن و بدخشان، ۳۷۶ مخ
۳ رهنمای قطغن و بدخشان، ۲۶۲ مخ

د مشرقي طول البلد ۷۱ درجو، ۳۶ دقيقو او ۳ ثانيو او شمالي عرض البلد په ۳۶ درجو، ۴۰ دقيقو او ۵۰ ثانيو د خطونو په منځ کې واقع دي د آمو سين (امويه سين) دلته له يوې تنګې درې څخه تير شوي او د شمال ختيز په لور کږېږي. د اشکاشم تنګه علاقه چې د هندوکش په شمالي لمن کې پرته ده يوه غرنۍ سيمه ده، لوړې او ژورې لري، د هندوکش لوړې او يخچالي سيمې چې ځينې يې ۷۰۷۷ مترو څخه زيات جګوالي لري د خپلو هيبتناکو منظرو سره له جنوب څخه معلومېږي.

د نوشق يخچاله څوکه په جنوب ختيز کې واقع ده او ۷۴۸۶ متره لوړه او له دغې يخچالي سيمې څخه څو تندې شيلې راوتلې دي او د امو سين په لور بهيږي.

د اشکاشم کلا هم يو د دغو شيلو (رودګيو) لويديز پلوته پرته ده اشکاشم د زيباک له مرکزه چې شمال ختيز خواته پروت دي ۳۱ کيلو متره فاصله لري اشکاشمي ژبه د اريايي ژبې د ښاخونو څخه يوه څانګه ده او تر اوسه پورې اشکاشميانو ساتلې ده. زيباک او شغنان د اشکاشم پورې مربوط دي. ۱

## زيباک:

زيباک د جغرافيايي شکل له مخې يوه دره ده چې شمالاً او جنوباً پرته ده، د سمندر له تل څخه ۹۲۵۰ فته لوړه ده او له (تيرګران) څخه ۱۱ کروه لېرې موقعيت لري پخپله زيباک په ۸ کيلو کې ۱۳۹ کورونه لري. او جنوبي زيباک بيا په ۱۲ کليو کې د ۲۸۲ کورونو درلودونکې دي.

د زيباک دره ۱۵ کوتلونه لري. ۲

زيباک د بدخشان مربوط د افغانستان په شمال ختيزه برخه کې پروت دي د ختيز طول البلد ۷۱ درجو، ۵ دقيقو، ۴۸ ثانيو او شمالي عرض البلد ۳۶ درجو، ۱۴ دقيقو او ۲۴ ثانيو پر خط واقع دي.

زيباک له فيض آباد څخه د آس په سپرلۍ ۱۸ ساعته فاصله لري د سنګليچ کلي د زيباک د سر خط کلي تر آخره پورې او چترال ته مخامخ د ژاندرمي تانې په محل واقع دي دلته سرحداري او د ګمرک ماموريت هم شته دي.

په زيباک کې د ګوګردو او موم لايي کان موجود دي، دلته ميوه لرونکي ونې د سرو او سختو بادونو له کبله چې کانې په هوا الوزي وده نه کوي.

زيباک چې د فيض آباد څخه ۱۲۰ کيلو متره لېرې دي له سمندره ۲۶۹۴ متره لوړ دي هوا يې ژمسته زياته سړه، د ورځې له ۱۲ بجو څخه د شپې تر ۱۲ بجو پورې پکې سخته سيلۍ چليږي له زيباکه چترال ته هم لارې تللې دي.

د دې سيمې ښځې د ګډيو ورۍ په باندې ريشې او نارينه څکمنونه، جرابې او نور شيان اوبي، د

---

۱ پښتو آريانا دايره المعارف، ۳ ټ، ۱۳۳۷، ۲۵۱ – ۲۵۲ مخونه

۲ رهنماي قطغن و بدخشان، ۲۴۵، ۲۴۸ – ۲۵۵ مخونه

غوبي او غرڅه له پوستکې نه چموس او سوګلي جوړوي (يو ډول پاپوشي) د غرونو خلك د خام پوستکې څخه جوړوي.

کورونه يې له تيږو او شګنې ختې څخه دي. ۱

## کشم:

په منځنيو پيړيو کې کله چې د ګوډ تيمور د چپاوونو خت ؤ نو دا مهال د بدخشان د ايالت پايتخت کشم ؤ.

ښاغلي محمد عثمان صدقي د آريانا مجلې پورتنی قول تاييدوي او ليکي کشم د بدخشان د ايالت په توګه د کلفګان ختيز لورته د يوولس کروه په مسافه لېرې د بحر له سطحې څخه د ۴۲۸۰ په لوړوالي پروت دي.

کشم د ختيز طول البلد د ۶۹ درجو ۷ دقيقو او ۳۶ – ۴۱ دقيقو او ۲۴ – ۵۶ ثانيو او شمالي عرض البلد د ۳۱ درجو، ۲۹ – ۵۵ دقيقو او ۳۸ ثانيو په منځ کې موقعيت لري. غرنی سيمې او خاورينې غونډۍ لري. په ۱۸ کليو د ۱۷۹۸ په شاوخوا کې کورونه شته. ۲

## کران او منجان:

دا د بدخشان د ايالت يو دولتي واحد دي چې د شرقي طول البلد په ۷۱ درجو، ۷ دقيقو، ۳۹ ثانيو او شمالي عرض البلد ۳۶ درجو، ۲۵ دقيقو او ۸ ثانيو پر خطونو پروت دي.

دا سيمه ټوله غرنۍ ده او ختيز خواته يې د بنو، نورستان او چترال غرونه او زيباك.

لمر لويديز ته: پروان او د فرخان يوه برخه.

جنوب ته: د نورستان سيمې.

په ژمي کې يې هغه ډېره سړه ده، په غرونو يې هميشه واورې پرتې وي نو ځکه پکې هر ډول وابښه نه شنه کيږي.

کران او منجان ۶ کلي او ۲۰۶ کورونه لري. (پورتنی آثار ۲۳۶مخ، ۸۱۲ مخ)

هېوان تسانګ منجان د (منګ کين) په نوم ياد کړي دي.

## د منجان د کلمې تاريخي ريښه:

منجان چې په تاريخ کې د منجوان په شکل هم ثبت شوي دي د افغانستان پخواني تاريخ د سوما د مبحث په يوه برخه کې ليکلي دي:

---

۱ پښتو آريانا دايره المعارف، ۲۰۷ – ۲۰۸ مخونه

۲ رهنمای قطغن د بدخشان ۱۹۲۰ مخ. آريانا دايره المعارف، ۱۲۳ مخ

... د سوماګياه (موجاوات) په غره يا که ځرګنده وواېو د (منجوان) په غره کې شنه کېدله هغو څېړونکو چې د افغانستان د جغرافيايي وضعيت او نومونو خخه پوره معلومات نه لري، سره د دې چې د (ميجوان) نوم په ځرګند ډول ياد شوي دي اشتباه کړې او د هغه محل يې د افغانستان او پنجاب په ځينو نورو ځايونو کې ټاکلي دي، حال دا چې د دغه غره نوم يې له کوم کلي تفسير نه په هماغه خپل پخواني شکل تر نن ورځې پورې پاتې دي او د منجان غر دی چې په دغه نامه يو غاښې هم مشهور شوي دي او د نورستان او د بدخشان د سيمو تر منځ د تګ او راتګ لار ده.

د منجان او منجوان تر منځ يوازې يو (و) فرق دی او په هغو ټولو مثالونو سره چې په لاس کې دی (و) او (الف) هر کله چې دواړه د علت توري دي په صوتي تلفظ کې (و) حذف شوي او منجوان په منجان اوښتلي دي. په دې کې هيڅ شك او شبه نشته دي چې د ويدې سرودونو منجوان همدغه او سني منجان دي چې د هندوکش د جنوب ختيز کوهستانونو يو ښاخ پکې راغلي دي.

په دې سربېره په (عترويد) کې يو قوم د منجووات په نامه هم ياده شوي چې A.Macdonelle په عقيده هغه قبيله ده چې موجاوات يا منجوان دغره په خوا کې يې ژوند کاوه او د ګندهارې د قبيلې سره يو ځای او ګاونډه وه. ۱

**آی خانم (ماه بانو) ښار:**

ای خانم په بدخشان کې زموږ د هېواد يو لرغوني تاريخي، پوځي، مذهبي، اداري او کلتوري ښار دي چې د باختر په ختيزه څنډه کې په کومه مهمه نقطه کې چې د آمو سين او د کوکچې سين سره يو ځای کيږي پروت دي.

د آی خانم په خوا کې د ګريکو باختر د پاچهي د دورې يو لوی ښار کشف شوي ؤ چې د دې ښار تاريخي نوم معلوم نه دي. دلته دا ايجابوي چې ای خانم د ساختمان مشخصاتو او استحکامي بيلګو په باب رڼا واچول شي.

د تاريخي روايتونو په بنا لکه د يو يوناني مؤرخ په قول د مسيحي پيړۍ د عصر په شاوخوا کې آی خانم يو يوناني ښار ؤ او پردې سربېره له ۱۹۶۱ ميلادي وروسته لرغون پيژندونکي هيئت د دغه يوناني ښار په بقاياوو (چې اوس په آی خانم-بانو ترکي لفظ په مفهوم مشهور دي) د دې يوناني باختري مدنيت ډېر شتمن آثار دلته وموندل.

دې ښار لکه چې د مخه وويل شو د دوو سيندونو د تلاقي په حساسه نقطه کې موقعيت درلود دوی مشخصې برخې لري يوې خواته يې لوړه غونډۍ پرته ده چې د جنوب له خوا د کوکچې پر سيند حاکميت لري او د بلې خوا يې د شلو مترو په لوړوالي يوه بله غونډۍ شته چې د آمو د سين په غاړه پرته ده د دې

۱ د افغانستان پخواني تاريخ، ج۱، کهزاد، ۱۸۵ – ۱۸۵ مخونه

غونډۍ د پاسه دېر لوی استحکامات پراته دي چې د دې ښار بالاحصار دي او یو حصار هم شته چې د برجونو او بارو په شکل دي.

د ښار په منځ کې یوه مرکزي جاده ده چې د شمال څخه د جنوبي دروازې په استقامت ۱۶۰۰ متره اوږدوالي لري، دلته دغه کوڅه هم تر سترګو کیږي د هغه ښار د مدنیت علایم چې دلته موندل شوي دي ښایي د ګریکو باختري د خاص مدنیت په نوم یادیږي چې د مرکزي آسیا د بادیه نشینانو د حملې په واسطه له منځه تللې دي.

د دې ښار د معمارۍ سبک په ډېره زیاته لوړه درجه دي چې د پخو خښتو او د تیږو د پایو، لویو ودانیو، مرکزي ماڼۍ چې مستطیل شکل غولي لري درلودونکي دي په دې ودانیو کې د شنو، ژیړو او تور رنګ امیزیو ښې لیدلي کیږي. د ودانۍ هره ضلعه یې ۴۵ سانتي او له ۱۲ – ۱۵ سانتي مترو پورې پیړوالي لري د ښار اوبه د هغې ویالی په واسطه چې د کوتې پاسنی او حتی بالاحصار ته رسیږي د ۲۰ کیلو مترو په اندازه د کوکچې د سین څخه را اخیستل شوي دي.

د آی خانم ښار له دریو برخو څخه متشکل دي:

- بالاحصار
- د حصار ښکتنۍ برخه
- ارګ

د آی خانم د ښار په جنوبي او لویدیزه برخه کې د خلکو هستوګنځي، ودانۍ، ورزشګاوې او بازارونه دي چې له دې لوبغالو څخه د پهلوانۍ د رب النوع (هرمس) مجسمه تر لاسه شوې ده چې هغه یوناني (تیر سبا کوس)، (ولد استراستون) د کشفي شوي کتیبې له مخې هرمس او هر کول ته وقف کړې وه.

یوه بله کتیبه چې د دې ښار د خلکو د فکر او فلسفې دېر ښه مظهر کیدای شي هغه د یوه تن یوناني (کي ته اس) د قبر د مستطیل صندوق د کتیبې لیکنه ده چې هغه (کلا ارك) دا اپې (فرادیوس) زوی په آی خانم کې د ده په آرامګاه باندې نقر او نصب کړې وه او د هغې لیکنې مفهوم په دې ډول دي:

(په ماشوم توب کې ښه تربیه واخله، په ځوانۍ کې خپلې غوښتنې سرته ورسوه، په پوخ عمر کې راستکار اوسه، په بوډاتوب کې ښه ناصح اوسه او د ژوند په ورستیو ورځو کې پوه شه چې څنګه پرته له افسوس څخه مړ شې. ۱

په تاریخي آثارو کې راغلې دي چې د آی خانم ښار درې برخې درلودلې لکه چې د مخه ترې یادونه وشوه، او دا دي په هرې یوې برخې بحث کیږي.

۱ تاریخ مختصر افغانستان ج۱، حبیبي، تاریخ انجمن، مطبعه دولتي، ۱۳۴۶، ۵۶ – ۵۷ مخونه

**بالاحصار:**

د آی خانم بالاحصار د عمومي وضعيت له مخې مثلث نما شکل درلود او د يوې تپې د پاسه جوړ شوې ؤ چې د اطراف له ځمکې څخه ۵۰ متره لوړ ؤ، يوه فرعي دروازه يې درلوده چې بالاحصار د غونډۍ د شمال ختيځې او آخري برخې ته ايستل شوي وه او له همدې دروازې او عمومي جادې څخه بالاحصار ور پورته کېدله.

**ارګ:**

د آی خانم قلعه يا ارګ د تپې په ډېره لوړه برخه په جنوب لويديځه زاويه کې په نيم دايروي شکل ساحه کې چې ۴۰۰ متره قطر يې درلود او په ټول ښار او ګاونډۍ جلګې حاکمه وه جوړ شوي ؤ په دې قلعه کې جمنازيوم، بازار او نور تعميرات موجود ؤ.[1]

د آی خانم د بنسټ ايښودلو د مبدا په هکله د مؤرخانو په لاس کې څه نشته دي او دا ښار د کومې نقشې له مخې هم نه دي جوړ شوي، خو نقل دي چې پخوا په دې سيمه کې يوې ښځې د آی خانم په نوم حکومت کړې دي مګر په دې باب ځيني نور روايات په لاندنی ډول دي:

- مقدوني سکندر ۳۲۹ – ۳۲۷ ق. ميلادي د دې ښار مؤسس ګڼل شوې دي. او وايي چې دلته يې دوه کاله استوګنه کړې ده.

- همدا راز لومړي سلو کوس په ۳۰۵ ق. ميلادي په سوريه او بين النهرين کې يوناني پوځونه ځای په ځای کړل، بيا هم د دې ښار مؤسس سکندر ښودل شوې دي.

- بطليموس هم دا ښار د (اوکاسايان سکندر) د (امو سيند سکندريه) په نامه ياده کړې چې د دې ښار موقعيت ډېر ښه د آی خانم سره مقايسه کېدای شي.

- د دې ښار په ودانولو کې سلو کوس او د هغه زوی (انتيو کوس) چې په آسيا کې يې د نيوکې سياست چلاوه هم برخه اخيستې ده.

- هيرودت د سکندر نه راوروسته هغې تاريخي سندونو او موادو د شواهدو له نظره چې په لاس کې يې درلودل ترتيب او تدوين کړی دی چې د آی خانم ښار يې د (اوکسايانا اسکندريه) په نامه ياد کړې دي البته اوکسايانا په لاتينه ژبه اوکسوس د (آمو سين) ياد شوي دي.

- د انګلستان د پوليسو د نامتو او نابغه رمان ليکونکي (تاون) د تاريخي سندونو له مخې يې دا څرګنده کړه چې د سکندر نه وروسته د اغتشاش په کلونو کې ۳۰۵ ق. ميلادي د سلوسيانو تر مستقيم واک لاندې وه. داسې څرګنديږي چې سکندر او لومړي سلو کوس په شخصي ډول د دې ښار په ودانولو

[1] آريانا مجله، ۱۱ – ۱۲ ګڼه، ۱۳۴۵، ۶۸۴ مخ

کې برخه نه ده اخیستې او دا ښار د «کیني اس» له خوا ودان شوی دی. ۱

په پورتنی سند کې د دې ښار ساختماني کيفيت داسې ښودل شوی دی:

د دې ښار نه يو لوړ او سور ور ديوال راچاپیر شوي دي. چې د ديوال جګوالي يې ۱۰ متره او سور يې ۱۱ متره اټکل شوي دي.

دا ښار له دوو برخو څخه تشکيل شوي دي:

۱- اصلي ښار چې مستطيل شکل لري د آمو سين سره د ۸۰ مترو په امتداد چې د ښار له بالاحصار څخه واټن لري موازي پروت دي او د يوې مثلث شکلې غونډۍ پر سر چې د ښار مهمه نقطه ګڼل کېږي ودان شوی دی. د ښار په منځنۍ برخه کې سر کاري دفترونه او لوی عمارتونه چې د ښار حکمرانان او يوناني جنرالان به پکې اوسيدل او له همدې ځايه يې ښار اداره کاوه.

۲- د ښار دوهمه برخه د شخصي کورونو، د ښار عمومي حمام او نورو ودانيو څخه عبارت وه د دې ښار په جوړولو کې له پخو خښتو له اهکي پستو ډبرو، ګچ او عاج او ځينې نورو موادو څخه استفاده شوې ده.

د آی خانم د ښار سرکاری ماڼۍ، بلاکونه او شخصي کورونه د هغې زماني د معمارانو او ختګرانو يو لوی شهکار دی چې په «پرسيپوليس» کې د داريوش د ماڼۍ «د جمشيد د تخت» سره مقايسه کېدای شي. او هم د ښار په جوړولو او تنظيمولو کې د قايمې زاويې په اساس مراعات په نظر کې نيول شوي دي چې بيا هم د انسان فکر او ذهن د بين النهرين او هخامنشيانو د لرغونو ماڼيو د جوړولو سبك ته بيايي. «پورتنی اثر، ۱۳ مخ»

د آی خانم کلا چې مستطيل شکل لري يونيم کيلو متر په يوه کيلو متر کې ده هغه کيندنې چې په ۱۹۶۵ ميلادي د فرانسوي لرغون پيژندونکي هيئت له خوا د آی خانم په خرابو کې تر سره شوي داسې نتيجه ترې واخيستل شوه چې د آی خانم خرابو ښار بالاحصار او ښکتنۍ برخه درلودله. دا ځای پخوا د «سيلو سيد» د امپراطوری يو ولايت ؤ او د ميلاد نه د مخه په دريمه پيړۍ کې يو خپلواك دولت ؤ.

تر ميلاده د مخه تر دوهمې پيړۍ پورې د هندوکش په شمال کې د يو يوناني تمدن او يو «هيلينيستيکي» کلتوري نماينده ګی. کوله او بيا د هغو قبيلو د هجوم له کبله وران شو چې د ماورالنهر څخه يې يرغل راوړ دغه تمدن د نني ترکيې د مرکز اناتولي د سيلوسي او يا پارت د امپراطورۍ د حوزې د تمدن سره نژدې اړيکې لري.

د آی خانم د ښار ساختماني شکل يوناني سبك دي او د يوناني ښار غوندې جوړ شوي دي يعني داسې يوه حويلي ده چې دروازې لري «پورتي ګيوس» د جوړونې شکل يې مستطيل دي ستنې لرونکي

۱- کابل مجله، ۱۳۵۵، ګڼه ۴، ۱۱ – ۱۲ مخونه

دهلیز لري چې د هرې پوره ستنې نه وروسته یوه نیمکله ستنه پکې ودرول شوې وه. دیوال یې په «پرسیپوپولیس» کې د هخامنشیانو د جمشید د تخت په څیر له پخواو اومو خښتو څخه جوړ شوي دي او په تهداب کې یې تیږې کارول شوي دي.

دغه ډول معماري د نژدې ختیز په حوزه او مرکزي آسیا کې هم معموله ده. خو ښست یې د جمشید د تخت نه توپیر لري لکه په یوناني سبك او طرز پکې کار شوي دي.

د کورنتین د مجللو ستنو سرونو د «فینتول» په پاڼو ښکلي شوي دي او د ستنو بیخونه «قاعدې» په دوو ردیفو کې تراش شوي دي. دا پوره او نیمکله ستنې «اکانت» په ګلانو او پاڼو تزئیني شوي دي. «دانتس» د دوو ستنو تر منځه معمارۍ نه پرته نورې برخې زیاتره په کلاسیك طرز جوړ شوي دي په دغو اثارو کې لویې اهکي ډبرې د دوو سرو میخونو او د برنجي اتصالي لولو په واسطه سره نژدې او نښلول شوي دي.

په یوناني سبك په نیسه پارت کې د ډبرو د کار تکمیل چې د دغو کنډوالو معمار دي هم بې ساری ګڼل کیږي.

سنګ کارۍ دغه صنعت د کوشاني عصر په معمارۍ کې چې له هغو څخه وروسته رواج لري هم نه دي لیدل شوي.

د ښار ښکتنۍ برخه په مرکز کې پرته ده چې د یو مهم سیاسي او اداري مرکز د حکمران د ماڼۍ او یا کوم لوی بازار به ؤ. یو لوی پراخ مستطیل ښار ۱۰۰ په ۱۴۰ مترو کې چاپیر ترې د ننوتلو دروازې او کورنتین ستنې راتاوې شوي دي. داسې ښکاري چې دلته یوه لویه دروازه وه چې په دواړو خواوو کې یې کوچنۍ کوچنۍ خونې وې خلك ننوتل او هغه د ګارد د عسکرو د پاره وې. د دغې دروازې داخلي دیوال دوی د کورنتین ستنې درلودلې.

دغه دروازه بیا په منځنۍ برخه کې یو لوی دهلیز ۱۷ – ۲۸ مترو کې خلاصیدله. په دهلیز کې د کورنتین ۱۸ ستنې په دریو قطارونو کې چې هر یوه ۱۶ ستنې دي ویشل شوي دي.

د دغه دهلیز په شا کې یوه لویه خونه شته او د دې خونې شاته یوه بله مستطیله خونه موجوده وه.

د دې دیوالونو د لومړۍ حویلي د جنوبي دروازې په څېر د ډبرو او نیمکله ستنو باندې ودرول شوي دي چې سرونه یې په ګلانو او پاڼو ښکلې کړي شوي وو، چې شنه، سره، تور او ژیړ رنګونه یې درلودل د ښکتنی ښار په بالاحصار کې پوره استحکامي عظمت موجود ؤ.

د بالاحصار مستطیـــــل برجونه له اوومو خښتـــــو څخه جوړ شوي وو او پراخوالي یې له شلو

مترو زيـــسات ؤ. ۱

## د ارهنگ ښار (حضرت امام):

د ارهنگ ښار د آمو سين د جنوب د ۹ ميلي په يو پراخ ښاخ کې چې د آمو دريا څخه خروبيږي پروت دي او د طخارستان د ډېرو آبادو، معمورو ښارونو له جملې څخه دي.
همدا راز د ارهنگ ښـار د هغـو سکندريو له جملې دي چې د مقدوني سکندر لـه خوا پـه ۳۳۰ ق. ميلادي کې بنا شوه او په طخارستان باندې د اسلام د تسلط په زمانه کې دا ښار د (ارهنگ) په نوم ياد شو او تر هغه وخته دې نوم شهرت درلود چې سلطان حسين مرزا کله چې د حضرت علي کرم الله وجهه روضه په مزار شريف کې جوړه کړه. د امام صاحب د روضې تعمير يې هم شروع کړ او له هغې نيتې وروسته دا عقيده زياته مروجه شوه چې حضرت سيد الشهدا امـام حسين (رض) روضـه پـه دې ځـای پرتـه ده. نو دا وه چې د ارهنگ نوم په حضرت امام صاحب تعويض شو.
نن ورځ د ارهنگ د تاريخي ودانيو پاتې شونې د امام صاحب په جنوب ختيز کې په دشت ارچي کې په يوه پراخ ښاخ کې تر سترگو کيږي. ۲

## ښکتنی تخارستان

## ضروري سريزه:

څرنگه چې د دې کتاب چاپ شوي وروستنی برخه (طخارستان، تخار) يا د قيمتي کـانونو سيمې د معرفي په هکله او بيا په همدې ارونده (طخارستان د موقعيت، د تسميې، وچې طخارستان د مؤرخانو او ليکوالانو په آثارو کې، د طخارستان سيمې او ښارونه او ور پسې دبرنی تخارستـان يعنې بدخشان، دا د نجيبه ډېرو د کانونو او طبيعت د عجايبو وطن په باب مفصل معلومات وراندې شوي وو چې تکرار يې بې ضرورته دي او دا به کافي وي چې د پورتنيو مفرداتو يادونه د راتلونکي بحث د کړی او پيوند ورکولو پر شکل وگڼل شي دا دې د تخارستان د معرفي په لړ کې ښکتني تخارستان (قطغن) دا د نژدې ختيز مرواريد، د معرفی په پيل سره د هېواد د لرغونو ښارونو په باب بحث ته دوم ورکول کيږي.
ښکتنی تخارستان (قطغن) د نژدې ختيز مرواريد.
پخوا قطغن د افغانستان له اوو گونو ولايتونو څخه يو ولايت ؤ چې د ختيز طول البلد د ۶۸ – ۶۹ درجو او د شمالي عرض البلد د ۳۵ – ۳۸ درجو پـه منځ کې د افغانستان پـه شمال کې پروت دي. د امو

---

۱ کابل کالنی ۱۳۴۵، ۲۵۲ – ۲۶ مخ په حواله د افغانستان استحکامي کلاوې، حصارونه او بالاحصارونه، پوهنوال رازقي نريوال، ۳۰ – ۳۵ مخونه
۲ آريانا مجله، ۸ گڼه، ۱۳۲۳، ۴۵ مخ

سیند او د پامیر لوړه سطحه چې د افغانستان او تاجکستان تر منځ بیلوونکي کرښه جوړوي د هغې په وروستنۍ برخه کې موقعیت لري. قطغن پخوا د تخارستان په نوم یادیده او پر دې سربېره د قطغن مرکز د خان آباد ښار و بیا د څو کلونو راهیسې د بغلان ولایت مرکز وګرزید چې له کابل څخه ۴۴۰ کیلو متره لرې واټن لري او د ډېرې مناسبې او په زړه پورې آب و هوا لرونکي دی. ۱

په پخوانیو زمانو کې قطغن پر ښکتني طخارستان (سفلي) باندې هم شهرت درلود او په لرغونو آثارو کې هم په دې نوم ثبت دی. همدا اوس یې نوم په اصلي شکل (تخار) اړول شوی دی.

په تاریخي آثارو کې د قطغن پرته له پورتنیو شکلونو څخه د قطغن په شکل نه دی لیدل شوی. همدا راز قطغن په ځینو تاریخي اسنادو کې د لومړنی تالقان (موجوده تالقان یا تالیکان) په نوم او په ځینو نورو آثارو کې لکه د کابل مجلې د ۱۳۱۱ کال د دوهم کال د څلورمې ګڼې د خواجه حسن سفرنامه هندوکش ۱۹۳۳ د ډیلي چاپ د اردو ژباړې د لومړي مخ په حواله قطغن د قدغن په شکل هم ضبط شوی دی.

محترم استاد پوهاند اکادمیسین رشاد په دې عقیده دی او وایي: له کومه ځایه چې دا ښار په دې نوم تاریخي سابقه نه لري، له امکان څخه لیرې نه ده چې په دې سیمه کې د ترکانو د فیوډالي تسلط په وخت کې پرې دا نوم ایښودل شوی وي دا ځکه چې دا نوم د ترکي ژبې ریښې لري. ما هڅه وکړه چې د دې نوم د تسمیې د وجې په باب مستند معلومات پیدا کړم خو داسې اثر مې تر ګوتو نه کړای شو چې په دې اړوند یې راسره دا مرسته کړې وای. ښکتنی طخارستان (قطغن) د ماکس الیس لین، د هندوکش سفرنامې د عبدالصمد آصفي، د درې ژباړنې ۲۷ مخ له مخې قطغن د (قطغن مروارید شرق نزدیک) لقب ورکړ شوی دی.

ښکتني طخارستان دومره زیات تاریخي آثار نه لري، یوازې د هغه په درېو سیمو لکه کندز، قلعه زال او خوست و فرنګ کې یو شمېر لرغوني آثار لیدل شوي دي چې د وخت په تېریدلو هغه هم له منځه تللي دي او د دې تر څنګه د دې سیمو په اړه دومره کیندنې او څېړنې هم تر سره شوې نه دي. د قندز د ښار له پخوانیو دیوالونو څخه جوتیږي چې په لرغونو زمانو کې یې یو ستر مدنیت درلود او د معلوماتو له مخې دا ښار د طخارستان مرکز و چې زیاتې حوزې یې درلودلې. ۲

پښتو آریانا دایره المعارف، اووم ټوک په دې باب څه معلومات هم نه دي ورکړي یوازې د هغه ولسوالۍ یې لکه خواجه غار، رستاق، اشکمش، چاه آب، ینګي قلعه، فرخار او علاقداری یې لکه ینګي، چال، درقدو ورسچ او کلفګان یې معرفي کړې دي.

۱ قاموس جغرافیایي افغانستان، ۳ټ، او آریانا دایره المعارف، ۱۳۳۸، ۱۳۵ مخ
۲ قاموس جغرافیایي افغانستان، ج۳، ص ۱۴۴

**د ښکتني طخارستان ښارونه او تاريخي مطات:**

د تالقانو ښار:

که څه هم په تاريخي آثارو کې له څو تالقانو څخه يادونې شوي دي لکه زموږ په هېواد کې د جوزجانان (گوزگانان) تالقان، د بست او طخارستان تالقانونه او د ايران د اصفهان او د عراق تالقان دي، خو دلته د موضوع په اړوند چې په عمومي محاورو کې هم يوازنی شهرت لري هغه د طخارستان تالقان دي او لنډه ليکنه او څېړنه پرې کيږي.

د طخارستان طالقان چې د عربي مؤرخانو له خوا په دې شکل ثبت شوي دي د دې ايالت د کرسۍ والوالج (رستاق) په دوه منزلۍ او د بدخشان په درې منزلۍ کې موقعيت لري.

د طخارستان طالقان د قندوز په ختيز کې د فيض آباد د لارې پر سر پروت دي (تاريخ عباس اقبال، ۱۳۴، ۵۷ مخ په حواله) په يو بل روايت د طالقانو د ښار مؤسس (خوني) يا (خواني) هغه د طالقان – Talakan په شکل ضبط کړي دي. هيوان تسانگ چينايي زاير هغه د اسلام د ظهور په وخت کې د تالاکين – Talaken په شکل قيد کړي دي. ۱

دلته په دې مطلب تامل او سوچ په کار دي چې چيني زاير له کوم طالقان څخه يادونه کړې ده. خو د تاليکان د دې شکل له مخې په زياتره گمان سره دا تالقان د طخارستان تالقان نه دي، ځکه چې محمد عثمان صدقي د تالقانونو په هکله ليکي:

د تخارستان په ولايت کې له ښارونو څخه يو ښار تاليقان يا تاليکان دي چې په څلورمه هجري پيړۍ کې د دې سيمې له نفوسو څخه يو ډك ښار گڼل کېده او وايي چې يوه تجارتخانه يې درلوده او په يوه ساراکي چې له غره څخه يې د يو غشي د لگېدلو په اندازه واټن درلود پروت وو. په دغه زمانه کې د دې ښار مساحت د بلخ د ښار يو په دريمه برخه وو، دا سيمه يوه سمسوره او حاصلناکه سيمه ده.

د مستوفي په قول دې ځای زياتې غلې او ميوې درلودلې د طالقانو ښار يوه پخه کلا هم لرله.

علي يزدي هم په خپل کتاب (ظفرنامه) کې د تيمور د لښکر کشۍ د بهير د بيانولو په ترڅ کې له دې ځايه په تکرار سره يادونه کړې ده او دا ځای يې طالقان ضبط کړی دی.

البته ښايي په پام کې ونيول شي چې طالقان او طاليقان يو نه دي د طالقانو پخوانی ښار د اوسني طالقان له ښاره د شمال خواته يو آباد ښار وو چې آبادۍ يې د ۳۲ ميلو په اوږدوالي د امو درياب تر غاړو پرتې وې، د تالقان ښار د چنگيز د چپاوونو په ترڅ کې او رواخيست او خلك يې قتل عام شول نن دې ښار خپل اهميت له لاسه ورکړی دی. ۲

۱ آريانا مجله، ۶ مه گڼه، ۱۳۲۳، ۴۱ مخ
۲ آريانا مجله، ۸ گڼه، ۱۳۲۳، ۴۲ مخ

له پورتني خبرې څخه دا موضوع راڅرګندېږي چې پخوا د طخارستان طالقان موجود و، چې اوس يې نښه نښانه نه ده پاتې او د چنګيزي ناورين له امله (۶۱۷ هجري) لکه د ګوزګانانو طالقان د هغه له مستحکمې کلا سره له منځه تللي دي باید وويل شي چې د ګوزګانان د طالقان کلا په نصرت کوه ياديدله.

د چنګيزي ناورين را وروسته هم د تالقانو کلا جنګي موجوده وه خو بيا د امير دوست محمد خان په زمانه کې ورانه شوه چې تاريخي روايت يې په لاندينۍ توګه دي. هغه وخت چې د امير دوست محمد خان د واکمنۍ پر ضد د تخارستان او بدخشان په ولايتونو کې الي ګولې پېښې شولې د قطغن يو فيودال ميراتا لق خان (د پوهاند استاد رشاد له خولې اتالق يوه ترکي کلمه ده چې د شهزادګانو د استاد معنا لري) نومېده له دې وضعې څخه استفاده وکړه او د هغه ځای دا له ګوله کوونکو په مشرتوب راپورته شو، امير دوست محمد خان په ډېر جديت دا اغتشاشونه په اندراب، غوري او رستاق کې تر ۱۸۸۰ ميلادي پورې وځپل او د طالقانو جنګي کلا يې هم له خاورو سره خاورې کړه، البته دا کلا پرته د نصرت کوه له کلا څخه يو بله کلا وه.

په پورتني روايت کې دا سې ښکاري چې ممکن د چنګيزي فتنې راهيسې دا جنګي کلا سالمه پاتې وه او يا بيا وروسته جوړه شوې ده.

په تاريخي منابعو کې د طالقانونو په تېره بيا د طخارستان د تالقان په اړوند يادونې شته دي لکه چې اصطخري ۲۷۰ کال، مقدسي ۲۹۹ هجري کال د ګوزګانان د تالقان د ښار په خوا کې يو بل تالقان ته هم په اشارې سره ليکي:

طالقان را ذيل مرو رود ذکر می کند، اين طالقان که به فاصله سه مرحله از مرو رود و پارياب (يعقوبي له فارياب تر طالقانو پورې څلور مرحلې ليکي) واقع است، نبايد به تالقان دګر يکه در تخارستان جا دارد اشتباه شود. ۱

په يو بل روايت چې وايي طالقان د خان آباد له مربوطاتو څخه دي، اواره او پراخه سيمه ده. له طالقانه د ۲ - ۳ کروه په واټن د دې سمې کلي او کورونه پراته دي او پخپله د طالقان ښار ۱۵۰ کورونه لري.

د طالقانو ښار په اټکلي توګه ۳۰ دکانونه لري يو جومات او څلور کاروانسرايونه پکې شته دي.

په عمومي ډول د طالقانو په ۱۳ کليو کې ۶۰۳ کورونه د طالقان په شمال ختيځه برخه کې په ۲۲ کليو کې ۱۰۲۷ کورونه د لويديزې برخې په ۶ کليو کې ۲۳۰ کورونه په ختيزه برخه کې په ۹ کيلو کې ۶۰۰

---

۱ حدود العالم، مؤلف ګمنام، ص ۱۷۶ - ۱۷۷

کورونه او د جنوب برخي په ۹ کليو کې يې ۶۷۰۰ کورونه موجود دي. [1]

## د اندراب ښار:

د ښکتنی طخارستان له مهمو او مشهورو ښارونو څخه يو هم د اندرب ښار دي چې د خان آباد له مربوطاتو د خوست او فرنګ له محلاتو څخه شمېرل کيږي.

که د اندراب لغوي معنا وڅيړل شي نو اندر په دري کې داخل او آب د اوبو يا رود معنا ورکوي او په اصطلاح يوه سيمه ده چې د دري شکل لري او رود پـه کې بهيږي او تقريباً تګاب او نجراب تـه ورتـه مفهوم افاده کوي

اندراب يو تاريخي ښار دي او د نورو ځانګړتيا وو په اړوند په پورتنی اثر کې داسې معلومات ورکړ شوي دي:

اندراب د خان آباد متعلق د سمندر له تله يې لوړوالي ۵۶۲۰ فته دي او د ۳۶ کروه په واټن د خان آباد له ښاره ليرې موقعيت لري:

اندراب د خاص ستراتيژيکي اهميت او د طبيعي تدافعي استحکاماتو لرونکي دي لکه چې وايي: به جهت کار از آنقدر کار آمد است که اگر فوج قليل در آنجا مسکون بشد افـواج کثير را تـاب پيشقدمی به آنطرف نخواهد گذاشت.

اندراب ته نژدې خوست هم يو امن ځای دی چې يوازې له يوې خوا نه په غير له نورو سيمو سره لار نه لري او که چېرته لس تنه هلته سنګر ونيسي زر تنه ترې تيريدلی نه شي.

په اندراب کې ۴۱۳۷ کورونه وو، ۱۵۰ تنه وو د بنو د بازار دکانونه يې ۵۰ بابه او په ده صلاح کې ۶۰ دکانونه او دوه سرايونه يې هم درلودل.

په بنو کې د فصاحت په نوم يوه مدرسه، په سنګ بران کې د رياضت پـه نوم مدرسه، پـه ده اصلاح، شاسان او کشن آباد کې يې هم مدرسې موجودې وې اندراب ۱۴ کلي او ۳ سراجيه رباطونه درلودل لکه د نوبهار رباط د دشت شير او تل مير غازي رباطونه چې دا وروستنی رباط د اندراب يوه مشهوره تپه هم ده چې لوړوالي يې ۶۳۵۰ فته دي.

د اندراب له طبيعي بدايعو او عجايبو څخه يوه چينه ده چې د سراب پـه قشلاق کې موجوده ده اوبه يې ډيرې خوږې او د سماوار د اوبو غوندې په څلورو دقيقو کې د چرګې هګۍ پخوي.

په يوه بل روايت کې د اندراب په هکله داسې معلومات ورکړ شوي دي:

اندراب د دوشي د رود د جنوب ختيز د چيني پر سر پروت دي د اندراب ناوه د وزخاك تر درې پورې په جنوب او شمال کې تر خوست رسيږي.

---

۱ رهنمای قطغن و بدخشان، ۱۰۳ – ۱۰۷ مخونه

د اندراب رود او د هغه مرستيال د دې ناوې دوه رودګي دي.

د اندراب تاريخي اهميت په دې تکي کې پروت دي چې د پولي او اقتصادي موقعيت له مخې د ځو پيړيو په اوږدو کې دلته يوه ضرابخانه موجوده وه عباس، ساساني او غزنوي واکمنانو په دې ښار کې سکي وهلې. ۱

مؤرخانو او جغرافيا پوهانو هم د اندراب په باب ليکنې کړي چې د دې ښار لرغوني توب او اهميت په ډاګه کوي.

مؤرخين د اندراب پخواني نوم دراپسه **Drapsa** بولي دراپسا او يا (ادرسپا - **Adrespa**) د باختر له ښارونو څخه يو مهم ښار ؤ او ځينو ورته باميان ويلي دي (البته د مرکزي افغانستان د باميانو په مفهوم نه) او کله چې مقدوني سکندر له هندوکشه (پاروپامسيس) څخه راواوښت او درپسا ته ورسيد نو دا ښار د باختر په صفحه (ولايت) کې لومړی ښار ؤ. ۲

د حدود العالم مؤلف د اندراب په اړوند ليکلي دي:

اندراب يو ښارګوټي دي د غرونو په منځ کې، د کر کيلي او ډېرو غلو دانو ځای دی، دوه روده لري، هغه سپين زر چې له پنجشير او له جاريانه څخه تر لاسه کيږي دلته يې درهم و هي يعنې سکه کوي يې او پاچهان ورته د سلير ښار وايي.

اصطخري هم د اندراب په اړوند داسې تاييدي ليکنه لري:

اندرابه يو ښار دي د غره په يوه ښاخ کې موقعيت لري، له هغه ځايه چې نقره له جاريانه او پنجشير څخه استخراجيږي هغه ذره (ګرد) کوي دوه رودونه لري. يو د اندراب رود او بل د کاشان رود، باغ او زياتې ونې لري. (۲۱۹ مخ)

په تقويم البلدان کې په دې هکله راغلي دي:

په دارلمشترك کې راغلي دي چې اندراب د غزني او بلخ په منځ کې پروت دي کاروانونه له هغه ځايه کابل ته ځي.

اندراب ته نژدې د پنجشير غر دي چې په هغه کې د سپينو زرو کان دي صاحب اللباب وايي:

بلده کوچکی است نزديك اندراب از نواحی بلخ. ۳

هيوان تسانګ په خپلو يادښتونو کې اندراب داسې معرفي کړي دي، (ان-تا-لو-پو-**An-ta-lo-po**، يعنې اندراب چې د هماغه وخت د طخارستان د خان نشينو سيمو په جمله کې يې زښته زياته پراختيا

---

۱ شهرهاي آريانا، ۱۶ مخ

۲ هماغه اثر، ۴۸ – ۴۹ مخونه

۳ جغرافياي تاريخي افغانستان، مير غلام محمد غبار، ۵۳۷ مخ

درلودله لکه چې چاپیریال یې دري زره لي او د مرز چاپیریال یې ۱۴ – ۱۵ لي لیکلي شوي دي.

پورتنی مستند روایتونه په دې دلالت کوي چې اندراب نه یوازې یو مهم، بلکې زموږ د هېواد ډېر لرغوني ښار هم دي.

## د خان آباد ښار

د خان آباد ښار پخوا د قطغن او بدخشان یعنې طخارستان د نایب الحکومګۍ مرکز او د هغه هېواد له مهمو ښارونه څخه و، چې څلور خواوې یې په لاندني ډول ښودل شوي دي:

ختیز ته تالقان، شمال ته حضرت امام، لویدیز ته قندوز او تاشقرغان جنوب ته نهرین او اندراب.

خان آباد چې د کندز یوه ولسوالي ده د ختیز طول ابلد ۶۷ – ۶۹درجو ۲۶ – ۵۱ دقیقو ۱۳ – ۱۷ ثانیو او د شمالي عرض ابلد ۳۶ درجو ۲۷ – ۵۱ دقیقو ۲۴ – ۴۲ ثانیو تر منځ یوه سمسوره سیمه او د کندز لمر خاته، ته د ۲۵ کیلومترو په واټن موقعیت لري. د فرخار او خوست رود له دې ځایه تیریږي، د خان آباد ښار د کندز او بدخشان یو ستر تجارتي مرکز ؤ هغه سرك چې له کندز څخه بدخشان ته ورغزیدلي له خان آباده تیریږي. د خان آباد ښار او کابل تر منځ مسافه (۵۱۸) کیلو متره او له تالقانو څخه ۳۲ کیلو متره ده.

او د سمندر له سطحې څخه ۱۲۶۰ متره لوړوالي لري. ۱

خان آباد چې پنځه ګذره لري په هغو کې ۵۵۷ کورونه موجود دي او ۱۷۶ د مختلفو کسبونو دکانونه یې لرل دوه جماعتـه اوه حمامـه او ۱۹ کاروانسرایونه یې لرل د خان آباد د ښار ختیزې خواتـه ۱۱ کلي، شمال ته یې ۹ کلي او لویدیزې او جنوبي برخي تـه یې پنځه پنځه کلي پراتـه وو. خان آباد لکـه د قطغن غوندې دومره تاریخي سابقه نه لري او دا فارسي نوم دی او که په تحقیقي ډول یې د تسمیې وجه وپلټل شي لومړی په کار دي چې د خان آباد د کلمې تاریخي څیړنه وشي. د پورتنی آریانا دایره المعارف پـه ۷۹۵ مخ کې د خان آباد د کلمې په هکله داسې معلومات ورکړ شوی دی:

خان (ترکي لقب) او د قاغان مخفف دي چې په عربي او فارسي کې ورته خاقان وایي د (قان) او قاغان کلمې د میلادي اتمي پیړۍ د مخه دواړه په همدغه معنا په کارول کیدلي مګر د خان کلمـه د لومړی ځل لپاره په اسلامي دوره کې د هجري څلورمې پیړۍ په وروستیو وختونو کې په هغو مسکوکاتو چې ایلك خانیانو رواج کړل کارول کېده، په تېره بیا په پنځمه پیړۍ کې په دې کورنۍ پورې په اړوندو متنونو او نصوصو کې تر سترګو کیږي.

په مغولي دوره کې د قاغان او قاان کلمې د حاکم اعلی په معنا او خان د امپراطورۍ پـه ساحه کې د مستقل حاکم په مفهوم پیژندل شوي ده. همدا شان د خان ترکي لفظ لکه د ملك او شاه د عربي او دري کلماتو په شان د سلطان د لقب په مقابل کې د امیر د لقب په توګه کارول کېږ. پـه یو بل اثر کې د خان

۱ د آریانا دایره المعارف، ۵ ټوك، ۱۳۵۴ کال، ۷۹۵ مخ

کلمه په طخارستان کې دوو واکمنو کورنيو ته داسې انتساب ورکړی شوی دی... د ميلادي شپږې پېړۍ د نيمايي په شاوخوا کې د هياطله دولت او د فارس د ساسانيانو په يرغل سقوط وکړ او يا ترکان په طخارستان مسلط شول چې هغه وخت له ۲۷ ولايتونو څخه مشتمل و بار تولد د حبيب السير د ليکوال په قول د هجري ۳۱ کال (د حضرت عثمان (رض) د خلافت دوره، يعني د اسلام تر ظهور پورې د ترکانو په لاس کې ؤ. ۱ او کله چې په لسمه ميلادي پېړۍ کې چې د ازبکانو سلطنت ترقي وکړه او د نورو سيمو تر څنگ يې په تخارستان هم تسلط پيدا کړ او هم له دې جملې د ازبک خان پراخ ملک چې د امو سيند د دواړو غاړو په څو ولايتونو يې حکومت کاوه او د دې خان د حکومت مرکز د قندز ښار و له پورتينيو ځرگندونو څخه دا نتيجه اخيستل کېږي چې د خان د کلمې ريښه او په طخارستان کې د تورکان او ازبکانو واکمني دا احتمال قوي کوي چې د خان آباد ښار د دواړو يا د ازبک خان په زمانه کې، يعني د خان نشينو سيمو د ودانيو په جمله کې ودان شوی او د هغه د واکمنيو نيتې هم په پورته ډول ښودل شوي دي. لنډه دا چې پرته د پورتنيو معلوماتو نور داسې اسناد په لاس رانغلل چې په محقق ډول د خان آباد د ښار د تسميې وجه د جوړېدو او نور ځرنگوالي ترې وموندل شي خو محققه ده چې د دې ښار د نامه له مخې دا د خان نشينو يو ښار ؤ.

## د وزوالين (اشکمش) ښار:

اشکمش د تالقانو مربوط د ښکتنی طخارستان يو لرغوني ښار دي. چې په تاريخي دورو کې يې د وزوالين په نوم شهرت درلود. د دې ښار موقعيت د ختيز طول البلد ۶۹ درجو ۱۵ دقيقو او ۴۸ ثانيو او شمال عرض ابلد ۳۶ درجو ۱۷ دقيقو او ۷ ثانيو ۳۶ درجو ۳۲ دقيقو او ۶۸ ثانيو کرښو تر منځ د اشکاشم د سيند پر غاړه څه نا څه د خان آباد جنوب په ۳۰ کيلو مترۍ کې ښودل شوي دي. د اشکمش سيند د خوست او فرنگ له غرونو سرچينه اخلي او د اشکمش له سيمو څخه تر تېريدلو وروسته د تقريباً ۵ر۵ کيلو متره واټن تر وهلو وروسته لويديز استقامت ته د خان آباد په رود ورگډيږي دا يو سيلابي سيند دي او زياتره وچ وي، اشکمش د تيږو د سکرو کان لري. ۲

ښاغلي محمد عثمان صدقي هم د وزوالين د ښار په هکله يو څه تفصيلي معلومات وړاندې کوي او ليکي: اشکمش يو ښار دي چې د تالقان د رود د يو مرستيال رود پر غاړه پروت دي نږدې ۱۵ ميله مربع مساحت لري او د وگړو کسب و کار يې مالداری ده په تاريخي دوره کې دې ښار په وزوالين شهرت درلود يو شمېر اديبان او عالمان له دې سيمې راپورته شوی دی چې د بيلگې په توگه مونس بدخشي مشهور شاعر يادولای شو او حق لري چې اشکمش نه يوازې د طخارستان، بلکې د هېواد يوه علمي او

۱ جغرافياي تاريخ افغانستان. ۳۸ مخ

۲ پښتو آريانا دايره المعارف، ۲۵۲ مخ

فرهنګي بدایه سیمه وبلل شي لکه چې مولینا بدخشي د افغانستان د پنځلسمې پیړۍ نامتو شاعر هم د همدې ځای دی.

د وزوالین لرغوني ښار د مغلو د چپاوونو په وخت کې بیخي وران شو او لا تر اوسه پورې دیوې کنډوالي په توګه د هغه ننبې نښانې پاتې دي، تر څو چې په ۱۳۱۵ هجري لمریز کال دلته د یو عصري ښار بنسټ کیښودل شو او په اشکمش وبلل شو.

د وزوالین ښار په لرغونو زمانو کې په پاسنی طخارستان پورې تعلق درلود او تر یوې پیړۍ زیاته موده دمخه یې د ښکتنی طخارستان له مربوطاتو وشمېرل شو. مارکوارت اشکمش د لرغوني طخارستان د پایتخت په حیث ګڼلي دي. په چین کې چې کوم ښار ته (کین شیي- Kien-shhi) ویل کېده همدا د اشکمش ښار ؤ. د تالقان رود چې د کولفګان (کلفګان) او د فرخار له رودونو څخه تشکیل شوي دي او د دې رود د کینې غاړې یو لوی مرستیال د خوست، چال او اشکمش له رودونو څخه متشکل دي.

د چال سیمه چې اوس اشکمـــش سره یو ځای شوې ده د مالګې د لوی معدن په لرلو خاص شهرت لري.[1]

د نهرین ښار:

د نهرین ښار د ښکتنی طخارستان یو ښار او تاریخي سیمه ده، چال او اشکمش په کې شامل دي نهرین زیات قشلاقونه لري چې د نهرین په د ننه او شاوخوا کې پراته دي. پخپله د نهرین ښار ۱۰۰ کورونه لري.

د نهرین ختیزې سیمې په ۱۰ قشلاقونو کې ۱۲۹۷ کورونه.

- د شمالي سیمې په ۱۸ قشلاقونو کې ۱۱۰۴ کورونه.
- د لویدیزې سیمې په ۳ قشلاقونو کې ۱۱۰ کورونه.
- د جنوب سیمې په ۸ قشلاقونو کې ۵۹۲ کورونه شته دي او د چال او اشکمش په ۸ کلیو کې ۸۲۰ کورونه.[2]

د چال او اشکمش له ښارونو څخه یو ښار یون نومیده دا ښار د خوست چال او اشکمش د رودونو د یو ځای کېدو په ځای کې موقعیت لري چې د دې ښار ستراتیژیکي اهمیت په ګوته کوي.

د چاول ناوه چې د زیاتې مالګې درلودونکی ده خو د خوست یا خست د ناوې اهمیت چې چال ته نژدې ختیز او جنوب ته پروت دي د زیاتو لیارو د لرلو له کبله له هغه سره ننبلي.

د دې ښار استحکام او د هغه د فتحې ناشوني توب د خصوصیت له مخې پوره شهرت درلود د

---

۱ شهرهاي آريانا، ۱۲ مخ

۲ رهنماي قطغن و بدخشان ۳۴۳، ۳۳۵، ۱۳۸ مخونه

تاریخي روایتونو له مخې وایي چې د یون پاچا چې د خوست واکمن هم و او په اسانۍ سره یې کولای شول چې د ناوې په خوله کې د موقعیت له پلوه ورسیږي د یادونې وړ خبره دا ده چې د یون پاچا (تیوالدار) د ختان، ختلان امیر هم و او د کوکچې د حوزې سیمې له ختال څخه شمېرل کېدلې دختان ښاخ په بلخ کې هم پاچهي کړې ده. د چال او اشکمش او یون چې د نهرین له سیمو څخه شمېرل کېدلې د تر لاسه شویو مدارکو په استناد پیژندل شوې خو د نهرین په هکله تر دې زیات معلومات تر لاسه نه شول.

## خوست (خست) او فرنګ:

## (سیاه چاه)

خوست او فرنګ د ښکتنی طخارستان د اندراب له مربوطاتو څخه دي. د بحر له سطحې یې لوړوالي ۴۸۳۰ یا ۵۴۵۰ فته دي او تر ۲۷ زیات کلي لري.

پخپله خوست په یوه داسې ځای کې موقعیت لري چې څلور خواوې یې غرونو نیولي او پخپله په یوه تیته هواره سیمه کې پروت دي او فرنګ د سمندر له تله ۵۸۵۵ فته جګوالي لري او څکه د سیاه چاه په نوم یاد شوي دي.

شیرخان او خاوش له دې ځایه د ۱۷ کیلو مترو په اوږدوالي لرې پروت دي. ۱

وایي چې خوست او فرنګ د تالقانو ولایت یو حکومتي واحد دي او له دې نامه څخه یې څرګندیږي چې دا دوی سیمې د درو شکل لري، د خوست او فرنګ رودونه یې له منځه تیریږي او وروسته تر هغې چې د خپلې مجرا سیمې خروبې کړي د خان آباد په سیند ورګډیږي په ۱۰ کلیو کې ۱۶۱۰ یا ۲۵۰۰ کورونه لري.

خوست او فرنګ له خان آباد څخه نږدې ۱۱۶ کیلو متره او له تالقانو څخه هم همدغومره لیریوالی لري. ۲

د هېوان تسنګ په یادښتونو کې خوست د کوه زي -تو – Kouh-si-to په شکل لیدل شوي دي.

## کلفګان:

په تاریخي ځینو آثارو کې کلفګان ته لولفګان هم ویل شوي او یو تاریخي ځای دي او له تالقانو څخه د ۱۲ کروه په واټن لرې دي.

---

۱ رهنمای قطغن و بدخشان، ۶۱ – ۶۲ مخونه

۲ پښتو آریانا دایره المعارف، ۵ توك، ۸۵۹ مخ

**فرخار:**

فرخار په ځينو مدارکو کې د دخار په شکل ثبت دي د ښکتنی طخارستان د تالقانو مربوط دي.

**نمك آب:**

لکه چې له نامه څخه يې خرګنديږي دا سيمه د مالګې کان لري.

**غوري:**

غوري د بغلان مربوط له خان آباد څخه ۳۶ کروه لري موقعيت لري چې د سمندر له تله ۲۱۰۰ فته لوړوالي لري او دهنه غوري چې يو مشهور ځای دی لوړوالي يې ۲۵۰۰ فته دي.

**دوشي او کيله ګی:**

دا محلات د غوري ختيز ته پراته دي.

د بحر له سطحې ۴۳۲۰ فته لوړ دي او ۶ درې لري.

**سکلکند - Sakalkand:**

د بغلان او لولنج په منځ کې ښايي هماغه (اسکر – Askar) ذ بر فك د سيمې په مدخل کې پروت دي.

د سکلکند مشکله کلمه په عامه ژبه په اسکند تبديله شوې ده. ۱

**د بغلان (بغلانك) ښار:**

بغلان چې په تاريخي آثارو کې ورته بغلانګ او بغلونګ هم ويل شوي دي يو لرغوني تاريخي ښار دي او دا نوم د بيهقي د تاريخ په حواله د (بغولانګو د بغلان د لوی معبد له ډېر ليك څخه اخيستل شوي دي.

د بغلان ښار په ۱۳۲۲ هجري لمريز کال د طخارستان (قطغن او بدخشان) ولايت مرکز ؤ چې د کندز د جنوب په ۴۱ ميلي کې په يو پراخ ميدان کې پروت دي.

د بغلان ښار په تاريخي دورو کې ځانګړي شهرت درلود او د افغانستان د يو تاريخي ولايت مرکز ؤ.

د بغلان تاريخي نوم (بوهلای) او پخپله بغلان له همدې تاريخي نومه بدل شوي شکل دي.

شونګ تونګ (هيوان تسانګ) بغلان په فوك يلانګ- Po-Kia-long ليکلي او وايي چې بغلان په تاريخي دورو کې يو ودان ښار ؤ او مؤرخانو هغه کلتوري، تجارتي او صنعتي مرکز ياد کړي دي. ۲

د آريانا مجلې د ۱۳۲۲ کال د ۴ مې ګڼې په ۳۵ مخ کې هم بغلان د مرکزيت او د افغانستان د ډېرو ودانو سيمو په حيث ګڼل شوي دي.

۱ شهرهاي أريانا. ۵۷ مخ

۲ شهرهاي آريانا، ۲۷ مخ

اوس د بغلان د غوري له مربوطاتو څخه د بحر له سطحې ۲۰۶۰ فټه لوړ او د غوري سيند يې له منځه تيريږي په ۹ کليو کې يې ۲۱۴۶ کورونه موجود وو.

د تاريخي منابعو په حواله بغلان د تاريخي آثارو له پلوه يوه ډېره مشهوره سيمه ده.

د بغلان گرد چاپير يو شمېر تپې او ستوپې شته چې له دې جملې يوه د بغلان چم قلعه ده.

چم قلعه د تاريخي آثارو له مخې په هغه ځاى کې کشف شوې ده.

دا يو بل بودايي معبد دى چې د کوشانيانو د قلمرو په زړه کې پروت ؤ چم قلعه بغلان ته نږدې په ۱۰ کيلو مترۍ کې د اجمير د نهر د پاسه په مربع شکل چې هره ضلعه يې د ۱۰۰ مترو په اندازه ده موقعيت لري.

د دې تپې په جنوبي جناح کې يوه برامده گۍ ښکاري چې هماغه د چم قلعه نوم يې ځانته اختيار کړى دى. ۱

## پلخمري:

د پلخمري د نوم د تسميې مستنده وجه معلومه نه ده خو د سيمې د خلکو له خولې روايت دي چې دا نوم له دوو کلمو څخه مرکب دي (پل او خمري) وايي: چې په پخوانيو زمانو کې د مستو او شيدو له خمري څخه په لاس ته راغلو پيسو دا پل جوړ شو او د پل خمري نوم پرې کيښودل شو او بيا وروسته ورو ورو پلخمري شو خو څوك نه پوهيږي چې دا افسانه څومره حقيقت لري. ۲

## خنجان:

خنجان د اندراب مربوط او له خان آباد څخه د جنوب لويديز خواته موقعيت لري.

په ۶ قشلاقونو کې يې ۷۰۰ کورنۍ اوسيدلي، دا کلي له خنجان څخه ۱ - ۶ کروه ليرې پراته دي.

د اندراب رود د شمال په استقامت د يو کروه واټن په ليريوالى د اندراب غر (کون کاو) کې بهيږي او د جنوب خواته يې د هندوکش غر ؤ. له حکومتي مرکز څخه ۱۲ کروه مسافه لري.

د خنجان مشهوره دره د وليان دره ده چې د اولياوو مزارونه پکې پراته دي.

د کابل او قطغن ډېره نږدې لاره د خنجان او سالنگ له درې څخه تيريږي. ۳

## تاشقرغان-خلم:

لکه څنگه چې سمنگان او ايبك چې د يو تجارتي او مذهبي او سوق الجيشي ښار دوه نومونه دي په همدې ډول تاشقرغان او خلم هم د دغسې يوه ښار دوه نومونه دي تاشقرغان نن ورځ يو کوچني ښار دي

۱ مراکز آئين بودايي در افغانستان، محمد اسحق ابراهيمي، ۱۳۶۳، ۲۰۳ مخ

۲ آريانا مجله، ۶ گڼه، ۱۳۲۳، ۴۰ مخ

۳ رهنماى قطغن و بدخشان، ۶۶ - ۶۷ مخونه

چې په خاورین حصار (فصیل) ایسار شوی دی او پر یوې تجارتي لویې لارې باندې پروت دی، دې ښارګوټي ته نژدې د خلم لرغوني ښار موقعیت لري چې د میوه لرونکو باغونو لرونکي دي.

مقدسي خلم یو کوچنئ ښار یاد کړي چې په یو شمېر کلیو او لویو سیمو ایسار شوي دي او ښه آب او هوا لري.

د خلم ښار په ۱۸ مې پیړۍ کې ویجاړ شوي او اعلیحضرت احمد شاه دراني، تاشقرغان د خلم د اصلي ښار د جنوب د درې میلۍ په شاوخوا کې جوړ کړ او د خلم خلك ورته انتقال شول.

د تاشقرغان د ښا بازار د شمالي ولایتونو له مهمو بازارونو څخه دي په پخوانیو زمانو کې یې هم ډېر اهمیت درلود.

شونګ تونګ (هیوان تسانګ) د تاشقرغان له ښاره کتنه کړې ده او هغه یې د "هولن- Holin" یعنې هومن په نوم یاد کړي دي.

بودایي مذهب دلته پوره پرمختګ وکړ او دغه چینایي زایر د خپل مسافرت په مهال لس دیره او ۵۰۰ راهبان دلته استوګن لیدلي دي.

دا ښار د کندز او بلخ په منځ کې پروت دي او د ده په خوا کې د خلم پخواني ښار پروت دي علي یزدي پخپله سفرنامه کې له خلم څخه هندوکش ته د تیمور د پوځي سفرېرۍ په ترڅ کې هغه په سمنګان ضبط کړي دي.

حال دا چې سمنګان د خلم د رود په پاسنۍ ناوه او شاید د خلم د ایبك په منځ کې وي چې نژدې په ۴۲ میلي کې د بغلان لویدیز ته پروت دي. ۱

په پورتنی اثر کې زیاته شوې ده چې په تاریخي آثارو کې د خلم پخواني نوم (باندو بن - Bando bene) ثبت دي. وایي چې باندوبن یو ښار دي چې د (خوئیس- Khose) (خلم رود) په ختیزه غاړه کې چې یوناني مؤرخانو د مقدوني سکندر په واسطه د هغه فتحه لیکلې ده. (دغه اثر، ۲۲ مخ)

حدود العالم هم د خلم په اړوند یادونې لري او لیکلي یې دي:

خلم د بلخ او تخارستان په منځ کې په یوه سارا کې پروت دي چې د غره لمنې ته نژدې دي او یو رود لري او خراج (حاصلات) یې په اوبو دي.

د ډېرې کرکیلې او زراعت سیمه ده.

په یو بل روایت کې وایي: خلم د یوې درې په منځ کې پروت دي. بني تمیم (رض) عرب دلته مهاجر شوی ؤ.

---

۱ شهرهاي آریانا، ۴۰ – ۴۱ مخ، آریانا مجله، ۶مه ګڼه، ۱۳۲۳، ۴۰ مخ

حمدالله مستوفي ليکي:

خلم يو ښارګوټي دي، ختيز خواته يې درې سره نښتې محلونه دي او لويديز خواتـه يې درې سره جلا جلا محلې پرتې دي.

خلم د ساختماني شکل له مخې يوه مستحکمه کلا وه. ۱

په يـوه بل تـــاريخي سند کـــې خلم تـــه اورانوس ويـل شوي او پـه دې باب داسې ليکـــل شوي دي:

کنګهم د افغانستان له لرغونو ښارونو څخه له اورانوس د بکترا ښار له شاهي ښارونو څخه ګڼي.

بطليموس په خپل نګارستان کې په دې هکله داسې يادونه کړې ده:

دا ځای د دارګيدوس (خلم) درود خانې په غاړه او د زرليسپه جنوب ختيز کې قرار ورکوي.

اورانوس د سمنګان پخواني او مستحکم ښار ايبک تـه نژدې د خلـــم درود پر غـاړه موقعيـــت لري.

ځينې مؤرخان اورانوس ته خلم وايي، حال دا چې د خلم ښار دا يـو کراتيدس د ښار لـه هغو کنډوالو څخه عبارت دي چې هغه ايوکراتيدس د يونانيانو باختري مشهور پاچا آباد کړي ؤ او مقدوني سکندر د اورانوس ښارته نژدې يو پوځي ښار جوړ کړ چې د اورانوس په سکندريه يې شهرت پيدا کړ. ۲

بايد وويل شي چې د اورانوس په نوم يو ځای په بريکوټ کې شته چې کونړ تـه د مقدوني سکندر د سفربرۍ په بهير کې ترې يادونه شوې ده.

په يو بل روايت د خلم ښارته اون پايکال ياد (ايوکراتيديا) ښار هم ويـل شوي دي لکـه پـه دې روايت کې:

اون پايکال د باختريانه په ولايت کې يو ښار دي چې نمليک د ښار په شمال لويـديز کې پروت دي، د دې ښار کنډوالي او د پخوانيو آباديو نښې نښانې په دې دلالت کوي چې د يو ساعته لارې پـه مسافه دا ښار د نمليک له ښاره ليرې پروت دي.

د شمالي افغانستان د کتاب مؤلف (ايت) دلتـه د يو مهم ښار کنډوالي د يـو شمېر لويو او کوچنيو کورونو په شکل ليدلي دي او څرګنده ده چې په يوه زمانه کې د دفاع او ځانګړو تاسيساتو دا هر يو کور احاطه کړي ؤ.

يار تولد وايي:

احتمال لري چې دا ښار هماغه د (ايوکراتيدا) ښار دي چې پاچا ايوکراتيدس دا (دارګيدوس) د خلم د

---

۱ جغرافياي تاريخي سرزمين ها خلافت شرقي، ۴۵۴ مخ

۲ اريانا مجله، ۵ مه ګڼه، ۱۳۲۳ کال، ۱۷ مخ

رود په غاړه ودان کړ د يونانو باختري او بيا وروسته د دې وران شوي ښار پر کنډوالو باندې د خلم ښار آباد شو. ۱

## ايبک او سنی سمنگان:

سمنگان زموږ د هېواد له لرغونو ښارونو څخه يو مهم ښار دي چې د سوق الجيشي، اداري، کلتوري او مذهبي ملحوظاتو له مخې ډېر شهرت لري او همدا وجه ده چې سمنگان او ايبک لکه خلم او تاشقرغان تقريباً دواړه د يو ښار مفهوم افاده کوي او په زياتو تاريخي مدارکو کې ترې يادونې شوي دي.

ايبک د طبيعي موقعيت له مخې د خلم د سيند د منځنۍ مجرا پر غاړه د هندوکش د عمومي تيغې په شمال کې او د سيمه ييزو غرونو د فرعي ښاخونو په منځ کې پروت دي يا په بله وينا ايبک په غرنۍ سخته منطقه کې اونه د باختر په هواره جلگه کې، بلکې د دواړو په منځ کې موقعيت لري او له دې امله د آب او هوا او نباتاتو په اعتبار د دواړو سيمو مميزات لري.

ايبک په خپل جغرافيايي مناسب موقعيت (تير يا اوس) هميشه د بلخ له مهمو لارو څخه په يوه لاره باندې پروت دي.

ښکاره خبره ده چې د هندوکش، بند مخ په شمال يو شمېر تنگي لري لکه د تاشقرغان تنگي د شاديان تنگي او د بلخ آب تنگي چې هر يو يې د جلگې د دروازې په څېر تلقي کيداى شي.

د تاشقرغان تنگي چې د خلم له تنگي څخه عبارت دي، د خلم د سيند د اوبو په ذريعه پيدا شوي دي چې د زندان له تنگي څخه راوتلي دي او له ايبکو څخه تيرېږي.

د سمنگان د ښکاري نوي سرک په جوړېدو سره دې لارې خپل اهميت له لاسه ور نه کړ، بلکې لايې پسې شهرت او اهميت وموند.

ښکاري سرک چې نقليه وسيلې ورباندې تگ راتگ کوي د پلخمري او دهنه غوري او رباطك نه وروسته ايبکو ته رسيږي.

د ايبك د ښار مرکزي هسته نژدې يوه پيړۍ د مخه له يو لوی کلي څخه عبارت وه، سره د هغې ورانې او ويجاړې کلا او کاروانسراى چې د دوو پيړيو د مخه عمراني يادگار شمېرل کېده او نسبتاً تود او جم و جوش بازار يې درلود د باميانو او د تاشقرغان له لارې د کابل او مزار شريف له مهمو پړاوونو او منزلونو څخه بلل کېده.

د ښکاري درې طرحه کېدو او عمراني مفکورې د ايبکو مرکز ته څو کيلو متره سيمه ييز بدلون ورکړ او نوي ايبك د دې ناحيې د بودايي لرغونو آبداتو د شمال په دوه کيلو مترۍ کې واقع شوي دي.

د سمندر له سطحې څخه د ايبکو جگوالي له زرو مترو څخه زيات دي.

---

۱ پورتنی اثر، ۱۷ – ۱۸ مخونه

د ايبکو آب و هوا په زړه پورې او حاصلخيز ځاى دي، د ايبکو شفتالو او د ستاينې وړ دي. هغه موضوع چې د سياحت له پلوه د ايبکو د شهرت سبب شوې ده، هغه د دې ځاى د بودايي لرغونو آبداتو موضوع ده چې د (تخت رستم) له نامه سره کلکې اړيکې لري او د ايبکو د حکومتي مرکز څخه ۱۵۰۰ قدمه واټن لري. د ايبکو طبقات الارضي جوړښت لکه د باميانو غونډې د دې سبب شوي دي چې د دې سيمې بودايي پيروان په دې ځاى کې بودايي آبدات ايجاد کړي.

د ايبکو ځانګړې او وتلې مميزه له هغې لويې ستوپې څخه عبارت ده چې د يوې توټې تيږې نه تراشل شوي او په خپل نوعيت، تناسب او لويوالي کې د باميانو د لويې مجسمې په شان په بودايي عالم کې بې مثله او بې نظيره ده.

د موسيو فوشه په عقيده په تيرو کې د استوپو د تړلو او جوړېدو مفکورې که څه هم رواج درلود او تازه ګۍ يې نه لرله، مګر هندي استوپې ټولې کوچنۍ دي او معمولاً د معبدد ديوالونو په منځ کې بندي دي، يعني هغه وخت چې مهندسينو غوښتل چې د ننه په تيره کې يو معبد وتوږي نو د معبد له منځنيو ډېرو څخه به يې استفاده کوله او هغه به يې د استوپې په شکل ګرځولې، مګر د ايبکو استوپه د دې قضيې پر عکس ده او ډبرينه تپه د خپلو څلورو خواوو نه په جرتراشل شوي ده او هغه جربيا د طواف په دالان (دهليز) بدل شوي دي.

د ايبکو د ډبرينې احاطې لوړوالي تر ۸۰ مترو زيات دي. او پر هغې باندې د هماغه غره له تيږو نه د ځانته او سيدونکي راهب لپاره يوه کوچنۍ خونه تراشل شوي او جوړ شوې ده، چې لږ راښکته د استوپې د شمال خواته د ننه په بله غونډۍ او تپه کې چې شرقاً او غرباً پرته ده، يو قطار اتاقونه چې د معبد له مربوطاتو څخه دي کيندل شوي او يو اوږد دالان دا ټولې کوټې له يو بل سره نښلوي او دا ځاى تر همدې وروستيو کلونو پورې د غنمو د ګودام او طويلې او حتى د بازار په توګه استعماليده، دا سمڅې په مختلفو شکلو او تناسب عموماً ګردې کيندل شوي دي او دا لومړنۍ سمڅې دي چې په دې شکل دي او د هګۍ په شان (بيضوي شکل) ګنبدې لري چې د احاطې اوږدوالى يې ۷۵ – ۱۰ مترو ته رسيږي او د هغې ګنبدې په چت کې د نيلو فريو لوى (زرپانيزه) ګل مخ د ځمکې خواته غوړيدلي دي چې يو شمېر نور ډېر کوچني نيلوفرې ګلان ورځنې تيت و پرک شوي دي او د معبد د دروازې په مخکينۍ هغې کوټه کې چې ۶۰.۳ متره لوړوالي او ۵۲.۳ متره سور او ۹۵ سانتي متره ژوروالي لري د بودا ناسته لويه مجسمه جوړه شوې وه چې اوس يې څه پته نشته.

دوهمه سمڅه هم ګرده او مدوره ده او څلورمه سمڅه هم د لومړۍ سمڅې په تناسب وه څلور کنجه ده او پس له دينه يوه لويه پيل کيږي چې له نورو پنځو سمڅو څخه مرکبه ده او هرې يوې يې طاقونه، رواقونه او بيلا بيلې مجسمې درلودلې چې د وخت په تيريدلو سره ټولې ورکې او له منځه تللې دي.

لنډه دا چې ويل کيداى شي چې په ايبکو کې د لاري پر سر د يو بودايي مرکز د تاسيس د آبادۍ او عمران مفکوره د ننه په غره کې د دې ټولو آباديو سبب گرزيدلي ده هغه غونډۍ چې د مخه ترې يادونه وشوه سره د هغې د داخلي سمڅو د اصل معبد په بڼه او لويه ډبرينه استوپه د هغې استوپه شمېرل کېدله مگر دا خبره بايد هېره نه شي چې د موسيو فوشي په عقيده د آبادۍ دا ټولې نقشې په هغو علتونو سره چې دومره څرگندې او ښکاره نه دي د تکميل درجې ته نه دي رسيدلي.

فرانسوي عالم د هغو علتونو په جمله کې چې په استوپو کې د شق پيدا کېدل او دا عاني ورکوونکي مړه کېدنه هم ذکر کوي او د يفتليانو له قدرته لويدل هم په خورا قطعي صورت بولي او په دې حساب اټکل کېدلاى شي چې د ايبکو د بودايي ودانيو او عمراناتو مساله د مسيحي پنځمې پيړۍ په لومړۍ نيمايي کې ځنډيدلي ده بې د ايبکو له مرکز څخه له بودايي آبداتو څخه د هغه په گرد چاپير ځايونو او مربوطاتو کې نور شواهد هم شته چې ځينې د سمڅو او ځينې هم د غونډيو په بڼه ليدل کيږي چې دا دواړه د اسلام تر مخه د پخوانيو آباديو پاتې شونې او شواهد دي، يو له دې ځايونو څخه نن ورځ د دره گز په نامه يادېږي چې د ايبکو د شمال لويديز خواته او د بلخاب پاسنى مجرا ته نژدې پروت دي او هيوان تسنگ هغه مهال چې د بلخ آب له درې څخه تيريده يو ځاى يې د (کي –تحه- **Kie-Teha**) په نامه ياد کړي دي چې اوس هم دغه دره گز دي او اوس بودايي معبدونه يې دې ځاى ته منسوب کړي دي.

بل ځاى له رباطك څخه عبارت دي چې د دهنه غوري او ايبکو په منځ کې پروت دي او ۴۹،۱۳ کيلو متره له لومړي ځاى څخه او ۳۶ کيلو متره له دوهم ځاى نه فاصله لري. په رباطك کې د هغو غونډيو پاتې شونې شته چې په ښکاره توگه د دې سيمې پر پخوانيو ودانيو او آباديو باندې دلالت کوي او کوشاني مسکوکات له همدې ځاى نه تر لاسه شوې دي او د امير عبدالرحمن خان له آباديو او عمراناتو څخه هم د کلا او حصار بقاياوې تر اوسه پورې پاتې دي.

په (انجير دره) کې چې دا هم د رباطك د شمال لويديز په درې کيلومترۍ کې پرته ده په (سارباغ) او هغه غره کې چې سپين ښاخ (شاخ سفيد) نوميږي خورا مضبوطي کلاگاني موجودې وې چې په (رويې او مويې) کې چې له ملا او (دوشاپسند) څخه د خرم، سارباغ او زندان د درې (تنگي) له لارې ايبکو ته لاره تللې ده د ساساني منقوشو تصويرونو بقاياوې موجودې وې چې د نوشيروان د لور په نامه شهرت لري، نو په دې توگه څرگنده ده چې ايبك د افغانستان د تاريخ په بودايي دوره کې د مذهب او صنعت له پلوه خورا مهم مقام درلود چې له يوې خوا د باختر له جلگې څخه او له بلې خوا د هندوکش له درو څخه لارې ورغلي دي.

لنډه دا چې ايبك د باميانو غونډې د هندوکش يوه ستره نقطه وه چې مذهب او صنعتي ذوق له هغه ځاى نه د هندوکش دواړو خواوو ته خپرېده. بايد وويل شي چې د اسلامي دورو ځينو مدققانو ايبك د

سمنګان په نامه هم ياد کړي دي يا په بله وينا ځينو مدققينو له سمنګان څخه د ايبکو تعبير کړي دي. ۱

په پورتنيو پراخو معلومات کې چې د سمنګان (ايبکو) د مذهب او صنعت د څرنګوالي په هکله وړاندې شول ځينو نورو مؤرخانو هم د سمنګان په باب يو لړ يادونې کړي چې د موضوع د لا وضاحت لپاره يې اقتباس بې ګټې نه دي.

د حدود العالم مؤلف ليکي:

سمنګان يو ښار دي چې د غرونو په منځ کې پروت دي دا غرونه لکه رخام د سپينو تيږو غرونه دي په دې غرونو کې کوټې کيندلې شوي دي، دلته د ناستې ځايونه او کوشکونه او بتخانې دي.

د تقويم البلدان مؤلف د دې ښار په اړوند ليکلي دي:

په اللباب کې راغلي دي چې سمنجان (سمنګان) يو کوچني ښار دي د بلخ هغې خواته د تخارستان له مربوطاتو څخه دي. ۲

شونګ تونګ (هيوان تسانګ) په خپل کتاب کې له سمنګان څخه يادونه کړې او هغه يې د (سي-لو-مين-کين- Si-lo-min-kien) په نامه قيد کړي دي.

مقدسي سمنګان د خلم له ښاره لوی ښار بولي او زياتوي چې جامع جومات او اعلی ميوې لري.

مستوفي په اتمه هجري پيړۍ کې له دې ښار څخه د يو لوی وران شوي کلي په توګه يادونه کړې او وايي چې زياته غله، پنبه او انګور پکې کرل کيږي.

د سمنګان د ښار موقعيت بې له شکه همدا د ايبك محل دي چې د خلم په ډېره پراخه سيمه کې ډېره حاصلناکه او د ونو او باغونو په لرلو سره شهرت لري.

د سمنګان په سيمه کې د بودايي مذهب او نفوذ د دورې يادګارونه او زيات آثار پاتې دي چې دا آثار له هغو مغارو (سمڅو، غارونو) څخه عبارت دي چې (زهاد) او رهبانانو کيندلي او هغه خونې (بقعه) دي چې د هډوکو د ساتنې لپاره يې جوړې کړي دي.

علي يزدي هم د تيمور د پوځي سفر د بحث په ترڅ کې له خلم څخه د هندوستان د استقامت په بحث کې يادونه کړې ده ۳ چې د ايبك په بحث کې پرې خبرې وشوې.

پورتنی يادونې د آريانا مجلې ۸ ګڼه، ۱۳۲۳ کال په ۳۹ مخ کې کټ مت را اوړل شوی دی چې د مخه بيان شوي او تکراريدو ته يې اړتيا نه ليدل کيږي.

خو دلته د ايبك د ښار په اړه يو څو خبرې د دې بحث په باب د معلوماتو په زياتوالي کې ګټورې دي.

---

۱ پښتو آريانا دايره المعارف، ج۱، ۱۳۲۹، ۵۳۵ - ۵۳۶ مخونه
۲ جغرافياي تاريخي افغانستان، ص ۲۲۴
۳ شهرهاي آريانا، ۵۷ مخ

تاریخي اسناد ښیي ایبك یو ښار دي چې د باختر په ولایت کې موقعیت لري او په افسانو کې پوره شهرت لري. د ایبکو وادي د بحر له سطحې ۳۱۰۰ فته لوړه ده یوه حاصل ناکه سیمه ده.

د ایبکو په شاوخوا کې د بودایي آیین د یادگارونو د زیاتو کنډوالو پاتې شونې شته چې دا ټول د دې تاریخي ښار د لرغونتوب په مرکزیت دلالت کوي.

(تخت رستم) چې یوه مهمه تاریخي آبده ده همدلته موقعیت لري که د دې تخت مشخصه وښودل شي نو تخت رستم د یوې صفې په شکل دي چې گرد چاپیر ترې خندق کیندل شوي دي. د دې صفې دپاسه یوه کوټه ده چې ۲۱ فته لوړوالي لري او په مربع شکل له تیږې تراشل شوې ده.

د ایبکو نژدې او شاوخوا سیمه، حاصلناکه او سمسوره ده.

ایبك د کابل او مزار شریف د لویې لارې پر سر موقعیت لري او هغه ښار دي چې د سمنگان د ښار پر ځای جوړ شوي دي. ۱

## حضرت سلطان:

حضرت سلطان د سمنگان مربوط یو ښار دي چې د ختیز طول البلد په ۶۷ درجو ۳۸ دقیقو او ۲۶ ثانیو، ۶۸ درجو، ۱۲ ثانیو او د شمالي عرض البلد په ۳۶ درجو ۲۲ دقیقو، ۱۳ ثانیو ۳۶ درجو او ۳۷ ثانیو پر کرښو باندې پروت دي دا سیمه د سمنگان په شمال لویدیزه څنډه کې د کابل او مزار شریف د لویې لارې سره لگېدلې ده او څلور خواوې یې داسې ښودل شوي دي.

- شمال لویدیز ته یې خلم
- شمال ختیز ته یې سمنگان، ختیز او لویدیز خواته یې بیا هم د سمنگانو سیمې.

د حضرت سلطان زیاتې سیمې خاورنیې غونډۍ او للمي ځمکې دي په دې سیمه کې څو چیني شته لکه د گاکري د کلي چینه، د دولت آباد چینه، د خواجه پریشان چینه، د شلکتو چینه او د کوك بلاق چینه.

دا چینې له غرو او درو څخه راوځي او مربوطې سیمې اوبوي.

د حضرت سلطان مشهور غرونه لکه خواجه بغلانك غر، اق گومیت او اتم کوه د دې غره کوتل د اوغري کوتل په نامه یادیږي. ۲

---

۱ شهرهاي آريانا، ۱۸ مخ

۲ پښتو آریانا دایره المعارف، ۶ ت، ۷۴۲ – ۷۴۳ مخونه

## د تخارستان طبيعي عجايب

زموږ په ګران هېواد کې څه د طبيعي خلقت له مخې او څه د بشري شهکاريو له مخې يو زيات شمېر طبيعي عجايب او هنري بدايع شته دي چې په جهان کې يې سارى نه ليدل کيږي او که له واقعيته تير نه شو زموږ لرغوني هېواد د دې عجايبو او شهکارونو يو په زړه پورې کلکسيون دى. چې دا دي د يوې غوري نمونې په توګه د تخارستان او په خاصه توګه د بدخشان «بلخشان» د طبيعي عجايبو په هکله يو څه معلومات وړاندې کيږي.

د بدخشان د اندمين په سيمه کې يو طبيعي لوى حوض دى چې د جهيل بڼه لري ډېر پراخ او هوادار دى.

دا جهيل د څو درو په خوله کې چې اوبه ترې رابهيږي پروت دى. جهيل ډېر ژوروالي لري او د جهيل غونډې د يونيم کروه اوږدوالي او شپږ زره کرو پسور والي درلودونکي دى. جهيل ته چې چلاب وايي په دې سيمه کې يې يوه زړه وړونکي او په زړه پورې منظره تشکيله کړې ده. دا کول چې په خپل ذات کې د څو رودونو تم ځاى دى شاوخوا ترې د يو شمېر رودونو لړۍ پيل شوي دي لکه چې يوه برخه يې «بزاى ګنبد» او لنګر په استقامت او بله برخه يې د واخان د سرحد نه د کارخان خواته بهيږي او له «پنجه» نه بر د لوى پامير د سين سره يو ځاى کيږي او بيا خپل مسير ته د شغنان خواته ادامه ورکوي.

له دې جهيل څخه يو بل رود هم سرچينه اخلي چې منارونو ته ځي وروسته له هغې چې له مرغابه تير شي دور خوري د شغنانو يارکنګ او د امويه «کوکچې» سره يو ځاى کيږي. دا حوض په خپل ذات کې څکه د طبيعت له بدايعو څخه شمېرل کيږي چې د لوړو غرونو په منځ کې پروت دي او هيڅ تشيده او وچېده نه لري او د نورو رودونو سرچينه بلل کيداى شي، د بدخشان د ډېرو عجيبو جهيلونو له جملې نه يو هم هغه لوى جهيل دي چې د بدخشان د منارونو د حد بخشى د لاري پر سر چې له «آق سو» نه يې اوبه اخستلي دي، دا عجيبه جهيل د هيليو او قازونو هستوګنځي هم دي

### د نرس او شلك له عجايبو ډكه چينه:

د بدخشان د نرس او شلك د سيمو په منځ کې يو لويه چينه ده چې د يو هسي لوى ديګ بڼه لري چې ګويا اور ترې د لاندې بل وي او جوشيږي. خو خبره بل ډول ده که څه هم د دې چينې اوبه په ډېر جوش او خروش له ځمکې هواته د فوارې په شکل پورته کيږي مګر بيا هم اوبه يې سړې او د سودا غونډې مزه لري او هم يو څه د ګرکرد بوى ورکوي.

کله چې د دې چينې اوبه په ګيلاس کې واچول شي نو د سودا غونډې سوزنك وهي او په ځوبښ راځي او د ګيلاس غاړو ته سور رنګ ورکوي.

دا چينه چې د يو رودکي په شکل په بهيدو راځي د خپل مسير د غاړو تيږې او خاورې لکه زنګ

ګلنار کوي.

د بدخشان د سرحد په سيمه کې يوه چينه شته دي چې اوبه يې تودې دي.

## د اورګند او پګش چينه:

د بدخشان د اورګند او پګش د سيمو په منځ کې يوه موسمي چينه شته چې په خاص ډول د سنبلې او ميزان په مياشت کې له شګو راوځي که څه هم اوبه دومره يې تودې نه دي خو بيا هم څوک پکې تر پنځو دقيقو پورې لاس نيولی نشي.

پرته له دې مياشتو دا چينه ورکيږي او ور سره د چينې د محل د شګو تودوښه هم له منځه ځي.

## د بابا تنګي ډيره توده چينه:

د بابا تنګي په سيمه کې کله چې له روده سرې پورې وځي يوه داسې له عجايبو ډکه چينه مخې ته راځي چې اوبه يې ډيرې زياتې تودې دي، دومره زياتې چې د چرګې هګۍ په دريو دقيقو کې پخوي.

## د يماق او چلق عجيبه چينه:

د حد بخشي د منارونو څخه دوه کروه ليرې د يماق او چلق په سيمه کې يوه چينه ده چې د چودني ديګ په شان ښکاري او اوبه يې بيخي سړې دي خو کله چې يې اوبه له دغه ديګه راوبهيږي، څو ګامه وړاندې په يوه سخته تيږه بدليږي.

دې چينې ته نژدې يوه بله چينه ده کله چې سړې د يوه شنې رنګې مغارې نه تير شي او يوې غونډۍ ته ور پورته شي هغه تر سترګو کيږي دا چينه د ور سره نژدې يادې شوې چينې برعکس تودې اوبه لري او د ځوښ په حالت کې ده، د غرڅه لکۍ پرې د جنډو په عنوان ځړيدلي دي.

په دې برخه کې دوې نورې چينې هم شته دي چې اوبه يې تودې دي او تر بهيدو وروسته دواړه په تيږو بدليږي او دا دواړه چينې د يخمير په نامه ياديږي همدا شان د سرشح په خواجه جرغاتو کې يوه عجيبه چينه چې اوبه يې لکه فواره په شدت له مځکې آسمان ته پورته کيږي هم شته.

## د اندراب له اعجازه ډکه چينه:

په قطغن کې د اندراب د طبيعي بديعو له جملې نه يوه عجيبه چينه ده دا چينه د سراب په قشلاق کې موجوده ده د دې چينې اوبه ډيرې خوږې دي او د سماوار د جوشيدونکو اوبو غوندې ګرمې دي چې د ۴ دقيقو په موده کې د چرګې هګۍ پخوي.

د شاخدره او بارتنك ولاړې اوبه:

د بدخشان د جهيلونو په ډله کې يوه لوی جهيل شته دي چې له ۳۰ - ۴۰ کروه پورې د مساحت درلودونکي دي.

په سرشح کې د پورتني ياد شوي چيني دوې نورې چينې چې د دوارو اوبه ګرمې دي هم شته دي، د دې چينو اوبه چې څو قدمه وړاندې وبهيږي اوبه يې په ژيړه او سپين رنګه تيږه بدليږي او بله يې لکه تيږه په ژيړ قير اوړي او خوند يې لکه سودا دي د دې چينې دوارو خوا ووته شنه وابنه ښکاري.

د دې دوارو چينو له نژدې له غره نه رنې او خوږې اوبه راڅخيږي چې په حقيقت کې د يو په زړه پورې ځروبې ښه لري.

## د خارجين لوی ډنډ:

دا جګ دره په سيمه کې يوه قشلاق چې خارجين ورته وايي هغه د ۱۲۹۶ مترو په لوړوالي يو سخت غاښي لري، د دې غاښي لاندې يو ډنډ دی چې ګرد چاپير يې ډېر شفاف دي، له خواوشا زياتې اوبه ور پکې ور توئيږي د دې اوبو د سرچينې هيڅ پته نه ښکاري دا لوی ډنډ د «بدري جمال» په نامه په محلي افسانو کې لکه د «بدري جمال ښاپيرۍ» په کيسه کې فلکلوريکې شهرت لري.

د تخارستان د ولارو اوبو، لويو ډنډونو او بې نظيرو عجيبو چينو شمېر په دې نه شي محدود يدلای او بې له دې ښه نور هم داسې طبيعي مظاهر شته چې ليدنه يې سړی د لوی خدای (ج) معجزه ناك خلقت ته حيرانوي بايد وويل شي چې دا ډول معجزه آسا طبيعي مظاهر په نورستان کې هم په زيات شمېر ليدل کيږي لکه د ديوانه بابا د تودو اوبو چينه د پورتنيو چينو په منځ کې داسې ډيري چينې هم شته دي چې د هغو اوبو څخه د ځينو ناروغيو د معالجې د پاره د يوې طبيعي پديدې په توګه کار اخيستل کيږي.

د تخارستان د پورتنيو طبيعي عجيبو پديدو په څنګ کې ځينې بوټې هم شته چې د هغوی نه يو ډول د غاټولو سپين ګل دی چې د پيازو په شان سټه لري، د هغه ځای اوسيدونکي هغه راوباسي جوشوي يې اوبه يې له پوټکي زيبښي هغه سټه ټکوي او د نشايستې غوندې شکل نيسي بيا دا نشايسته په شيدو کې جوشول کيږي او بالاخره يو ډول خواږه ترې لاسته راځي چې د شير برنج او شيدو غوندې خوند لري. د تخارستان په غرنيو سيمو کې ډېر داسې بوټي هم موندل کيدای شي چې د هغو په واسطه ځينې ناروغۍ معالجه کيږي لکه چې په ډېر ساده ډول د ريزش او محرقې د تداوۍ د پاره باقلي په آش او شړومبو کې پخوي او استفاده ترې کوي. د تخارستان د اقليمي نادرو مظاهرو څخه د بدخشان د زيباك اقليمي شرايط دي يعنې څه رنګه چې د دې سيمې هوا ډېره سړه ده په اوړي او ژمي کې سخت شمال لګيږي.

دلته د ورځې له ۱۲ بجو نه د شپې تر ۱۲ بجو پورې دا شمال دوام کوي او د ژمي چې هر څومره واوره و وريږي نو د دې سخت باد د لګيدلو له کبله هغه واورې تيتيږي او پر ځمکه نه پايي.

# پایلې او وړانديزونه

«د افغانستان لرغوني ښارونه او د تاريخ پاڼې» چې د مخه په متفرق ډول د هيواد ورځپاڼې له خوا چاپ شوي دي په حقيقت کې د لرغوني افغانستان، آريانا، خراسان او ګندهارا د ښارونو او سيمو د فرهنګي او تاريخي ځانګړتياوو او ښيګڼو وياند ه او مستند معرف او زموږ د نيکه ګانو د فرهنګي، علمي، مذهبي، رزمي او هنري نوښتونو، قهرمانيو او کارنامو يو انکار نه منونکي ممثل ګڼل کيداى شي، چې په عمده او مجموعي توګه يې په محتوياتو کې لاندنيو ځانګړتياوو ته خورا مهم ځاى ورکړ شوي دي:

۱- د ښارونو جغرافيوي موقعيتونه او تاريخي اهميت.

۲- د ښارونو تدافعي او سوق الجيشي ارزښت.

۳- د ښارونو د تسميې وجه او د جوړېدو نېټې.

۴- استحکامي کلاګانې او د هغوى عمراني او تدافعي څرنګوالي چې په ترکيب کې يې کهندژونه، شارستانونه، بالاحصارونه، حصارونه، ارګونه، مانۍ، شاهبرجونه، برجونه او نور تدافعي تاسيسات شامل دي.

۵- د ښارونو او مستحکمو کلاګانو عمومي دروازې، منارونه او سرايونه او د اوبو زيرمې.

۶- د مؤرخانو او جغرافيا ليکونکو په آثارو کې له دې ښارونو څخه يادونې.

۷- د ښارونو لقبونه او توصيفي نومونه.

۸- د ښارونو او سيمو تاريخي او د مستظرفه صنايعو نمونې.

۹- د ښارونو ځينې فرهنګي او تاريخي پيښې.

۱۰- طبيعي عجاي او د طبيعي بډاينو زيرمې.

۱۱- او تر دې ټولو خورا ارزښتناکه د بحث وړ موضوع د کوشاني د غوړېدلې دورې پر تيره بيا د ستر کوشانشاه کنشکا د ځلاندې دورې د مدنيت د عروج تر خاورو لاندې شوې فرهنګي او کلتوري زيرمې او په يو شمېر کتيبو او مسکوکاتو، افزارو د لوښو کې د هغې د برم او د بډبې له وياړه ډکې بيلګې د خورا لوړ مقام لرونکي دي.

زما په آند به راسره درانده پوهان او د مطالعې ليوالان هم عقيده دي چې د ګوتو په شمېر په دې محدودو پاڼو کې د لرغوني افغانستان چې تر ۵۰۰۰ زرو زياته تاريخي لرغونتيا لري د هغه د زياتو نامتو او تاريخي ښارونو او سيمو په باب ليکنه، څېړنه، څه عادي کار نه وي او په دې برخه کې زما دا علمي، تحقيقي هلې ځلې يو ازې په خروار کې د پونۍ له ريشلو څخه به بل مفهوم و نه لري.

او د دې تر څنګه به د دې اثر دغه محدود معلومات يوازې د يو کوټلي مؤخذ په توګه محترمو محققانو او پوهانو ته د دې امکان او پته په لاس ورکړي تر څو چې په اسنادي او يا ساحوي څېړنو کې ترې يو څه ګټه واخستلای شي.

زه د دې اثر د کمزورو اړخونو هغه چې له يوې خوا د اسنادي څېړنو او له بلې خوا د ضروري مؤخذونو په واک کې د نه درلودلو له مخې ورته متوجه دي دومره ويلای شم چې له نورو لاملونو څخه د اسنادي څېړنو په وجه زما ناچاري ده. ځکه اسنادي څېړنې د ساحوي څېړنو غوندې مستندې او رښتينې نه دي او خامخا پکې نيمګړتياوې موجود وي.

دا يو عيني واقعيت دي چې زموږ د تاريخي هېواد لرغوني ښارونه او سيمې د خورا پريمانو فرهنګي او کلتوري او مدني بډاينو سرشاره زيرمې لري او دا ټولې زموږ د وياړلی هېواد د حماسو او د وياړونو لاملونه دي، خو متاسفانه زموږ زيات شمېر هېوادوال او حتی لوړ کچې کسان ترې بې خبره او بيخي بيګانه دي او دا موضوع ده چې يې هغوی د هېواد د راتلونکو مقدراتو او د لرغوني تاريخي له وياړنو څخه يې بې تفاوته کړې دي.

زه د دې اثر په ليکلو کې د هېواد د هغو پوهانو او مؤرخانو څخه بايد په پوره درناوی يادونه وکړم چې هغوئ تر خپلې وسې پورې د دې ښارونو او سيمو او د هغوی د کلتوري ميراثونو په معرفي کولو کې د قدر وړ زيار ايستلی او تلپاتې آثار يې راپرېښې دي، او دا دې ماته يې د دې امکان را په برخه کړ چې د هغو په رڼا کې مې دا اثر وليکلای شو.

بايد اعتراف وکړم چې زه مې له دې کاره راضي نه يم نو د ښاغلو پوهانو او محققانو څخه په پوره ارادتمندۍ هيله کوم چې زما د دې اثر د نيمګړتياوو په ليرې کولو کې له يوې خوا او د هغه د غنامندۍ په برخه کې له بلې خوا لکه چې ښايي خپله ونډه واخلي.

*په درنښت*

*ليکوال*

## اخځليکونه


۱- آريانا دايرة المعارف، ټ۲، دايرة المعارف ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۳۲، کابل

۲- آريانا دايرة المعارف، ټ۳، دايرة المعارف ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۳۷، کابل

۳- آريانا دايرة المعارف، ټ۴، دايرة المعارف ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۴۴، کابل

۴- آريانا دايرة المعارف، ټ۵، دايرة المعارف ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۴، کابل

۵- آريانا دايرة المعارف، ټ۶، دايرة المعارف ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۵، کابل

۶- آريانا دايرة المعارف، ټ۷، دايرة المعارف ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۵، کابل

۷- آريانا مجله، ۱۳ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۱۰، کابل

۸- آريانا مجله، لومړۍ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۲۳، کابل

۹- آريانا مجله، ۱۲ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۲۳، کابل

۱۰- آريانا مجله، ۵ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۲۳، کابل

۱۱- آريانا مجله، ۷ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۲۳، کابل

۱۲- آريانا مجله، ۸ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۲۳، کابل

۱۳- آريانا مجله، ۱۰ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۲۳، کابل

۱۴- آريانا مجله، ۹ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۲۸، کابل

۱۵- آريانا مجله، ۳ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۳، کابل

۱۶- آريانا مجله، ۲ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۶، کابل

۱۷- آريانا مجله، ۲ گڼه، تاريخ ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۶۲، کابل

۱۸- ابراهيمي، محمد اسحق، مراکز مهم آئين بودائي در افغانستان، مؤسسه طبع کتب، مطبعه دولتي، ۱۳۳۶، کابل

۱۹- ابو زيد احمد بن سهل بلخي، صورت الاقاسيم، (اشکال البلاد يا تقويم البلدان، تاليف،

۳۰۸ هـ.

۲۰- اداره مرکزي احصائيه، اتلس محلات افغانستان، ج۳، ۱۳۵۳، کابل.

۲۱- اداره مرکزي احصائيه اتلس محلات افغانستان، شماره ۷، کنرها، ۱۳۶۴، کابل

۲۲- اسلامي دايرة المعارف، ۱۰۴۹ مخ

۲۳- اسفزاى معين الدين محمد زمچي، روضات الجنات في اوصاف المدينه هرات، ۱۳۳۸، تهران

۲۴- اصطخري، ابو اسحق ابراهيم بن محمد، المسالك و الممالك، تهران

۲۵- الهروي، سيف بن محمد بن يعقوب، تاريخنامه هرات، مؤسسه انتشاراتي خيام، ۱۳۵۲، ايران

۲۶- بار تولد، جغرافياي تاريخي ايران، (ترجمه حمزه سرداد، داور)، ۱۳۰۸، تهران

۲۷- بويلي ميجر، د افغانستان تاريخ، ژباړه منشي احمد جان، ۱۹۳۰ ميلادي

۲۸- بيهقي، خواجه ابوالفضل محمد بن حسين، تاريخ بيهقي، کميته طبع کتب، دولتي مطبعه، ۱۳۶۴، کابل

۲۹- پژواك، عتيق الله، غوريان، انجمن تاريخ افغانستان، ۱۳۴۵، کابل

۳۰- پنجشيري، عزيز احمد، جغرافياي تاريخي غور، انتشارات پوهنتون کابل، مطبعه پوهنتون، ۱۳۶۰، کابل

۳۱- تاريخ افغانستان، ج۲.

۳۲- تاريخ زبان فارسي، ج۱.

۳۳- تازه، سميع الله نورستاني، ريشه هاي تاريخي و فرهنگي نورستان، آمريت فرهنگ وزارت اطلاعات و کلتور، دولتي مطبعه، ۱۳۶۷، کابل

۳۴- جلالي، علي احمد، مطالعه تاريخ افغانستان از نگاه عسکري، ج اول، وزارت دفاع، مطبعه اردو، ۱۳۴۲، کابل

۳۵- وکيلي، پوپلزائي عزيز الدين، غزنه در دو قرن اخير، طبع کتب، مطبعه دولتي،

۱۳۵۶، کابل.

۳۶- جلالي، غلام جیلاني، غزنه د غزنویان، موسسه، موسسه طبع کتب، دولتي مطعه، ۱۳۵۱، کابل.

۳۷- جوزجاني، ابو عمر منهاج الدین عثمان بن سراج الدین، طبقات ناصري، ج۱، ۱۳۴۲.

۳۸- حبیبي، عبدالحی، تاریخ افغانستان در عصر گورگاني، ۱۳۴۱

۳۹- حبیبي، عبدالحی، تاریخ مختصر افغانستان، ج۲، انجمن تاریخ، دولتي مطبعه، ۱۳۴۹، کابل

۴۰- حبیبي، عبدالحی، پنځوس مقالې، د ښوونې او روزنې مطبعه، ۱۳۶۲، کابل

۴۱- حبیبي، عبدالحی، د افغانستان لنډ تاریخ، ژباړه بینوا، دولتي مطبعه، ۱۳۴۶، کابل

۴۲- حیات، محمد حیات، حیات افغاني ټ۱ (ژباړه فرهاد ظریفي) سرحدونو وزارت، دولتي مطبعه، ۱۳۷۰، کابل

۴۳- رازقي نړیوال، د افغانستان استحکامي کلاوې، حصارونه او بالاحصارونه، میوند مطبعه، ۱۳۸۳، کابل

۴۴- رازقي نړیوال، د لرغوني غور استحکامي کلاوې، بیهقي موسسه، دولتي مطبعه، ۱۳۸۴، کابل

۴۵- رازقي نړیوال، لرغوني او اوسنی کونړ، وزارت دفاع، اردو مطبعه، ۱۳۸۴، کابل

۴۶- رښتیا، سید قاسم، افغانستان په نولسمه پیړۍ کې، دولتي مطبعه، ۱۳۴۱، کابل

۴۷- رهنمای قطغن و بدخشان، برهان الدین کشککي په زیار ایستنه، طبع ۱۳۰۲، کابل.

۴۸- ساد، خیر محمد، لرغوني آریایان، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۶۴، کابل

۴۹- سیستاني، محمد اعظم، سیستان سرزمین ماسه ها و حماسه ها، اکادمي علوم، دولتي مطبعه، ۱۳۶۶، کابل

۵۰- سیفزی شهزاده، مدنیت غوري در افغانستان، پوهنځي ادبیات پوهنتون کابل، ۱۳۵۵، کابل

۵۱- شورماچ، محمد اکبر، جغرافياي عمومي افغانستان، انتشارات زوري، ۱۳۵۰، کابل
۵۲- صدقي، محمد عثمان، نگاهي بر کابلشاهان، ۱۳۵۷، کابل
۵۳- صدقي، محمد عثمان، شهرهاي آريانا، موسسه طبع کتب بيهقي، مطبعه دولتي، ۱۳۵۴، کابل
۵۴- ظفر، کاکاخيل ژباړه سيد بهادرشاه، پښتانه د تاريخ په رڼا کې، يونورستي بك، ۱۳۴۸، پشاور
۵۵- عطائي، محمد ابراهيم، د کابل پر تاريخي جغرافيه تقريظ، د افغانستان د علومو اکاډمي، دولتي مطبعه، ۱۳۴۶، کابل
۵۶- عطائي، محمد ابراهيم، د پښتونستان مساله د حق خود اراديت په رڼا کې، پوهنې مطبعه، ۱۳۴۸، کابل
۵۷- غبار، مير غلام محمد، جغرافياي تاريخي افغانستان، موسسه طبع کتب بيهقي، دولتي مطبعه، ۱۳۶۸، کابل
۵۸- غبار، مير غلام محمد، افغانستان در مسير تاريخ، موسسه طبع کتب بيهقي، دولتي مطبعه، ۱۳۴۶، کابل
۵۹- غبار، مير غلام محمد، افغانستان و نگاهي به تاريخ آن.
۶۰- فضل احمد، رهنماى افغانستان، شماره ۱۲، مديريت عمومي نشرات، رياست مستقل مطبوعات، مطبعه عمومي، ۱۳۲۸، کابل
۶۱- کريمي، الحاج شير محمد، ژباړه پټانز، دانش کتابخانه پشاور، ۱۳۷۸.
۶۲- کابل کالنۍ، ۱۳۴۵
۶۳- کهزاد، علي احمد، افغانستان در پرتو تاريخ، انجمن تاريخ، مطبعه دولتي، ۱۳۴۶، کابل
۶۴- کهزاد، علي احمد، بالاحصار کابل و رويدادهاي تاريخي آن، ج۱ مطبعه دولتي، ۱۳۳۶، کابل
۶۵- کهزاد، علي احمد، از سروبي تا اسمار، مطبعه دولتي، ۱۳۳۳، کابل

۶۶- کهزاد، علي احمد، د افغانستان پخواني تاريخ، ج۱، انجمن تاريخ، مطبعه دولتي، ۱۳۴۴، کابل

۶۷- لسترنج، جغرافياي تاريخي سرزمين هاي خلافت شرقي، ۱۸۸۰م، ايران

۶۸- مير حسين شاه، ژباړه حدود العالم مولف گمنام، پوهنځي ادبيات، مطبعه پوهنتون کابل، ۱۳۴۲، کابل

۶۹- مؤلف نامعلوم، تاريخ سيستان، تاليف ۴۴۵- ۷۲۵ هجري شاوخوا

۷۰- مستوفي، حمدالله قزويني، نزهت القلوب، تاليف ۷۴۰ هجري

۷۱- مؤلف... مجمل التواريخ و القصص، تاليف ۵۲۰ هجري، طبع ۱۳۱۸، تهران و قاموس جغرافياي افغانستان، ج۳

۷۲- هوتك، محمد بن داود، پټه خزانه چاپ دوم، دولتي مطبعه، ۱۳۳۹، کابل و اسلامي دايرة المعارف، ۱۳۴۹ ميلادي

۷۳- کابل مجله، ۵ گڼه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۱۰، کابل

۷۴- کابل مجله، . گڼه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۱۶، کابل

۷۵- کابل مجله، . گڼه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۱۸، کابل

۷۶- کابل مجله، ۱ گڼه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۳۹، کابل

۷۷- کابل مجله، ۵ گڼه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۳۹، کابل

۷۸- کابل مجله، ۴ گڼه، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۵۵، کابل

۷۹- ننگرهار مجله، ۲ گڼه، مديريت مطبوعات ننگرهار، ۱۳۲۱

۸۰- او زما متفرق ياددښتونه.

# د لیکوال لنډه پیژندنه



نوم او تخلص: محمد صدیق "رازقي نړیوال"

د پلار نوم: ملک عبدالرزاق

د زیږیدلو ځای او اټکلی نېټه: د کونړونو بر نرنګ، ۱۳۲۰ هـ م.

علمي رتبه: پوهاند

لومړنۍ زده کړې: په خصوصي توګه، نظم او متداوله فقه او په رسمي توګه د نرنګ په لیسه کې شپږم ټولګي څخه فراغت

بکلوریا: حربي ښوونځی

لیسانس: حربي پوهنتون

او د ژورنالیزم شپږ میاشتنی کورس

ادبي او فرهنګي سابقه: له ۱۳۲۹ کال راهیسي

دندې: د پوځي مسلکي دندو سربیره، د مطبوعاتو په برخه کې او هم د کیمیا او ګاز او پښتو ژبې استادی په بیلابیلو ادبي، فرهنګي، ژورنالیستي، طبي، نظامي، دیني، تاریخي، فلسفي، فلکلوریکي، علمي، تحقیقي، او داسې نورو زمینو کې په عمومي ډول د

لاندنیو اثارو لیکوال دی:

چاپ شوي کتابونه: پنځه توکه

ژباړلي کتابونه: پنځه توکه

په اهتمام چاپ شوي کتابونه: دوه توکه

ناچاپ شوي کتابونه: د ۶۰ توکو په شاوخوا کې

ناچاپه رسالې: لس توکه

د هېواد په مطبوعاتو کې بیلابیلې مقالې او شعرونه: تر ۲۵۰۰ عنوانو مطالبو زیات

ـ له ۱۳۳۷ کال راهیسې په ادبي او فرهنګي مشاعرو او محفلونو کې ګډون

ـ له ۱۳۵۶ کال راهیسي په زیاترو علمي، تحقیقي، سیمینارونو کې فعاله برخه اخیستنه.

ژبې: په پښتو او دري ژبو بشپړه پوهیدنه او د عربي، انګلیسي او روسي سره آشنایي.

وروستنۍ پوځي دنده: د حربي پوهنتون د تاریخ حرب استاد په ۱۳۸۴ د ډګروالۍ په رتبه کې تر ۳۸ کلونو خدمت او ډي ډي آر کیدو وروسته له پوځي مسلک په ملکي تعدیل.

اوسنۍ دنده: د افغانستان د علومو اکاډمۍ، د کوشانۍ څیړنیز نړیوال مرکز علمي منشي.